

# د حمزه شینواري کلیات

## غزلي

## کتـــاب پیژندنــــه:

د کتاب نوم: د حمزه شینواري کلیات
سریزه او زیار: محمد آصف صمیم
خپرندوی: یونیورسټي بک ایجنسي پېښور
دانش کتابخانه کابل
چاپ شمېر: ۱۰۰۰ ټوکه
چاپ کال: ۲۰۱۰ م ـ اپریل ۱۳۸۹ ل ش
کمپوزنګ: دارالترجمه وکمپوزنګ سنټر
غني پلازه محله جنګي پېښور

خپرندوی:

یونیورسټي بک ایجنسي
خیبر بازار
پېښور
فون ۲۲۱۲۵۳۴

دانش کتب خانه
احمدي پلازه ـ ځلورم پوړ
میوند واټ کابل
فون ۰۷۷۱۱۴۴۳۱۷




# د خپرونکیو له خوا

ددې نه وراندې د مرحوم امیر حمزه خان شینواري کلام دهغوی په ژوند او له مړینې نه وروسته بیلو بیلو بنو خپاره شوي دي د حمزه بابا سره د پښتون اولس د مینې او عقیدت له مخه د هغوی تولې شعري مجموعې به د ډېر زر نایابه شوي له دې امله د پښتو اکیډمي پېښور پوهنتون په پنځو ټوکو کې د هغوئې د کلام کلیات شائع کړلو کار دَ ستایلو وړ کارنامه وه

دغه کلیات هم په لږه موده کې خلاص شو او اوس په بازار کې نه ویاتیږي د پښتو اکیډمي مرتب کړي کلیات مرتبینو تر خپله وسه کوشش کړی دی چې د کلیات د شائع کیدو نه پخوا چې د حمزه بابا د کلام په شائع شویو مجموعو کې د کتابت او متن کومې غلطی دې هغه بیا تکرار نه شی دوئی په دغه زیار کې تر څه حده کامیاب شول خو ډیر لغتونه او اصطلاحات بیاهم حل طلب پاتې وو د لیک د تیروتنو نه سوا په دغه کلیات کی د حمزه بابا پوره کلام نه و احاطه شوې،دی څوبښتنو د حمزه بابا خنې افغانان عقیدتمند د حمزه بابا د مکمل او د غلطیو نه پاک کلیات چاپ کولو ته چمتو کړل دغه لړ کې د معروف خیر نګار او د حمزه بابا مرید ښاغلی محمد آصف صمیم نوم په خصوصي توګه د یادولو وړ دی چې د حمزه بابا خنې نایابه او ناچاپه کلامونه یې په ډیر شواخون راپیدا کړل او ترممکنه حده یې یو بشپړ او د غلطیو نه پاک کلیات په درې غټو ټوکو کې ،،د حمزه شینواری کلیات،، په نوم د افغانستان دولت له خوا خپور کړه.دا کلیات د عامو لوستونکیو لاسو ته څکه او نه رسیدهٔ چې دا په بازار کې د خرڅولو په خیال نه وه چاپ شوی دا د ریاستې اداري له خوا خاصو خلقو او ادارو ته د ډالۍ په توګه کی بې قیمته ورکړې شو ښاغلی صمیم دې نسخه کې د اکیډمی چاپ کلیات کې پاتې شوې د ډیرو غلطو اصلاح اوکړې شوه او ډیر تکرار ترې وایستل شو خو بیاهم د ښاغلی صمیم د خدشو مطابق څه کم څلوېښت غزلې د چاپ نه پاتې شوی او مکرر راغلی

وې بل خوا یو څو غزلي داسې هم وي چې هغه یکې د شاملیدو نه پاتې شوي وي
د تولو نه مهمه خبره داده چې د مرحوم حمزه بابا چې څومره شعري تولګې تر اوس پورې چاپ شوي دي، یا خو ترتیب نه لري یا بعضو کې زماني ترتیب ساتلې شوي دی او څکه نور لوستونکي عموماً او د پښتو ادب تحقیق کونکي خصوصاً د حمزه بابا مرحوم د لټوونکو شعرونو د لټون په لار کې د رنګ رنګ ستونزو سره مخ کیدل. مونږ د دغو ستونزو هوارولو دپاره د حمزه بابا د کلام د ردیف وار شائع کولو اهتمام وکړه او دغه شان مو د لوستونکو یوه زړه مطالبه او ضرورت پوره کولو کوشش کړې دې په دې کې مو د مستندو خبرنګارو او د هغه حمزه شناس ملګرو نه مدد اخستی دی چې د حمزه بابا سره د عقیدت لرلو تر مخه د بابا کلام لوستونکیو ته په صحیح او مکمل شکل کې رسول تر تولو لوئې سعادت او فخر ګنی

مونږ دا وضاحت هم ضروري ګڼو چې د نوی ترتیب تکرارونو ایستو نه سوا موجوده کلیات تر ډیره حده د ښاغلی آصف صمیم مرتب کړې شوی کلیات باندې ادانه لري

البته څنګه چې عموماً کیږي چې هر نوی چاپ کی که یو خوا د وړاندینو غلطیو اصلاح وشي نوبل خوا په کې کمپوزر د څه نورو غلطیو اضافه وکړی دا نورې غلطی څه خو د غفلت په وجه وی او څه کمپوزر په خپل خیال کې د شاعر او لیکوال ،،اصلاح،، کوی که زمونږ کمپوزر هم د خپل طرف نه چرته د بابا کلام کې ،،اصلاح،، کړی وی او زمونږ نظر پرې نه دې پرې وتی نو داسې تیروتنې مونږ ته په نخښه کړئ چې راتلونکی چاپ کې یې تصحیح وکړی شو.

مونږ فی الحال د غزلو برخه شائع کوو او انشاء الله که د حمزه بابا د عقیدتمندو ملګرو مدد راسره مل وه نو د نظمونو برخه به په یو بل جلد کی ډیره زر د لوستونکیو له نظره تیره کړه

خپرندوی یونیورسټی بک ایجنسی پېښور
دانش کتب خانه کابل



# فهرست مضامین



# غزلـــــــــې

| شمېر | غزل | صفحه |
|---|---|---|

شمېر | غزل | صفحه

| شمیر | غزل | صفحه |
| --- | --- | --- |

بسم الله الرحمن الرحیم

## د غزل بابا او د تغزل بادشاه

پښتو او غزل، پښتنانه او د فن باریکي، د پښتونولی د روزګار سنګیني تقاضې او د محبوب مینه، د غیرت او مړانې پولادي سینه او د عشق او مینې نرم لطیف احساس او بیا د سنګینو نو په سیوري د عمل ژوند او د حقیقي ښایست د لټون د تفکر صوفیانه مزل د حیرت یو داسې ور پرانیځي، چې د شعور پوه رڼا ترې راوځي او په دغه رڼا د پښتون د وجود او دغه د باطن ننداره کېدی شي، په دې برنډو سترګو او شډل وجود کې، چې د مینې، د لطافت کوم رنګ پټ دی، د ښکلا سره د مینې کوم نسبت دی او په آفاق خور د جمال کوم صورت دی، که څوک په رښتیا د پښتانه د سرچه او له نوعې ذوقه خبر پدل غواړي، نو د امیر المتغزلین ستر حمزه شینواري غزل دې واوري او ولولي، پښتو دې زده کړي، په پښتو دې پوه شي، څکه چې د حمزه شینواري په غزل او شعر کې د پښتون مادي او معنوي دواړه صورتونه شته، د پښتو د ژبې ښایست، د پښتون د تخیل ښکلا، د پښتونولی د قدرونو معنې، ار زښت او فلسفه، د پښتني تفکر او خیال ارفعیت او علویت، د جمال د مشاهدې د پښتني نظر کمال او د تولعمرې ار زښت ملګری د حسن د جمال او جلال تصور. که څوک په رښتیا پښتون پېژندل غواړي، نو د ستر حمزه د شعر مطالعه دې وکړي

د نړیوالو په خیال ښن هم پښتون شډل بدل، بې کولتوره او غیر مهذب دی، د پښتنې روزګار تقاضې به هم تر څه حده داسې وي، د ژوند سختیو او ګرانیو به هم پښتون دې نه وي سم کړی، چې د خپل جمالیاتي احساس څرګندونه په نظر راتلونکیو توکو کې وکړی شي، د خپل ښایست د معیار د اظهار دپاره د لطیفو فنونو ذریعې او وسیلې ولټوي، دومره شتمن شوی به هم نه وي، چې په دولتي یا ټولنیزه سطح د تعمیر د ابادۍ په فن کې د خوبنې عمارتونه جوړ کړی شي، څکه چې نړۍ خو ظاهربینه وي، ولې دا هم چانه په پوره ډول ښکاره شوې نه ده، چې د دې شډل وجود په داخل کې د ښکلا او د ښکلا سره د مینې کوم شان پروت دی او بیا د هر قام خان ته د ښایست خپل معیار او خپلې پیمانې وي، د پښتنانه د ښایست خپل معیار دی، په قامي او اولسي توګه هم او په شخصي ډول هم، خود پښتنانه دا ۰۱ ادیت هم دی، چې د ښکلا په باب له د اولس نه بیل

خیال نه لري، د تولو پښتنو د ښایست خوښونه یوشان ده اودا فطري خبره هم ده دنیا د جمال نرم، نازک او باریک لطیف صورت خوښوي، ولي پښتون نه جمال په جلال کي زیات ښکاري، د تراشلو پیکرونو نه زیات نا تراشلي پیکر خوښوي، سادګي بې پروه خوښه ده اود جمال پوهني خاوندان نن سبا هم دا وایي، چي اصل ښایست په ساده توب کي دی تاوو راتاوو پیچلي صورتونو کي په داستکاري او فنکاري کمال او خوبي وي، خو سادګي په اصل کي د ښکلا غایت دی اود پښتنه دا نفسیات له شروع راسې دي، چي ساده ښکلي ګنې نري ملا، مړې سترګې، نازک لېچې، کچه رنګونه د پښتون زړه نه راکاږي، کلک وجود، بړندي سترګي، زوروري متي، د باز په شان نظر، د زمري غوندي پنجې، ښخ کاټه او پاخه رنګونه کلکوالي خوښوي، دا د پښتون د ښایست د معیار یو ارخ دی، دا فطرت اود فطرت د سادګي سرچپه ښایست دی، د جمال په دې فلسفه کي د دلیل نوري هم ډېري خبري شته، د نسبت او تناسب په حواله هم اوږد بحث غواړي، ولي په اختصار دومره ویل بویه، چي دا د پښتنه د تشخص یو ارخ دی، پښتون د خپل شناخت په هکله شدید احساس لري او د شناخت یو تقاضا د پښتني ښایست سره مینه ده، که هر څو ژوند یې ګران او سخت دی، خو پخپل رنګ او انداز کي مینه کوي او شاید، چي په دا رنګه مینه پایې هم، دا سوال، چي مینه زورروه ده که پښتو، نو د پښتون د پاره دواړه سره یو دي، لکه حمید بابا، چي وایي

دا زما لـه غمـه شـین زړه، پکي خیـال د  ر د شـونډو

هسـې رنګ زیب و زینت کـا، لکـه مې پـه شنـه پیالـه کي

د پښتنه د مینې حال هم داسې وي، له غمه شین زړه کي د سرو شونډو د خیال سره روزګار، په ظاهره سخت، ساده باده پښتون، په خاورو لړلي سینه کي هم داسې زړه لري

تنګ نظره نړیوال به د ستر خوشال خن خټک د پښتنه د ښایست د ستاینې په هکله هم دا ګرمان کوي او پښتني تعصب نتیجه به یې ګڼي، ولي دي کي د خبري څای کوم دی، چي

پـښتني جونـه هـې ولیـدي پـه سـترګو

خـوک چـي ترکـي د ختـا ستـایي خطـا دي

سو دا خطا خلک تل په پښتنه خطا شوي دي اود دوی د درستولو د پاره ضروري ده، چي د پښتني ښایست د کمال او معیار نه خبر کړی شي

ستر خوشال بابا ددې احساس سره په پښتو علم بلند کړی و. چې دنیا ته د پښتو او پښتانه د شناخت په باره کې وښیي. فن که هر څو د آفاقي قدرونو غوښتنه کوي، ولې په فن کې د خپل تشخص خبره هم د آفاقیت قدر لرلی شي. درانه او سپک وي. که قام درونډ و. خوې حصلت کې یې د رودوالي و. تولنه یې په درنو اوصافو اوډانه وه. نو په فني فکر کې به هم دا خصوصیت لرې اوبه دې بیاده. چې په شعر او ادب کې خوشال بابا د قامي تشخص رده کښیوده. نو پښتو د خپل فني تشخص په لور بون شروع کړو او بیا دا اعزاز او امتیاز شاید د ستر حمزه شینواري په برخه لیکلی و. چې په شلمه صدۍ کې دې دنیا ته د خپل شعر په فني کمال دا وښیي. چې پښتو کې نه د اظهار ګراني شته اونه پښتون فکر دچا نه کم یا وروستودی. داسې د پښتني جمال که پروه کرښې دفن په ذریعه راکښلی شي،نو دا بیاسیت د دنیا په نهایستونو کې د خانګړیو خصوصیاتو حامل دی او دا د پښتون انفرادیت هم دی او سترګې یې د امتیاز په رنجو توري هم دي

حمزه صیب د اعجاز ترحده دا کمال کړی دی. چې سوچه خالصه پښتو یې د تغزل جوګه کړی ده. پښتو، چې یوه سخته ژبه ګڼلی کیده. تکې لغتونه یې د تغزل د فن په باریکه ملا بار خیال کیده. حمزه ورته اول مضمون پیدا کړو. بیا یې د پښتني نهایست معیار ته جواز جوړ کړو او بیا یې دا طریقه اوسلیقه عیانه کړه. چې پښتون نهایست یې د پښتو ژبې د سوچه اصطلاحاتو نه په بل رنګ نه شي ښکاره کیدی او دا د فني او ادبي تشخص په ضمن کې یوه ډیره ستره فني کارنامه ده

د حمزه صیب غزل د پښتو غزل دی. د شعر د فن پښتون صورت دی. په دې کې د تصوف د فلسفي باریکې هم بیان شوې دي. د جمال د مشاهدې د اظهار بیان هم دی. په دې کې د پښتني اخلاقیاتو فلسفه هم ده، د پښتون د نفسیاتو. د پښتونولۍ د روایتونو، رسمونو، دودونو ضابطې هم دي او د عالمي ادب په علمي اوفني ډګه کې د پښتانه برخه د خپل قامي تشخص او شناخت سره سمه هم ده

د حمزه صیب شعر او غزل د پښتانه مینه هم ده.امتیاز هم دی. علم او پوهه هم، تصوف او فلسفه هم. د پښتنانه دانش او دانایي ده. د پښتانه رومان دی. د رومان انداز دی. پښتني اخلاقي نظام او ضابطه ده. د پښتون د قامیت شناخت دی. دا د تکمیل تر حده د ستر حمزه شینواري په شاعرۍ کې شته. د حمزه صیب کلام د پښتون او د پښتو فرهنګ دی. که څوک د امیرتی قام بېژندل غواړي. نو په دې شاعرۍ دې ځان پوه

کړي، دا يو قام دی، يو ښايست دی، يو رومان دی، خو دې رومان ته به د بصيرت په داسې سترګو کتل وي، لکه څنګه چې د پښتون فطرت دی

چرته چا ويلي وو، چې د يار مخ ته د سپوږمۍ په رڼا ګوره، چې څه د سر په سترګو وينې او نور د زړه په سترګو. چې د خيال تصوير بدې بوره وي، نو د حمزه صيب د شعر مطالعه هم په دغه رنګ د خوند ده، ولې دا بحث طوالت لري. په اشاره د ومره بس ده

انګيــــره يــــې د اشنـــا د تبسم نــه

نور په چا کې چې خپل اور و، اور پرې بل شو

خو سره ددې امتياز او شان پښتون چا په درسته توګه نه دی پيژندلی او د نورو نه څه ګيله، پښتون پخپله هم چرې خان نه دی پيژندلی. څکه نو د شته وجود سره نه بکاري د انساني اخوت په وروورولي کې د پښتون قام هغه کړی هم ده، چې څه زمانه وراندې د نړۍ خلکو په دې باب کې پښتون قام نه شمېرلو او دغه احساس حمزه صيب چرته داسې څرګند کړی و

ليلــى د ارتقــاء چې ستا څــري کومه ده

سپندور د کــومې وينــې دې دړې کومــه ده

زنځيرچــې د انســان د اخــوت جوړېـده

مــا غــم کــړو د پښتـون پکــې کــړى کومــه ده

د ستر خوشال نه تر ستر حمزه پورې د پښتو د ادب، کولتور او د شناخت د تر لاسه کولو يو تاريخ دی، ددې قامي کولتوري، فني ادبي تاريخ به شا د پښتنه د ژوند او د فن د رياضت يو لوی سفردی، دنن پښتون په برخه ددې د ساتلو او محفوظولو کار دی، هر سوچه پښتون د خپل تاريخ په روا ـ دا ښاغلی کار ترسره کوي

محترم استاد آصف صميم د ډېرې ستاينې ور دی چا چې په ښتنه مينه دا اهم او ارزښتناک کار ترسره کړو، دا يو ډېر ګران کار و، په پښتو اکاډمۍ کې د حمزه شينواري د کليـاتو د مرتب کولو ګرانی سره زه په خپله هم مخ شوی يم، هغه کسي، خامي او تيروتني، کومې چې د وخت د کمي په سبب واقع شوي وي، يا د حمزه صيب د کلام هغه برخه، چې اکاډمۍ تر لاسه شوې نه وه او موندل يې هم ګران وو، يا د څينو شعرونو د تصحيح کار داسې و، چې يې د ميني د ذوق نه د بل چا د وس کار نه و

# خپلـــې خبـــرې

له ستر حمزه بابا سره خوږه هر څوک د خپلې مینې او ارونډو وېاړونو شالید او لاملونه لري، خو زه د حمزه بابا د پېژندګلو د شالید دا کیسه دلته لږ په لنډه ون[١] او لاسوند یزه «مستنده»، د بابا د خپل لیک په رڼا اخیستنه داسې وړاندې کوم

،، لـن نـاڅلې محمـد آصـف زمـا د کـور د پـاره لوارګې ته راغلی، خو افسوس دی، چې ډېر حـصار له شو، چې خوږ مجلس مو دوام مونډلی وی.

پښتانه د غفلت له خوبـه ویښ شـوي دي، ځکه چې د ځلو مشرانو په قدر پوه شوي دي.

لـوی څـښتن دې عمـر د کامیـاب ژوند سـره ورکړي،،

حمزه شینواری

مورخه ۱۳ مارچ سنه ۱۹۷۷ ء

---

[١] بشپړه په الفت کې خپره شوې ده

ترذي پيرزوينې او ويار وروسته دادئ چه باندې دېرش کاله اوري، چې حمزه .
زما د ادبي اذکارو او وظايفو مرکز او منځنی گرځېدلی دی

حمزه بابا مې په دې درو لسيزو کې ولوست، وکوت، واورېد او زده
فکر و فن راته د هنر له راته کوثره مې لپې لپې او کاسې کاسې پر سر وارو
هم تنده تنده پاتې ده

د پر څه کول او ليکل مې پر حمزه زړه اري، خو کاشکې د زړه او دماغ په
هميانې کې مې د وسې پانګه خو واى، خو پر دې حقيقت باندې په واو او باور، چې ,,لا
يُكلف اللّٰهُ نفساً إلا وُسعَها،، او بنده حيران، خداى مهربان

زما د بپوسې په پيدايا کې زما ارمان اخرهم انگېزه وکړه، زما حيراني پاک خداى
پخپله مهرباني کې ونغښته او د حمزه بابا د فکر وفن د څېړلو او غځولو په باب زما
اواز د اجابت له انګازې سره مخامخ شو، داسې چې د ۱۳۸۴ د تلې پر لومړۍ ورځ د
کابل ښار سالنګ واټ ته څېرمه د مدني تولنې په انګړ کې د کتاب په ملي نندارتون کې
پرخپل درانه دوست او د قلم او قلمولو خوا خوږي او د دمې او واوېيني خاې ښاغلي
معراج الدين پټان، چې د علمي زېرمې او خزانې په لوټلو پسې راغلی و، واوښتم په څېرو
خبرو کې يې د حمزه د کلياتو د نوي او ښکلي تدوين او چاپ خبره راپياده کړه، چې بايد
بيا په نوي بڼه او جوله له سره چاپ شي او که دا کار همدا نه وکړي، څنګه به وي؟

ماله خان سره وويل چې دا خو يې زما د زړه د رباب هماغه تار ته شهباز وروو،
چې تر اوسه ترې ترنګ نه راووت، ما ويل: کليات، خو د پېښور د پښتو اکاډيمې ملکيت
دی پوهاوى به ورسره غواړي، ويل يې: خبره ورسره ګوره کړه، که نه مه يې نه کوله، نو بس
بسم الله کړه پرې، زه او پټان سره بېل شو، پېښور ته له را رسېدو سره پښتو اکاډمۍ ته
لاړم، لومړی مخ خپل خوا خوږي د اکاډمۍ مخکني رييس ډاکټر راج ولي شاه خټک ته
ورغلم، د خبرې زړې مې يې په مخکې کېښود هغه له څه ډول اختلاف پرته زما و رانديز
هرکلی وکړ، خو د اوسني رييس آغلې سلمی شاهين رسمي پرېښله ،اجازه، او منښته يې
اړينه وګڼله، دواړه سملاسي مخامخ د سلمی شاهين دفتر ته ورننوتو، تر روغبړ وروسته
مو خبره وورسره يو کړه، هغې هم په هند او پاکستان دواړو کې د علامه اقبال د کلياتو د

بیا بیا چاپولو د بېلګې په استدلال راسره ومنله. خو په ټوټکو ټوټکو کې یې اکاډیمۍ ته د یو څو ټوټکو د والۍ کولو آر او شرط کېښود

زه له دوارو ریسانو نه په منته راووتم بناغلی پټان مې له شوي پرمختګه خبر کړ هغه ډېر خوښ شو او د کار د بېل داد یې راکړ. بس متې مې راونغښتې. لټون، مشورې او د کار د ځنښې پر جوړولو مې سوچ شروع کړ او له ګران حاجي محمد عمر خېل سره د کمپیوټر پر چارو تر موافقې وروسته مې پر کار ګوتې پورې کړې

که څه هم د کار بنسټي برخه او لومړی لاس اخخ د اکاډېمۍ خپاره کړې پنځه ټوکه کلیات وو، خو ډېره نوره زیاتونه او خوارۍ هم ګالل پکار وو او هغه خوارۍ نن دادی لله الحمد ددې برېا له ترلاسې سره ستاسې په مخکې ده، چې

۱ په کلیاتو (پنځم ټوک) کې د کابل نیمګړې منظومه سفرنامه د ځانګړي چاپ شوي هغې له مخې، چې د پروفیسر داور خان داود په همت بشپړه چاپ شوه.

۲ له ,د حجاز په لور،، او نورو آثارو نه پاتې بېلګې.

۳. د بابا د درېوارو فلمونو (لیلی مجنون، پېغله، علاقه غیر) سندرې.

۴ د شهرعالم او مېمونې د منظومې ډرامې یو څو بېلګې.

۵ د اروابناد غلام محمد مقصد له ,, ویر،، نه یوه بېلګه

۲ د اروابناد امین الحق په نامه یو منظوم لیک

۷ تر ټولو لویه او ارزښتناکه زیاتونه، چې تر دې شېبې یې ,, د پسرلي ډیوه،، په نامه د چاپ لاره ځارله د صبا اکبر آبادي د پنځوسو ژباړلیو غزلو زیاتونه ده، چې له درانه پښتون دوست طاهر ابریدي نه په یې کچه منته په لومړي ځل وړاندې کېږي

هر گوره

د دې زياتو نو تر څنګ په چاپ شويو کلياتو کې ځينې راغلي مکررات نري وايستل شو.[۱]

خوله بده مرغه د دې ګټورو هڅو ار هلو ځلو پر یادونه سربېره دا هم بايد په خواشينی او نهيلی ياده کړم، چې د ښاغلي لايق زاده لايق او له ډاکټر راج ولي شاه خټک سره د نثار محمد خان بيا بيا زمنو او لوزونو مې د کلياتو د بشپړتيا هيله تکنې کړه. که د پېښور راډيو پخواني مشر ښاغلي نثار محمد خان لورېينه کړې واى، نو د حمزه بابا د ځلور سوه بيتيزې درامې «د ومانو ښار» چانګه به هم د دې کلياتو د منځپانګې ښکلا واى، خو اوس هم دنيا په اميد خوړه شي.

نمانځنه

محمد آصف صميم
۲۴/۱۷/۱۱۳۸۲

---

[۱] خو بيا هم پاڅوري نه يم، چې مکررات به چاڼ شوي وي، که پاتې وي، له مخکې نه به بښنه د

۷ گران خوا خوږی ښېنتون مینه وال ښاغلی عطاو الله حیران مې هم د ستاینې ور دی، چې زما د خبرنې شېبې شېبې لار څارنې او انتظار هم ستومانه او تهیلی نه کړ.

۸ گران او تولمنلی اسد جان د دانش خبرنخي ژمن خو مې څکه د بې کچه منني ور دی، چې په هره سخته کې زما په څېر د وېرو د مخ اړولو خای دی.

۹ ښاغلی لایق زاده لایق مې هم د منني ور دی، چې تر پایه یې په طول امل کې وساتلم، خو د ،لیلی مجنون،، د سندرو اره یې زما د خوب (اشتها) او انتظار په خوله کې راونه خغول

۱۰ او په پای کې مې هغه څوک د وېرې زیاتې منني او حتی دعاوو ور دی، چې د خوشال بابا د وینا له ډالۍ کولو پرته ورته هیڅ نه لرم، چې:

بدر که که محبت راسره نه وای
یک تنها به په خونخوارو لارو تلل څوک

که یې مینه، خواږه، زغم او لوړ اخلاق نه وای، بویه که ددې کلیاتو ستومانوونکې کمپوزونې ته چا زړه به کړی وای

هاغه ،،عمرخېل،، درته یارانو یادوم
زه بر له تا خوږم، ته بر له عمره

نمانځنه
محمد آصف صمیم
۲۴ ۱۷ \ ۱۱ ۱۳۸۲

# یو ځو ګامه له حمزه سره

**«۱۹۰۷ ستمبر ـ ۱۹۹۴ فروري»**

> د ستر خوشال د نبته پیژ پېژند تر څېړنې «ګام پر ګام له خوشال سره» وروسته زه د خپلې څېړنې او څېړندو د پر ارزښت. اغېز او هرکلې دومره پوهېدم، چې د ستر حمزه په پېژندګلو کې هم د دوديزې هڅې پرځای له همدې دوده کار واخلم. نو ځکه مې حمزه بابا هم درنو لوستوالو ته په همدې انځور وراندې کول غوره وبلل. هرګوره!
>
> د خوشال تر پلوښو مې د حمزه بابا پلونه یو څه تت وموندل. ځکه مې د «ګام پر ګام» پر ځای په «یو ځو ګامه» راصحدود کړل
>
> صمیم

۱۹۰۷ ستمبر د خیبر په لوارګي کې د باز میر خان ملک په کور کې وزېږېد

۱۹۱۰ ـ د مور د مینې له غېږې بې برخې شو

۱۹۱۲ ـ د لوارګي د لومړني ښوونځي پر وره ورننووت

۱۹۱۸ ـ د پېښور د اسلامیه کالج دوېم ټولګي ته بدل شو

۱۹۲۴ ـ لومړنی واده یې وکړ

۱۹۲۵ ـ لومړنی زوی یې وزېږېد، چې پر هماغه کال ومړ

۱۹۲۵ ـ د تورخم په پاسپورټ دفتر کې په کار وګومارل شو

۱۹۲۲ ـ د خیبر اورګاډي د پټلۍ په نوې جوړه شوې پروژه کې منشي شو، خو پر هماغه کال یې کار پرېښود د همدې کار په بهیر کې یې په سپېرسنګ کې د کاریګرو په فی البدیه مشاعره کې دوې پښتو چاربیتې ووېلې

۱۹۲۷ ـ دوېم زوی یې «مراد علي»، مراد شینواری وزېږېد

۱۹۲۸ جنوري ۳۱ ـ د خواجه معین الدین چشتي# زیارت ته له خپل ورور بلخي خان سره اجمیر ته لاړ او بیا ډیلي ته ستون شو او همدلته یې دده خبره د فطري رجحان ډیوه بله شوه

۱۹۲۸ع ـ دخپل دوست میر عالم خان په ملګرتیا په قلمي کمپنۍ کې د کار لپاره بمبئي ته لاړ، خو د یوې میاشتې له تېرولو سره سره یې کار ونه موند

۱۹۲۸ فروري ۱ـ لا په ډیلي کې و، چې په چاندنې چوک کې پر خواجه حسن نظامي باندې دزې وشوې، خو بچ شو

۱۹۲۸ـ دویم واده یې وکړ، چې بابا د میني واده باله.

۱۹۳۰ـ له روحاني بومیا حضرت سید عبدالستار شاه سره یې، چې د دوی د مشرانو هم مرشد و، روحاني تړون پیدا شو. له همدې وخته یې د خپل مرشد په سپارښتنه د اردو پر ځای په پښتو لیکلو لاس پورې کړ

۱۹۳۰ـ له روحاني بومیا حضرت سید عبدالستار شاه سره یې، چې د دوی د مشرانو هم مرشد و، روحاني تړون پیدا شو. له همدې وخته یې د خپل مرشد په سپارښتنه د اردو پر ځای په پښتو لیکلو لاس پورې کړ

۱۹۳۰ـ لومړنی پښتو غزل یې ووایه

۱۹۳۰ـ د خپل دوست میر عالم خان په مشوره او هڅونه یې بیا له فلمي نړۍ سره شوق وپاراوه، په راولپنډۍ کې یې د پنجاب فلمي کمپنۍ له مشر هري رام سیټي سره لیده کاته وشول

۱۹۳۰ـ له راولپنډۍ نه له راستنېدو سره په پېښور کې و، چې پلار یې ومړ

۱۹۳۳ـ د خپلو دوستانو په هڅونه یې کیمیاګرۍ زده کړه، خو مرشد یې ورته پرهېز ووېل

۱۹۳۵ـ د آل انډیا راډیو پېښور ځانګړې لپاره یې لومړنی پښتو ډرامه ،،زمیندار،، ولیکله

۱۹۳۷ـ لومړنی پښتو اثر ،،تجلیات محمدیه،، یې په ۳۹۸ مخونو کې چاپ شو

۱۹۳۷ـ د عبدالکریم مظلوم په ملګرتیا یې د ،،ژنا،، په نامه یوه میاشتنۍ خپرونه واېسته

۱۹۳۸ـ د الحاد توري لړۍ یې د عقیدې پر اسمان راخپرې شوې.

۱۹۳۸ـ پر همدغه کال یې د پښتو منظومه ډرامه ،، د ومانو ښار،، ولیکله، خو وروسته یې نوم ،،د شوګیانو ښار،، کړ

۱۹۳۹ـ د خپل مرشد حضرت سید عبدالستار شاه په بلنه او هڅونه یې د ،،بزم ادب،، په نامه یوه ادبي ټولنه جوړه کړه. چې لومړنی مشر یې راحت زاخېلی او وروستي حمزه پخپله مشر شو

۱۹۴۰ مارچ ۲۵ـ د سید عبدالستار شاه په نوښت د جوړې شوې ادبي ټولنې ،،بزم رحمان،، د کالنیو غونډو په لړ کې د مالګې منډۍ په پارک کې د کاظم خان شیدا پر دې مسره.

سیاه مار په نظر نه راځي ماښام دی

دا غزل واوراوه

د دعوت یې رقیب کړی انتظام دی
خدای دې خیر کړي نوی رنګ د انتقام دی
تورې ستر ګې دې زما زړه ته به خیر دي
بیا جیشو په کعبه ترلسی لام دی

د همدې شعرونو اورول وو، چې د پښتو وتلي شاعر سمندر خان سمندر ورته د بادشاه خطاب ورکړ

۱۹۴۰ـ په لوارګي کې یې هم د طرحي مشاعرو تیره کښوده او پر
توره تیره توره، (ده) سپیني ته بکړ وایي
مسره یې بوه طرحي خندنی «مزاحیه» مشاعره وکړه

۱۹۴۱ دسمبر ـ د رفیق غزنوي په بلنه او وراندیز د «لیلی مجنون» پښتو فلم د سندرو او وراشې (مکالمې) د لیکلو لپاره بمبیي ته لاړ، تر دو میاشتو تیرولو وروسته، له هغه ځایه په اجمیر شریف کې د محبوب الهي خواجه معین الدین چشتي نظامي زیارت ته لاړ او د زیارت تر لمبولو وروسته تري د الحاد د پنځه کلنې دورې تودې لړې خوري شوې

۱۹۴۴ـ د «نوي چپي» نومې هغه ناول یې لیکلو یې لاس پوری کر، چې د ده د وینا له مخې بنیادي تصور یې د سرحد د بنوونې روزنې وزیر شمین جان خان ورکړی و

۱۹۴۷ـ وروستی ځل اجمیر شریف ته لاړ، له هغه ځایه یې د مولینا عبدالقادر په بلنه د
د راډیو په جوړې کړې مشاعره کې ګډون وکړ

۱۹۴۸ اګست ـ د افغانستان د خپلواکۍ په (۲۹) کالیزه کې د ګډون او د پښتو لیکدود د یو کولو په لړ کې د پښتو ټولنې په بلنه د مولینا عبدالقادر په مشرۍ په یوه پلاوي کې کابل ته لاړ.

۱۹۴۹ـ د بنکار غلی مورچه، نومې لومړنی لنډه کیسه یې خپره شوه

۱۹۴۹ـ کشر ورور یې «خلیل ومړ

۱۹۴۹ـ د کابل منظومه سفرنامه یې د ترکیب بند په بڼه په (۹۰۰) بیتو کې چاپ شوه، خو له خپریدو سره د حکومت له خوا بندیز پرې ولګید

۱۹۵۰ـ د اولسی ادبي جرګې په جوړیدو د جرګې مشر وټاکل شو

۱۹۵۲ـ مشر ورور یې «ملک باور خان» ومړ

۱۹۵۴ جولاي ـ مرشد یې حضرت سید عبدالستار شاه، چې ده به له مینې باچا خان باله، د حق داعي نه لیک وواېه، حمزه یې د مریني ماده دا راواېسته
د فخر علم شو بام ـ ۱۳۷۳
۱۹۵۲ ـ د غزلو او نظمونو لومړنی ټولګه یې د ،،غزونې،، په نامه په ۲۳۴ مخو کې چاپ شوه
۱۹۵۷ ـ په ۱۹۴۴ کې پیل کړی ناول ،،نوې چپې،،[۱] په ۴۱۴ مخو کې له چاپه راووت
۱۹۵۸ ـ د کابل سفرنامه ،،نوی پښتون،، یې په ۳۲۰ مخو کې چاپ شوه
۱۹۵۹ ـ ،،د خوشال خان خټک یو شعر ،، په نامه اثر یې په ۱۸۳ مخو کې چاپ شو
۱۹۶۰ ـ د پاکستان له پوځي مشر مارشال ایوب خان سره د کراچۍ ـ ـ پېښور د او ر ګاډي د سفر په ملګرتیا کې یې هغه ته د ښوونځیو په نصاب کې د پښتو د خپرولو وړاندیز وکړ، چې ومنل شو، خو
۱۹۶۰ ـ د غزلو دویمه ټولګه یې د ـ "یون" په نامه په ۴۲۰ مخو کې چاپ شوه
۱۹۶۰ ـ د پاکستان رایټرز ګلډ ټولنې د ایالتي څانګې عمومي منشي غوره شو.
۱۹۶۳ ـ ،،ژوند،، یې له چاپه را ت
۱۹۶۲ ـ د پښتو له ملي مشر فخر افغان باچا خان سره یې لومړنی کاته وشول
۱۹۶۹ جنوري ۲۹ ـ د افغانستان د شاهي حکومت د قبایلو ریاست له خوا له څېلو پوویشتو قبایلي مخورو ملګرو سره د څمکې له لارې د بیت الله مقدس سفر ته لاړ، پر هغه سفر، چې ده یې کلونه وړاندې د خپلو پښتو له قافلې سره د تګ ارمان کړی و

همزه سفر که د حجاز وې نو هم
زه د پښتون له قافلو سره ځم

دا سپېڅلې دوه میاشتنی سفر د مارچ پر ۲۸ لوارګي ته په رسېدو بشپړ شو
۱۹۷۰ ـ د حجاز په لور نومې یونلیک یې په ۵۲۸ مخو کې له چاپه راووت
۱۹۷۰ ـ د ،،پېغلې،، فلم لیکلې کیسه، وراشې (مکالمې) او سندرې یې فلم شوې
۱۹۷۲ ـ په اردو ژبه یې خپل ژوند لیک ولیکه، چې وایې لاسلیکلې نسخه یې له سید انیس شاه ګیلاني سره خوندې ده

---

[۱] ،،نوې چپې،، د داش رام ګمجه نومې هندي لیکوال له خوا له هندي ژبې هم ژباړل شوی دی، وګ په هند کې د پښتو ژبې او ... پراونه ۵۲۵۱ مخ

۱۹۷۶ـ له جعفر اخکري سره د ليکونو ټولګه يې د ،،انسان او خداى،، په نامه چاپ شوه
۱۹۷۷ـ ،،ژوند او يون،، نمي منظومه ټولګه يې په وړه کچه له چاپه راووته
۱۹۷۹ـ د ميا عبدالرحمن لوګي کاکاخيل په نوبت او زيار د حمزه په باب د خيلو مينه والو، ليکوالو او شاعرانو پيرزوينې د ،،سزه او حمزه،، په نامه له چاپه راووتې
۱۹۸۰ـ د دانا اور علم نومي فلسفي او عرفاني اثر يې په اردو ژبه له چاپه راووت
۱۹۸۰ـ د ،،علاقه غير،، لپاره ليکلي کيسه او سندري يې فلم شوي
۱۹۸۷ـ د افغانستان د دولت د قومونو او قبايلو وزارت له خوا يې اتيايمه زوکالېزه د پوه دوه ورځني سيمينار په ترڅ کې ونمانځل شوه
۱۹۸۷ـ ،،يون،، يې د همدې زوکاليزې په وياړ دويم ځل د باغلي زرين انځور په زيار چاپ شو
۱۹۸۷ـ د همدې سيمينار ليکنې ،، د حمزه ياد،، په نامه د ښاغلي زلمي هېوادمل په زيار او خارنه چاپ شوې
۱۹۸۸ـ ،،يون،، يې دريم ځل چاپ شو
۱۹۸۹ـ ،،سلګې،، ټولګه يې له چاپه راووته
۱۹۹۴ـ فروري ۱۸ـ او بالاخر، د پښتو د غزليزې او عرفاني شاعرۍ سرلاری او د هنري او داستاني نثر د وګړ ستر اتل خپل سترړب ته د خپل ۸۷ کلن وياړلي ژوند د امانت په سپارلو د پښتون او افغان اولس د سوکالۍ، سرلوړۍ او د پښتو ژبې د پرمختيا په ارمان جنت ته له پښتو سره لاړ.

**انا لله وانا اليه راجعون**

اروا يې ښاده او ارمان يې وتلي اوسه.

# د حمزه بابا آثار

## منظـــــــــــوم

۱ د کابل منظومه سفرنامه
دویم چاپ
۲ د زړه آواز
۳: غزوني
۴: یون
۵ د خیبر ووږمې
دویم ځل
دریم ځل
۶ ژوند او یون
۷ بهیر
۸ پرېوني
۹ پسرلی په آیینه کې
۱۰ ژوند او یون

پارسي او اردو شاعري
(ځانګړي ټولګې یې نه دي چاپ شوي)

## منثــــــــــــور:

### پــــــــښتو

۱: تجلیات محمدیه
۲ د خوشحال ختک پوشعر
۳: ژوند
۴: تسخیر د کاینات
۵. انساني انا او پوهه
۶ ژور فکرونه
۷. نوې چپې (ناول)

## پوهنليکونــــــه:

۱ د کابل سفرنامه «نوی پښتون»
۲. د حجاز په لور

## ليکونـــــــه:

۱ انسان او خدای د جعفر اخکزي په نامه
۲ ګوتې قلم ته په ژړا شوې د طاهر اپريدي په نامه
۳ د چراغ حسين شاه په نامه ليکونه
۴ د هما په نامه ليکونه
۵ مکتوبات حمزه، د ارباب عبدالرحمن په نامه

## داســـتاني آثـار:

۱ لس لنډې کيسې ۲ په لسګونو ډرا

## اردو:

۱ انسان اور زندگی ۲ وجود اور شهود
۳ تذکرة الستاريه ۴ انا اور علم
۵ جبر کی اختيار ناول ۶ سوانح عمری

## ژبـــــــاړه:

### لـه پارسـي نـه:

۱. ارمغان حجاز

### لــه اردو نــه:

۱ د سپرلي ديوه، د صبا اکبر ابادي
۲ سپېڅلي ويناوې «حضرت علي کرم الله وجهه وجيزې»
۳ د حضرت علي کرم الله وجهه نهج البلاغه

### اردو ته منظومه ژباړه:

ديوان عبدالرحمن

# ســــــــريزه

## ستوری پښتون
## او
## د پښتو شاعری بابا ادم

لويان وايي، چي انسان هله تر ستوري زيات ځلېږي، چي د هغو ستوريو په څېر نرلی او ښکېللی نه وي، چي ميليونونه کاله پر يوه چورليځ چورلي او د داريا (جبر) په څېر کړی پر غوږ له خپلي ګردی (دايري) ونه وتلای شي.

انسان تر لمر و ستوريو ځلند کېدای شي، خو هله، چي پښه له کړيو وا ړولای شي او پر هغه د هواله واوړي، چي زماني او پېريو ترې تاو کړی دی

هله، چي پر هېڅ لرغونيو د هوالو ساندي ونه بولي او د يوه د هوال په نړونه خوا تولی او خاطر جمع نه شي، ځکه خواتولي او داومن ژوند د فکر د آزادی ښښي وهي، لوی انسان خپل اندي او آزاد اندي وي، نه ښکېللي، خواتولي او داومن وګړي په لويانو کي نه را '

د لويو انسانانو د کږ مبږ د ښودو په رڼا کي سری د پښتون قام د نا داومن او د زړندي په څېر د ناکراره او لالهانده ژوند لامل او راز په اساني موندلای شي. يانې پښتون قام سره له دي، چي د خپلو او پرديو په لورېينه د خپل ژوند سمون او خپلي داومنی او سوکالی ته وزګار شوی نه دی، خو د نورو د سوکالی او داومنی وزلي او وسيلي د خپلو سوکاليو په بيه برابرو دي چندن همېشه د نورو ونو په خوږبولو کي لاس لرلی دی، خو پخپله يي د تولنيزو او سياسي پېښو او حوادثو د دورو څادر پر ځان غوړولی دی

خو هر څه، چي دي، خو د زماني او تاريخ په ګواهی يي د تاريخځازو مېړونو او نابغه وو پر درلودو څوک ستر ګي نه شي پټولای ان چي بدغواري يي هم دامني، چي پښتون قام داسي نوابغ هم لري، چي په يوه ځان د نورو تر څو نوابغو درانه څېږي

نوري وهي نه راسپړو. پر داسې يوه بېلګه پښتانه نابغه خبره لرو. چې خوشال نه دی، خوکم وکوز هم ترې نه دی په دې مانا . چې که تر خوشال وروسته په پښتون اولس کې کوم بل ستر نابغه پيدا شوی. چې پر يوه وخت يې د ادب، عرفان، فلسفې او هنر د ګڼو ارخونو په ډګر کې د قلم علَم اوچت کړی، نو هغه د آل انډيا راډيو ډيلي د مشر افتخار حسين خبره

د بابا آدم د زمانې که نه هم وي، خو د پښتو شاعرۍ بابا آدم ور دی.[1]

د ستر حمزه د هنري اوږده او ساره په باب د ډېر قلمونه ستړي شوي، د ډېرو د خپل فکر و خيال نيلی په دې ډګر کې خغلولی. خو د ډېرو لړو پکې په دې لړ کې نوي خبره او نوي ارزونه وړاندې کړې ده. په دې کرښو کې به هم تاسې د حمزه د فکر وخيال په باب له دې نوي اوږدون پرته د ډېر نوي څه ونه وينئ. چې د ستر حمزه د هنر هر ارخيزه نظارنه او احتوا وکړای شي

حمزه د پښتو د معاصرې شاعرۍ هغه غزلبول شاعر دی، چې غزل يې د زړ ،کلاسيکې شاعرۍ او معاصر غزليز بهير د يوه پله په توګه کارولی دی

حمزه هغه دورانساز شاعر دی، چې وينا يې په ژوند کلاسيکې بورې او مقام ته رسېدلې ده او په غزل کې يې د لهجې د خوږلنې او رواني تر څنګ صانيزه ښکلا ، هنري اعجاز، د فکر ژورتيا ، د خيال الوت او د عرفاني کړلېچونو انګازې اغېزلې دي

د حمزه ذهن فلسفي او منطقي ويرتياوې او وسعتونه لري، خو په غزليزه شاعرۍ کې يې دا دواړه په ډېر احتياط دومره کارولي دي، چې د غزل روح يې زغملای شي

له غزل سره د حمزه فطري تړاو او اشنايي حمزه د الفاظو او ترکيبونو د غورولو او چوڼلو او د غزل د لهجې او فضا سازولو په هنر پوه کړی دی

همدې هنر ورته د غزل لپاره د روانو او سليسو بحرونو د غورولو ګرانه هم اسانه کړې ده او همدا هغه ښبګړه او خانګړنه ده، چې دده غزل ته يې د ګرانښت او پايښت

---

[1] حمزه بابا يوځل د آل انډيا راډيو ډيلي په بلنه په مشاعره کې د ګډون لپاره ډيلي ته لاړ. پخپلو جامو او پښتنې بڼه نېغ راډيو ته ورغی. د راډيو د مشر افتخار حسين چپراسي ته يې خپل ليکلی نوم ورکړ. هغه چې افتخار حسين ته ورغی. ورته يې وې. د بابا آدم د زمانې يو حمزه نومی سړی له تاسې سره ليدو ته راغلی دی؟ افتخار حسين ورته ووېل د بابا آدم د زمانې که نه هم وي، خو د پښتو شاعرۍ بابا آدم ضرور دی. حمزه شينواري. ايک مطالعه. ۳۷_ ۳۸ مخونه

داسې پوري ورکړې ده، چې نفسو بې ګرده پښتونخوا او پښتني نړۍ اېللي او اېګازنه کړې ده

د حمزه په شاعرۍ کې د بنیادي او بنستي تکیو په توګه د عشق او عرفان له شتون سره مذهبي او ملي جذبه دواړه په دېر فطري او استادانه هنر غاړه غوټې شوي دي او دې فطري حقیقت، چې دین او ملیت نه بواځې ټکر خور نه دی، بلکې سره ملاتړ هم دی، خو د اعتدال او انډول ساتنې په شرط، حمزه ددې حقیقت منلو ته بناینسته ډېر پلویان او لاري پیدا کړې دي، ان چې خپل دې پیغام ته یې د یوه ادبي سیاست رنګ ورکړی دی.

په پای کې د خپلو نورو خبرو پر ځای ددې کرښو د لمن د راټغارلو او بنه پای حسن اختتام لپاره د ستر حمزه بابا د دوو سترو مینه والو او حمزه پوهانو د ربخونه راوړنه بسنده ګڼم

د حمزه زړه د صوفیانو دی، د ماغ یې د فلسفیانو، عمل یې د خوانانو او کړه وړه یې د شېخانو دي

د حمزه په غزلو کې سربېره په بنکلا نوی خیال او نوی خوند هم په داسې شان خان ښکاره کوي، چې زاړه او زلمی تري پر شان خوند اخیستلای شي دده په غزلو کې نوی خوند دادی، چې د عشق او مینې شعرونو ته یې د پښتو او پښتونولۍ رنګ ورکړی دی

د حمزه په غزل کې هغه ټول خوندونه او کیفونه پراته دي، چې د غزل د ناوي ډول او سینګار ورته ویلی شي

(د خیبر وږمې، پوهاند رښتین)

د حمزه غزل ده د هنر ښکلا او جامع مظهر دی، دده ټول هنري آثار دده د غزل او بداعت او نوښت نر سیورۍ لاندې دي، د حمزه غزل د اوسنې پښتو ادب پر اسمان لکه رون ستوری داسې بربښي، د حمزه غزل لکه روان سیند په نویو زمزمو ورو بهېږي په ښکاره خو ځینیا، تیکاو او تینګار لري، خو دننه پوست او متوازن دی معاني اومطالب یې خوځوونکي او پاروونکي دي د پښتو د فکر او تمثیل غوټه او کره توکي ېکې رانغاړي، خکه یې هنر هم د پښتني فکر ځرګندوی دی، ان چې په بزمي مضامینو کې یې هم همدغه جوله ښکاري

(پوهاند حبیبي، اسماني نغمې او لاهوتي سرودونه)

د پښتو ادب د سمندر د همدې دوو مرغلرو له والې کولو سره د ستر حمزه پر فکر ... دا خوږې وږې خبرې د بابا دد ارمان د ترسرايني په هيله رانغارم، چې

چې بې تا چانه تيت نه شي تنکيالي زما ژوندون کړه
زړه زما دې مسلمان وي، تفکر مې د پښتون کړه
خدايه زيات کړې بو په لسه د پښتو د ليلی حسن
بيا زما مينه هم زيانه بو په لسه تر مجنون کړه
زه دې وچ هدوکي شپېلم، خو ملت مې دې سلطان وي
دا زما د سخن سپوږي په معنی کې همايون کړه

د ستر حمزه د فکر و هنر د ونو د خپرېدا په هيله

نمانځنه

محمد آصف صميم
۲۵\۱۷\۱۱۳۸۲
لاله زار مېنه ـ پېښور.

د برښنه یې احساس دی وړانګ سبا — یم چې داشنانه جدانن سبا
نه وتنغ که شي خومانه قضانن سبا — ماته جنون ستاګرواداننن سبا
کم شو په لیمو کي نظر هم د زړه — د یره که هر خوشوه زیانن سبا
ګوره په هرچاهسې وریښي نه شي — وخته چې تیریږي په مانن سبا
وصله چې په ژوند کي مي بیاړانه شي — ښکاري مې الفت کې خلانن سبا
ګوره چې موسکی نه شي اشنازما — د یره له ماکیږي خطانن سبا
راشه زما عشقه که ما بوهه کړي — ښته د زړګوټي صدانن سبا
ښکاري چې اشنا په مخاطب کړي ما — خیزي د هرخیزنه نوانن سبا
دا په هواګانو کي مستي چې دي — خوانه د حمزه شوه هوانن سبا

۱۹۶۰ سپتمبر ۲۳ ـ لواړګی.

خیر که زه اوس خو مره یم ارزان په تا — پسته به هم دومره شمه ګران په تا
ما خلله دوفا امتحان مه اخله — دا به زما هم شي امتحان په تا
پرسپوده بوپنهدلي اسویلي زما — ګواښي به دي نورجورکاندي طوفان په تا
کړي به اسویلي په بې خیالی کي بیا — زیادبه مې سلګی وي دارمان په تا
ژوند دي مدامي په برخه هله شو — مره چې شو حمزه خوندي خوانان په تا

۱۹۷۴، اګست ۱۲ ـ لواړګی

اماني په لوښو کي نه دي ګراني سترګي ستا — سیرلي هم دخوانی نه کړي اساني سترګي ستا
سالي په بو نظر کي تغافل هم التفات — د ژوند په راز دي پوهي استاذاني سترګي ستا
اوس ګوره چې ماده یې کړه زما د وینې نوش — کباب غواړي زما د زړه رنداني سترګي ستا
که ښکته شي هم ،نهښي دي وي خوکي د ښو — پښتو به راته زده کړي مسلماني سترګي ستا

محفل کي که درګورمه په دي خونه بم ګرم — دا سترګي دي د ښکليو زما خاني سترګي ستا

شايد اکريکرمـي د نظـر و ښتني — نن شوي په بي لوظي چي پښماني سترګي ستا

په غيبه دادا کـي بـي ستونه وي زلمـي — هوښياري بلاګاني دي شاداني سترګي ستا

بوم نهري د هوس غوندي ورمخ چي شمه زه — نابست دي بويه لس کري پرېشاني سترګي ستا

خواني بي تل تر تله د سخن شرله نصيب — حمزه چي دي ليدلي غزل خواني سترګي ستا

۱۹۵۶ ستمبر ۲ ـ پېښور

رنګين غوندي لمـون کري شفق بېزي سترګي ستا — موجب مي د شګير شوي سحر خېزي سترګي ستا

داځنګه بي وفا شوي ښتني پس له وعدي — پېغور هم تيتي نه کړلي انګرېزي سترګي ستا

سرور او کيفيت مي ساله قهره شي سوا — مستي دميو اکاندي خونرېزي سترګي ستا

احباب مي رنګ نه ګوري سپين اوسور اندېزاو نږد — داجاري تل په ماکوي رنګرېزي سترګي ستا

حيران يم دکمتري دي، دباز، که دشاهين — زرګي په يو نظر سره وري تېزي سترګي ستا

ملکونه بي د زورونو کره تـلا په هر طرف — کاته څنګه معصوم کوي چنګېزي سترګي ستا

حمزه بي نوايي کي خومره خوږ دي کيفيت — اوس نه لوري يو طرف هم غم انګېزي سترګي ستا

( )

چي خيشتي بي نن په مُل کري زلفي ستا — مشاطي هلـه کاکـل کـري زلفي ستا

عنبـره بويـه پريـشان داشتيـاق وم — مادبل په تېر کي ښکل کري زلفي ستا

چاوربخي، چـانيري کري، چادامونـه — چاځنګـل اوچاسنبل کـري زلفي ستا

زه سپين زره ساده پښتون وم قسمت مانه — سياه زره لکـه مغـل کـري زلفي ستا

چي مي خوښي دي پريشاني اوس پريشان يم — ماعـادي دتغافـل کـري زلفي ستا

دوربخـي زره راډک شـوور بدوته — چانجوري په منګول، کري زلفي ستا

اوس پـه قهـر مـا حمـزه تـه نـه ربـړي — چـي اشنا دتامـل کـري زلفـي ستا

ناربګل

(۶)

زلفې که ورېځې دي ښوري په خندا خندا — مسته د ښکلا جلوې پلوري په خندا خندا

لونګو ته مې موسکه شه، تا نه چې معلومه شي — خنګه کړي د نمر صفت ستوري په خندا خندا

دلښکلې ادا شمعې مزه زما له پاره کړه — وایي هر مین ماته ګوري په خندا خندا

ډک وي د اغزو چې بار، کوم ګوزار د ګل کوي — ماد خیر کتو په تور مزدوري په خندا خندا

ورک چې تصور یې شو، دادې کوم مقام حمزه — ماته هر کلی وایي لوري په خندا خندا

(۷)

دم د بې دمانو چې اشنانه کا پیدا — خدایږو چې بیې دم د مسیحانه کا پیدا

پرخې د سحر یوې غوټۍ ته وې په غوږ کې — هغه خه ژړا ده چې خندانه کا پیدا

خضر دې رهبر شي د هر چا لازمه نه ده — ولې لاروی دې رهنمانه کا پیدا

پوهه شه جذبه یې د الفت نه ده کامله — وېره د هجران چې تمنانه کا پیدا

بنا یې چې لیتون د حمزه وکړي هله په — بلونه چې د ټلیو په صحرانه کا پیدا

(۸)

بیانو نهال زما په اوښکو شو ګلشن دژړا — عشق مې له سوزه نه سوخته کړو پېرهن دژړا

لکه باران چې په لمن کې دوریځ وي نهان — داسې مې دکه د ګوهرونه دامن دژړا

دیده یې آب وي هر ساعت داسې بې رنګ وکړو خیل — جوړ یې شکال شوله خنداچې و دښمن دژړا

مره حسرتونه مې وو تړې د وصلت داوېرو — داسو پلو مې فاتحه ورکړه کفن دژړا

راغې په شکل د پتنګ سوزوالم بې شمار — سوزان چې شمع کړم د عشق په انجمن دژړا

لښکر داوښکو مې پسپا کړلو دښمن د فراق — د همدمانو نه خالي مې شو وطن دژړا

تار د فراق به مې قبا د محبت جوړه کا — حمزه بښو چې دېښار د رکړلو سوزن دژړا

(۹)

نن اشنا زما د بې پتۍ نه شکایت کا — بنه دی د رقیب د مخلصۍ نه روایت کا

ښکه دې شي سترګې ښتنې چې مخامخ شي — ستادې لوظې څرنګه ښکلې معذرت کا

خوند کړي چې سپږمۍ دې شپه اوږده وي ستا بېن وي — ستا د مخ او زلفو، شکایت او حکایت کا

ګوره چې طبیب هم کړي د خان سره ملګری — رانشي خپل رنځور ته څومره ښکلې عیادت کا

زړه يې که وحشي دی په رو، رويه به دي جوړشي / خان که ستاد سترګوليونو سره عادت کا
بسته يې بياکونج دګمنامی دزړه ارمان وي / هغه چې خواهش دناموري اودشهرت کا
مينه به زماکړي دقارون غونډي شته منه / سترګي دي دبخل په انداز کې سخاوت کا
خدای زده چې دی چاته،خوهريوي ګڼي خان ته / ستاساده معصومې سترګې داسې اشارت کا
وساته خپل خان دي دضمير دملامت نه / څه شي حمزه څه؟ که زمانه دي ملامت کا

۱۹۷۲ نومبر ۳۰_لواړګی.

(۱۰)

خوک چې پرېشانه وي ښکل د جمعيت کا / ښکلي چې خوک راشي زلفي غونډي په هيبت کا
بيت هنر دي مه ساته هر خوک به پرېشان شي / تابه لکه ګل د اسوېلوسره عادت کا
زلفي دي مغولي خوی يې سم نه شو کړی دي / شپې مې پېښتي دي،نه ګيله نه شکايت کا
شمع به زړا زړاکیږي د خندنو کړي / خدای زده چې دکوموسوېوزړونوحکايت کا
ماکه ستادمخ په حلقه څه وکړه نه ودنه / ترک به ملايان له کتابونو روايت کا
سيل دګلرخه کړم چې نرګس نه کتي نه شم / هغه هېري شوې سترګې بيادکتوست کا
ډېره پېرزوينه دسالي ښن به حمزه ده / سترګي يې سوادپيمانونه عنايت کا

(۱۱)

چې نظرمې زخمي زړه ته لکه تار کا / دبنو غشي دستنرخوی اختيار کا
مرم به دې چې مې په مرګ نه راضي کېږي / داڅه ژوندي دی؟ چې اقرار کا،نه انکار کا
که وزګاريه کونج کې ناست وي مېن څه شي / په دي ډېره بېکاري به خان د کار کا
زود رنجې دآينه زړونو صفت دی / صافي ډېره قبلونه دغبار کا
زړه ښکرمې دواړه وران د درد په وېش دي / که ثالث دبنو غشي ښکلی ښکار کا
راز د مينې پټ ساتي که يار مې سبخي، / په خندا چې د رقيب سره ګفتار کا
کرم که مينې لېونی خوديوبارشوم / خارله داسې غلطي چې خوک هوښيار کا
دوصال خوب مې ليدلی که خوب وينم / که خوک وينې مې له دې خوبه را ار کا
داصول په نقطه بنخ د زړه قدم کړه / زمانه دي که حمزه لکه پرکار کا

«آر سېرې

(۱۲)

نن هغه لشا مې چې جلوه د زړه په طور کا — کوره چې سرمه به مې د ... د سترګو نور کا
ستا په کونج د سترګو واکتو مې غم فنا کړ — ډېرې که تیارې وې رنوخې⁽¹⁾ به یې کافور کا
زه په ښښتنې شعله به ولې غره نه یم — هغه سروې قدې چې پخپل حسن غرور کا
ماته بیداری د شوګیرو دې ډېرې ګرانې — څه شې که په خوب کې مې جذبه راته حضور کا
سترګې خو زما د ټینبدو بلدې نه دې — سترګې پښتنې دې احترام یې ما ضرور کا
عقل به طلب د عاشقۍ څخه بې ونیرې — هسې نه چې لرې د فطرت نه دا فتور کا
مه وایه چې بیرته مرور نه بخلا کیږې — خوی به د وختونو نه خوک لرې د مرور کا
جام دې راته ونیوه ساقي د زړو میو — سترګې کره راپورته چې پیدا نوی سرور کا
ویې کړو قصور چې معطل دې کرم نه شي — یا نو حمزه ولې قصور وار شو چې قصور کا

۱۹۶۶، مرداد ۱۵ ـ لولوګی. — (۱) آر: رڼوی

(۱۳)

کله د یار سترګې ز... داسې استقبال کا — ماته مستقبل او ماضي ښکلې لکه "حال" کا
حال یې محرک وې چې هرڅوک په زړه قال کا — حال خو هغه حال دی چې مې حال لکه دقال کا
ژوند د عناصرو اتصال نه انفصال دی — ژوند د عناصرو اتصال او انفصال کا
زړه ګوشه نشین دی حو چې خوبې شوپه ګوټه کې — زغم یې یهانې نه دی په ذره ذره ملال کا
تور چې پوزې نه شي د نېکانو څه ښایست دی — څو مره افزوني د مصحف لو د حسن خال کا
حسن چې پرېشان شي زړه راښکون یې بیه وه شي — جوړه خورې زلفې سلسله د اختلال کا
کله خوږې قهر شي مرهم د خوږو زړونو — کله چې موسکی شي په مکهز مکهز لشال کا
تېرې هم ریښتینې کاندې داسې وعده وکړې — نه شول د روغجن هجرې سکلې څه کمال کا
پوخل دې څرګند شي خورې زلفې په نسیم کې — خیر د حمزه عمر که یوه جونه د تال کا
ژوند د عشق مې ولید چې ژوندون یې دی د خضر — ژوند یې دریابې دی حمزه ژوند به دې محال کا

(۱۴)

دی ساده خو زمانه به یې قاتل کا — چې شباب یې د ښایست سره شامل کا
سیند د عشق نه مه ګډېږه سپک فطرته — تا ګوزار به لکه خلی په ساحل کا
ستا دې ډېرې حیازه له حیا تېر کړم — څوک چې وشندې ایمان مینه حاصل کا

محویت خو اتها د بیداری ده — انتها د بیداری سری غافل کا
ما او یار که مخامخ کړي څه حاصل دی — آینه به آینې ته مقابل کا
زړه خو دادی چې اشنایکې مهشته دی — چې ککی مې هم درز الکه د دل کا
داهو ښیار له کومه راغی لېونتوته — اسوېلي چې په ګرمی کې د محفل کا
ژوند مشکل دی، که اسان دی خبر نه یم — خو طلب داساني بې لا مشکل کا
بې مهرې د مهرویانو غنیمت دی — التفات بې دا د دق نه سل کا

لېونی چې خان له رو غو حمزه ژغوري
چې رښتیا وي داهو کار خو د عاقل کا

(۱۵)

دا لوبکې چې د زړه نه زما سترګو ته نکل کا — چیستان د هغو مستو اشارو به ګنې حل کا؟
دوو ښهو ښېنغ کې چې خوک راشي خبرې نشه — دا نه د ژوندانه به یې مهجن د مینې دل کا
د هجر توري توري ګوري شبې خو به سپا کړي — لیکن د چا به وس کې ده چې خور د زلفو ول کا
واعظ به خو مره بوه کرم خو بوه دې زما واوري — بس دومره چې دا زړه دې لږ له ما سره بدل کا
منزل د عاشقۍ کې چې پر بوتې نه ورانهې — برېښنا به لاروو ته نښانې زما د پل کا
همدمه ددې سپند له غو اصانو تپوس وکړه — خوک شته دی چې معلوم مې داشنا د سترګو تل کا
چاره د استبداد هم چې غالبه په اصول شوه — دې ښکلې حوصلې ته لوس به کاردي چې سر کل کا
دوه کاره کړي وریل د ښېښې چې به خوروون شي — بوځای کې که مې مرکړي به بل ځای کې به اوریل کا
حمزه د محبت د تصرف نه به څه وایم — راغونډ بوه لمحه کې د ابد سره ازل کا

۱۹۷۰، اپریل، ۱۵، پېښور.

(۱۶)

که راسخ زما په لور هغه صنم کا — بتخانه به مې د زړه لکه حرم کا
ساقي زده له صراحي مې د زړه راز کړه — ورته ګوره چې عطا کوي سر خم کا
چې کرلېچ دې د هوس په وس کې نه وي — پاڅه مینې ته نعرې کړه چې بې سم کا
قام ته هغه دوه مخې تروره پیدا کړي — چې هم تروره هم کارونه د ظلم کا
عشقه د پر یه دي ژوندون شي مبارک شه — چې کاته به هر محفل کې رانه کم کا

تـل گـلان بـه دوفـاتري زرغـونيږي　　کرمـه خـاوره چـې مېـنې اوبـنکې نـم کـا
بـل قـدم بـه داشـنا په درشـل کېـدي　　کـه مـبن يـې دوه جهانـه يوقـدم کـا
حمـزه مـات بـه کـړي سنگـرد پهلـتون هغـه　　چـې لـښکر دارزو گانو منظم کـا
سـتامينوکي حمـزه هـم عجـب شـی دی　　چـې پوښـتنه هـم دتانـه سـتا دجم کـا

۱۹۷۲ فروري ۲ ـ پېښور

(۱۷)

سـردي پکې څه؟ سـرمې دفکرپـه زنگون کـا　　دلـې خوشحالي خنداچې گل په زړه چاودون کا
سـتاطمونو وچـه کـړه زمـاد وجـود ونـه　　وده يـې په خپلـه بـه مثـال دافنيـون کـا
زه يـې دم غلـط بـه سـخاوت دکـم سـتی　　مېخ ترې خبرنه وم چې خواني به يې قارون کا
بس په تول محفل کې چې يو مانه نه راگوري　　خدايو چې ماهم به دېتنگ غوندې پښتون کا
داخو جور زمانـه مروريـه رښـتيا لاړو　　پاتې شوم به دي چې اوس به مخ راته راسون کا
ماداشنازلفې زولنـې څکـه سـتايلي　　گوره ودي خپل غزل کړی که مې مجنون کا
تهښته وکړه عشق ونه که تنگ يې له حکمته　　خپل "جمهوريت" چې ورتاوان په افلاطون کا
ته که دخپل سرنه بکته زړه ونه وركوز شوي　　تابه دخپل خان هسې بې چون اوبې چگون کا
مـاوې سـتاسـاخو هر يو نن زمانـه ورک کـړو　　وي چـې داخبـره لېـونی دکـوم پـرون کـا
گلـه بـه تعريـف وکـړي زاهـد دمغرليو　　شـبـل چـې دشـرابو ورنـد انو تـه مـنون کـا
نن يې دحمزه نه له سحره سترگې سرې دي　　دلې راته بکاري چې جورز پرمه دشبخون کا

۱۹۶۲ جمرود.

(۱۸)

نـه بـه وي لـه دي چـې خـوی دسـپي وکـا　　نـه ښـايي پـښتون چـې بـې پتـې وکـا
گلـه داسـې وي چـې بـې سـيه هـم　　زړه مـې يوناځـا پـه خوشـحالي وکـا
نـن درقيـب ځنگـه تنـدی رون ويـنم　　چـا بـه وي چـې خـوی بـه دسـري وکـا؟
بيـاهم هغـه سـترگې پـښتني خـودي　　وخـو کړي نظر، کـه سرسري وکـا
پـام پـه هوس سـترگو يې غلط نـه شـي　　گـرانې بـه پـه يـورپ کـې دزمري وکـا
دامـې خـه اميدلـه هغـه گلـه و　　خـوی پـه بـه خنـداکې داغـزي وکـا
نوردې پښتوغم چې حمزه ونه کړي　　پـس دتانـه غـم بـه يـې زلمـي وکـا

(۱۹)

پـه زړه کـې مینـه بـه ظاهر کړکـه	فطرت یې څـه کااوښکلي څـه کـا؟
چې یې بـه خولـه وي زمـا د زړه وي	زما پـه خولـه شي چې څـه بـه زړه کا
لایې دیـدن شـي د دیـدن تنـده	ستـرګې اوبـه کاسـترګې اوبـه کـا
اشناچې وینې شي دیدن یې کېږي	ښېن نمونځونـه بـه نمرخاتـه کـا
اوس سنجیده شوخواني یې راغلـه	ګوزار، پـه وروځوګوابې پـه لېمـه کا
اوس چې څـه غـوارم هغـه نـه غـوارم	څـه چې زه غـوارم هغـه خونـه کـا
کلـه مې نـه وینې کـه ګوري سم سم	کلـه بـل خواګـوري مانـه کانـه کـا
زه اسـوېلي کـړم هغـه لهرېـږي	کـه زه سـاړه کـړم هغـه نـاوده کـا
طفلي بې صبره مستـه خواني شي	زاړه زلمـي کـا ،زلمي زاړه کـا
پـه موسـېدوکړي انکارلـه وصلـه	څـه پـه خوبو کـې تراخـه تراخـه کـا
فـرش دنظر مـې بـه ختمېـدودی	زه یـم نـاتوان اوبـې مهـره تلـه کـا
مینـه شـوه خوانـه سـاتم بـې پتـه	جل چې شي پېغلـه خوندپـه کالـه کـا
مړه دي لـه عشقـه چې ژونـدي بـایې	هغه ژونـدي دي چې عشق بې مړه کا
حمـزه ککـۍ دي یـار تـه کـړه کـوزې	هلتـه بـه څـه کړي چې لېمـه سـره کـا

(۱)اوږ: ګذار.

(۲۰)

رې چې دنوې بـه زړه تیـاره کا	شوخې دې ککۍ کړه چې مې دواړه ککۍ زړه
نه ده دا ژړا دې دربښناوو چې سېرلی دی	ګل تـه خـو دې ګـوره د وربـل دبـاسـه څـه کـا؟
اوس کله قصه دزړه به سترګوکې لوستی شي	ودرېږه دا تـور زمـا دسترګو چې رانجـه کـا
دهر زړونه تهږدنې ستاپه سترګو غلچکودي	خنکه دماشوم غوندې ساده ساده کانه کا
ګل چې سترګې پرانستې بې واکه به خنداشو	خان ته چې یې پام شو اسوېلې ساړه ساړه کا
زه پښنوسترګوته نیـازبین زړه درکومه	ګـورم چې نیـازېنـه پښتنـه ورسـره څـه کـا
نن خوښـه ګستاخ زمـانظره بـېرلی دی	ګـوره چې حیادهغـه ګـل اتګـې سـره کـا
پـوکړت خوخپلـه لاز بدلـه کـړه سـېرلیـه	ګـورم چې خزان تـه ،سـایه بلـه دلتـه راتلـه کـا
رور د بـېرلي دی هرهر شی راغی دیاندي	اوس بـه حمـزه واره د د نـوري مـاره کـا

(۲۱)

نن دې پوښتنه چې اشنا زما د زړه کا     خیلې برندې سترګې نه پوښتې چې څه کا
د ژوندي حسن په مړو سترګو لسم دی     چې د پرمرې مه ژوندي کا د پرسه مړه کا
دهمت زلمیو زړونه که بای نه کړل     نو به دوی د خوشحالی جونې واده کا
دا هنر زما نظر نه مینې زده کړو     چې بار خودې کله زیړاو کله سره کا
خیر که کم به تول محفل کې زه بنکاره شم     خو اشنا چې راشه د پرنه ګوري نه کا
د سربښت له زوره تود نظر دې څه شو     چې دغم ساړه نبضونه مې تاوده کا
زړونهی کې بې خپل حسن پرده دړ دی     په سبوږمۍ د پینځلسم کې به راتله کا
نه چې راغلې کوم دې خوښ دی چې بې وکړم     تشکر خو ځوک په زړه او ځوک په خوله کا
په ګل مخ کې بې بورا سترګونه ګوره     نه به واپې دمستې نه الوانه کا
برند بانه دې جوړې تیښت کړل زما او ښکو     احترام د ننواتې پښتانه کا
هغه سترګې چې ور وګورم کږه شي     څه کارونه په کږه کې دپاخه کا
تغافل کړه هدا سې د پېره ښه ده     چې سناخوی مې ارمانونه پښتانه کا
ګوره نیښت زما نظر نه که بانه کړې     پښتانه دې پښتانه به مېلمانه کا
حمزه ښکاري چې اوس پوهه په مطلب شو     چې اوس تاسره خبرې به لمبه کا

(۲۲)

حجره دزړونو یې چې پراخه پښتانه کا     بیاځای دې یکې پسه دحالاتو مېلمانه کا
حالات خو منګوټي دې په ارحت دزمانه کې     د کېږې اوښېږې اوبه خوږ دژوندانه کا
قربان دې همه لرې دې د مینې له ژورو     سرکش لکه فلک هم هسې سر په زنګانه کا
اخر د ازماښې به ګرېوان ګیرې داشناشي     خندا به مې تر خو سحر به خپرې ګرېوانه کا
تمکین د حوادثو نه پیدا لکه ساحل کړه     موجونه د وختونو که تیری کا پروا نه کا
لاکیف د محبت یې په خواتې راغلی نه دی     طفلان دې په دې لار کې چې فریاد له بیلتانه کا
ادم خو په صورت وې چې زامن دې د وختونو     انسان به هو مره نه شي چې وختونه پیدا نه کا
اشنا زه خو مېلمه ومه له شرمه یه ماخه وې     اخر مسلماني ده، دومره مست خو کوربانه کا
حمزه دارمانونو د رمې چې غم ونه کړې     حالات که شرمیان[1] دې محبت به یې شپانه ک

۱۹۷۴ مې ۱۳ پېښور.

(۱) آر شرمحان.

(۲۳)

غم خپلې مینې چرې دوانه کا
ددې رنځ د خلاصېدلو دعا نه کا

بې له اذنه یې بلا د زلفو اخله
څوک به ښکلې په سوالونو رضا نه کا

آینه چې راکړه عشق دا یې علت و
صوفي کوره چې حیران شو ثنا نه کا

زه غافل د تور او سپین نه تصور کړم
چرګه شپه به دې بانګونه سبا نه کا

و ساغر ته ګردن ښکته د میناشي
په صادق به ولې مینه اشنا نه کا

جمعیت مې د زړه زیات له پرېشانۍ شو
په هر دم راته بیا بیا کړي خو بیا نه کا

د پرهر د وینو دکې خولې ته ګورم
چې کوم خاخکې دې بنوته دعا نه کا

ستا د در خاورو ادب هسې رازده کړ
چې رانجه مې کړلې سترګې ژړا نه کا

زه د غم له د پره زوره ورته خاندم
په یو رنګ خو عشق وهلې ژړا نه کا

معشوقې شي جورولې طوفانونه
د عاشق یو اسوېلی به پیدا نه کا

زړه په خپله خور ماخور دی ورته ګوره
چې مېن شي دوه مېن به جدا نه کا

(۲۴)

هر کله نظر چې د اشنا مهرباني کا
ماد ښلتانه د تیرو ورځو ارماني کا

اوس چې اشنا ستاپه ژبه زه هم پوهېدلی
هره وینا ستا د یوانداز ترجماني کا

مه وراندې کوې ورته شرونه په بهاکې
لادې به هورته په دیدن کې به ګراني کا

د هر لباس که وکړمه خوحال مې څرګند یږي
ښېښته لکه څوچې د تصویرونه عریاني کا

څوک چې په طلب کې مرشي لکه مېږي دي
هغه به حاصله دمدبه سلیماني کا

نه ده چې ګرداب د ښلتانه شته په الفت کې
د هر چې تاو راتاو شي لا به د هره رواني کا

مه ګڼه عارف بې آینه یې د ناله
څوک چې کله کله راڅرګنده حیراني کا

زړه چرې د ښکلیو په وعدو نه جمع کیږي
زیاته التفات یې یو په دوه پرېشاني کا

سرای د دنیا ګي ته چې کاروان د سپرلي راشي
جوړه په هر لور د دښه نونو ارزاني کا

وروسته د حمزه غوندې هغه نه پاتې کیږي
څوک چې په طلب کې خپل سرونه قرباني کا

(۲۵)

اوښکې مې له ډېره ضبطه ډېره رواني کا      سینه چې خومره ډېر شي هومره سیمه طوفاني کا
پټ شي به دربخ کې کله وخې له وربخې      نرمې د شودو سرو د ژوند ترجماني کا
شوق او انتظار او اضطراب په زړبودی کښې      یار که ملتفت شو ترینه جوړه به خواني کا
بوره وي به خپل حسن چې تکل د آیینې کړي      بیا به خپل دیدن ولې دا ښکلي حیراني کا
ستر گوته دي وایه چې دا تېښته کاته پسه نه دي      پوهه داهند کې کړه چې خوبونه افغاني کا
پټ چې په لباس وي خو ښکر چې د حیرت وي      عشق ورته تصویر غوندې په برخه عریاني کا
وگوري په نرخ او بیا رقیب ته په خندا شي      کله ډېره ډېره چې په مامهرباني کا
ماته دي معلوم چې ډېرو نفس یې اسیر کړي      ملک یې دی د زړونو مسخر سلیماني کا
څو چې حمزه وینه د هنر ارزانېږي      زیاته په دیدن کې هومره ښکلې هم گراني کا

(۲۶)

چې اوتر کاته په خپر د غرځنې کا      وار خطا د خلقو زړونه ازمري کا
چې ارمان مې غوږ او خوله شي له هوسه      مینه پرله پسې څو څو ارغښې کا
شي له شونډو دي راغلي موسکا ورکه      پښه نیولې مې په لاره کې سپرلې کا
کله کله بیو نظر وکړي دا هسې      چې زه وایم مستقبل به مې غنې کا
صد رحمت که د رواج له واره نه وي      ارتینه چې خان د یار سره ستې کا
څوانان څه چې د هر زاره راته معلوم دي      کله ویر کې به فاني کې کرو کې کا
چې صوفي یې په خلوت کې هم نه وایې      ها خبرې په بازار کې لېوني کا
چې په مینه کې هنر د مېن زیات شي      په تکل د قرباني کې به کمې کا
په خیبر کې خوارج او نواصب دي      حمزه څکه صفتونه د علي ع کا

(۲۷)

هر ښکاه وایي سبا      هر سباوایې ښکا
ستاسبا یې ښکادی      دی ښکا ښکا سبا
دا ښکا دي سبا نه شو      نه سبا دي شو ښکا
شي ښکا به سبا هله      چې سبا دي شي ښکا

دبېګانه سباجوړ کړه چې سبادي شي بېګا
بامحکم شه اې پښتونه به بېګا او به سبا
بېګا وايې چې سبا کړم سبا وايې چې بېګا
دبېګا سبادي تېر شي د سبادي خې بېګا
دنويد و محتسب شه اې حمزه سبا بېګا

(۲۸)

سر و مال مې له تا خار کړو ايمان لا ته په ما دې وفا کړې ګومان لا
يو خو هسې خونړی دي د تا سترګې بل بانه په غشي روځي کمان لا
د ستا خال چې نشانه د کرم نظر دي شوم پېښې وړک شو له دنيا نه نشان لا
ستا بدن به مېسر په کوشش نه شي که مې جان د جان سره شي او جان لا
ستا رات د نور و زلفو په رات پټ دی نوره کافر دي خو کېدار دي ماران لا
د غم بار به دې حمزه څه رنګ او چت کړي چې عاجز ده ورته مخکه اسمان لا

(۲۹)

که هر څو ده ستا غمزه قضا زما خو اثر يې د ادا بقا زما
صفايې خپله رجبره وي د نور و څه به کار د آيينې خلاز ما
دنمانځه م به بېخودۍ کې تاخير مه کړه اې ساقي چې شي رنګين سبا زما
سېلاب نه يمه هر څو که بې شوايم سمندر لري د زړه نواز ما
لطافت د مهر و ګوره راته وايې اې تور ژبه نوم وانخلې بيا زما
د تقدير لېنده به ګورت کې د نظر شوه هر يو غشی شو مرهم رسا زما
د راحت به شي زما ده جهان ونه د زړه غل که چري شي زما زما
چاپه چنبل داو يو کب ليدلی نه دی رانده څه ويښې دروح غذا زما
انجمن د حسر تو نوزره مې شمع زه دوی زارم دوی کوي زړا زما
توبه سري سترګي رخصت شي به سېرلي کې بنا پيری د ميو وړي ملا زما

مشرکان دماسوامې ختم نه کړل — کړو طاقت دزړه غزاغذا زما
چې وصال یې دگوهر وخراج غواړي — پښکال شوه به خولې ژړا زما
نه حمزه ته یووهمې وجود ښکاره شوي — هیڅ اثرونه کړو عشق به نا.زما

۱) ار حمزه

۱۳۰

دا احساس دی دخودۍ کمر زما — دي په ښکته که شته پورته پرزما
چې ستازړه مې دبې کوره سوداځای شي — ستاپه پټ کې دي قربان شي سرزما
داحساس قاصده راغلې خورانغلې — ولې وايې نه راځي خبرزما
ستادزړه صداتري څې که مات مې زړه دی — څه زده څه؟ آینه سازهنر زما
دحکمت آینه ستان یې حیران مه کړه — دجوهر له باره سپک وزرزما
دحیرت کوربه خالي دمرآت کور کړ — چې پرې عکس شومبلمه بشرزما
دفلک گنبدمې مات نه کړیه چغو — دایره شود حسرت.سفرز
چې شجر دعشق مې تاندپه خیگرخون کړ — پوخ شو.بربوت.دارمان ثمرزما
نن قاصد جوړد سیلې په اوړو سوردی — حمزه وکړو اسویلو اثرزما

۱۹۶۱ ع.مزار عبدالرحمان بابا.

۱۳۱

چې هیڅ نه دی مقدر مآل زما — داماکان اوماېکون دی مال زما
په تسلیم مې حال ته راشه مستقبله — له ماضي چې خراج اخلې حال زما
دازل نه تر ابده یوه جوته شوه — اوس راستون دې شي د فکر تال زما
کاینات یوه لمحه ما د وخت ده — د قدرت یوه لمحه ده کال زما
د دنیا د ناوې حسن په یسول نه دی — په تندي یې دی د وینوخال زما
زه هغه یم نور همه اعتبارات دي — له خپل خانه دی کمال روال زما
هغه کند چې د فقیر په اوږه ښکاري — هم په سر د امیرانوشال زما
تنداره مې په جلال کې د جمال کا — چې خپلې دی هرڅوک جلال زما
عین علم شو وجدان وریې فکر — ده ولکه له هغه بحره خیال زما

(۳۲)

داحوصـله چـې وارخطـــاده زمـــا  خپلـــه وفـــا بـــده بـــلاده زمـــا

تـــاچې وعـــده نـــن دوصـــال وکـــړه  هغـــه دهجرشـــپه ســـباده زمـــا

نـــوره هـمـــه خوبـــه دتاکومـــه  ستادصـــفت خوبـــه زمـــاده زمـــا

زه به هغـه کرم چې رتي مې پرې ته  ستاپه رضـاباندې رضـاده زمـا

سردې چې نيت کړو زړور مې شو لاس  خـه گستاخي ده خـو روا ده زمـا

کلـه موسکی، کله حيـران شي راتـه  جوړدخنداغونـــدې ژړا ده زمـــا

تـه پـه حمـزه تـل مهربانـه اوســې  اى مهربانــــه دادعـــــاده زمـــــا

(۳۳)

چې داشـناغمونـه گـران دي پـه مـا  خومره چې گران هومره اسان دي په ما

خدايـه لـه دې بـې بـې خبرسـانه  مهربـانى چـې داسـمان دي پـه مـا

گلونـه خيـري گرهوانونـه نـه دي  ستاپه نظر همـه چشمان دي پـه مـا

تـاچې بـکنخادې نن رقيب تـه کړې  خاره دې له خولې شـه تاوان دي په ما

شرلورخـصت دالتفــات ســره دى  داکرمونـــه دارمـــان دي پـــه مـــا

اوس کجـاوې هـم برېـوکې گنمـه  گلـــستانونه بيابـــان دي پـــه مـــا

حمزه دا نـن پـه ميخانـه کـې ولـې  واره مستان چې مهربان دي په ما؟

[illegible]

۱

لـــرېږې دفکرسلـــسلې شـــوې زمـــا  چې دغمونوشپې ورې شـوې زمـا

خـواني يـې زلفـې پـه بـارخو راولـې  اوس نـو داور دپاسـه شپې شوې زما

داانتظـــار دى چـې ديـــوې بلـــوې  سم له مابـامـه سترگې سرې شوې زما

پـوخ مې جنون شو کـه پـه خودشومه زه  خوبـې زنځير او زولنې شـوې زمـا

ستـــادکاکل پـــه برکـــت خيـــرې  نن دپښتون په مخ خورې شوې زما

شمعې کوتاه د   داکيـــه کـړه د سـوز  سترگې خو گوره چې درنې شوې زما

مینه اشنا را سره کمه کوه / گوره چې زیاتې وسوسې شوې زما
د محبت له نازکیو توبه / پاتې پښې ابله فلسفې شوې زما
چې دې خوی بوی د سپیلنو شو حمزه / سترګې د چاپه لور کږې شوې زما

(۳۵)

د کاینات په چمن کې دی بهار د رنا / له هر یو رنګه عبارت دی هر یو تار د رنا
له کاینات ما وراء مې دی الوت د خیال / د محسوساتو نه وتې نه شي رفتار د رنا
بې له خپل خانه به روښانه حقیقت نه وي بل / زما تیرې دې چې بېدا کړې اعتبار د رنا
مینه هیڅ کله اشنانه شوه د کم لیچه سره / لکه صدام چې وي رفتار په نهفه لاژ د رنا
جوړ بلېږي ده چې به ښکارې خوبانه ښکارې / دانشوران چرې پوه نه شول په اسرار د رنا
همه تن زهرې د وصال نه داسې خبروې زړونه / لکه سپوږمۍ نه چې حاصل نه وي اختیار د رنا
ځکه شول زړونه له حسه څه بهره نه مومي / په کثیف څیز چرې کیدی نه شي اظهار د رنا
چې بېنواته مې زړه ورکړ بې نواشو مه زه / زنار نا شو مه حمزه چې شو مه یار د رنا

۱۹۷۷ اپریل ۳ پېښور

(۳۶)

مینه موندی شي د جنون په رنا / نه د علوم او د فنون په رنا
هغه چې نلو، رانه موسکی ځوندې شو / نن مې روښان دی د پرون په رنا
طلب د مخ نه و پخوا له زلفو / کښېنه تیاره ده، ګوره یون په رنا
چې فلک نه زده، هغه ګوره مه زه / جګ مې نظر ځي د زنګون په رنا
خپل تصور رانه وانخلې چې خم / پیر نه چې هم شمه راستون په رنا
در هغه چې زلفې بې پرتې وی به مخ / اوس خو کیدی نه شي شبخون په رنا
حمزه په مخ بې زلفې خنګه ریسي / ګوره جبش چې کړې لمسون په رنا

(۳۷)

شته په هر طرف کې زمونږ پام د بېنوا / ویم په شش جهت کې ویښم دام د بېنوا
جام به د اسامان ده ده محفل کې په ګردش شي / چاچې شوندې کېښودې په جام د بېنوا
خوند د بادشهۍ به بې سبب د انقباض وي / خوک چې له احلاصه شي غلام د بېنوا

موسکه مې دنیا د بوتراب په تصور ده — زیات به له دې نور څه وي اکرام د بېنوا
خلاص به کړم د ډېرو سلامونو نه په ژوند کې — پوکړت چې ماوکړو سلام د بېنوا
دا د زړه پولي مې هره زړه ده په معنی کې — بنکارې چې بريا دی پرې خیام د بېنوا
راشه د حمزه د هر وېښته نه به وتخوږ — غواړې که طالبه څه کلام د بېنوا

عالم کې د عدم مې شو مضطر شباب بیا — شاید د مخ نه دور کړو دلبر نقاب بیا
هم درد و هم دوا ده ژړا ما لره د عشق — باران فنا کړې هم ترې شي پیدا حباب بیا
واپس نه څې چې راشي جرې قاصدان د غم — اوس دا مې دی خیال نه لېږم جواب بیا
صابر خو عشق دی ولې گویا به حسن کړی — زخمک خموش سر کړي په نغمو رباب بیا
نن چشم سرمه گین نه راځي عتاب بیا — مینا کې خجل خمار کړو نشه شراب بیا
وحشت مې شو خروش کې موسکې چې یار شو — اوس بېخودې د عشق ده مخکې سراب بیا
حمزه جنون د عشق شو داعي تیار شه — اوس لاړ کړه اختیار د صحرا اشناب بیا

یاره لرې کړه د مخ نه کجه خال بیا — کړه حاصل د بونقطې نه راته حال بیا
شنه سره وابې د خوږ زړونو روداد ونه — رنگینی شوې د سپرلي، دجنون تال بیا
ننداره شوه د ناجانې راپاده شوې — نه حیران شه چې دوصل د کرم سوال بیا
د مستې نه دې صیقل اخلې ناز ونه — دې موسکې په آینه کې د جمال بیا
زړه مې جمع دی چې زلفې خورې نه کړې — شي به جوړه سلسله د اختلال بیا
پخوانې د زړه داغونه زما هېر دی — د زړه سره کړه تازه په جبین خال بیا
نه مرهې د کوهرو خراج غواړې — حمزه اوښکې په خولی، کړه پشکال بیا

(۱) ...

(۴۰)

دانقـاب دي دجمـال نـه دی نقـاب — داجمـال دي شـو نقاب لـره حجـاب
اي دیار د حجـاب جوشـه دریغـه دریغـه — چې پیري مې دی پـه برخه، نـه شباب
بـــاز د فکر مې کامتر د تـــصور ستا — لاندي نه کرونه پـه ویښه نه پـه خواب
بې نسبته حسن او عشق دواړه خاموش دي — بـې تبخیـره یـو دي ابر او د ربـاب
تـه بـدلېږه را بـدلېږه داسې ښـه یـې — چې دي خـان پـه هر انداز کړمـه سېراب
حمـزه سـپند کې د هـغې داهمه خلق — د ناکاسـې پـه سـر دي جوړ جـاب

(۴۱)

داسې بـه یم گرېوان څیري مست خراب — زه طالـب یـم د عذاب، نـه د ثـواب
داد خپل سوري نه داد د حسن غواړي — آهو چشمې کـه ترې تـه کړي اجتناب
د تـــوبې د مـــاتولو انفعالـــه — اوس نه نوې توبه کړی شم، نه شراب
راکـړې سترگې عاشقي دیار کتوتـه — بې لـه سپنده نور کتـل چوي حباب
پـه زنگـون مـې داشنادی، سـر د فکر — داچې ابنې په زنگون مې دی رباب
عشق ومانه داسې خوب د بیداری دی — چې په خوب د... اری مې تللی خواب
معلومېږي د حمـزه سره پخلا شوي — په نقاب کې هم چې کړي خپې حجاب

(۴۲)

د کوم جهان په سمندر کې داجهان دی حباب — اوریاد چاپه ننداره همه چشمان دی حباب
زره په ظاهر که ورته څېرشي، داشان دی حباب — خوپه محیط دزره کې گوره چې لسمان دی حباب
که یونفس بې هم ژوندون وي په مستي تېرشي — چې ورته گوري په گلالکه دخوران دی حباب
جوړ په دې بوه دی چې بې ژوند د یونفس راوړی — پیاله په لاس کې لکه رند هسې رقصان دی حباب
دا از د حسام دارمسا نو نوای فـناني ژړگیـه — بې دیوې کاسې نه بې سروسامان دی حباب
داغیرت پـه ما او تـاکې اضافي دی اشنا — دخپل محیط سره په اصل کې یوځان دی حباب
ژړ گیـه تېر لـه دوه نفـه شـه دوام وکتـه — له حبله خانه چې فاني شي بېکران دی حباب
تـه پوهلی ده چې خبمه دي دلېلی نه وي زړه — دنش عمل سره خوشک د هر کاروان دی حباب
د زړه چاودون به دي حمزه څه وي اثر به اشنا — که شي تناخوبه حیل خان یاندې تاوان دی حساب

(۱۴۳)

وایې چې تـوبې تـه روا .څه مطلب؟ — شـبخه ددې داسـې خطاڅه مطلب؟
مـاســـره وعـــدې دسباهرســـبا — نن خومې لږ پوه کړه .سباڅه مطلب؟
تـه ورتـه خیرګـوری زه نیـت ګورمـه — ستایه څه مطلب وي.زماڅه مطلب؟
بـل ور- راځـې چې لاړشې یولـه زړه — وایـه پـه عـالم کـې خلاڅـه مطلب؟
لاړې مرورشـوي لـه مـا؟ دېره ښه — ګوري چې دابیرته په شاڅه مطلب؟
څنګه دې حیران یمه.ممکن کړووصل[1] — اورمـه چې ستاله بهاڅـه مطلب؟
وایـه ګلـه رازدزړه چـاودون څـه دی — نیت دې کړوسر .خاندې.دناڅه مطلب؟
ښـه راغلـې حمـزه وتـه ربـاره خـو — سترګوکې چې ستاده خلا څه مطلب؟

۱۹۶۲ مصر ۱ ـ مشاعره پاره چهار. (۱) آر: ممکنې دي

(۱۴۴)

چې الفت دحدنـه تېرشي دحبیـب — بـاتې کېږي نـه ادب اونـه ادیـب
محبـت دانتهانـه هلـه تېرشـي — چې نظرهم ورتـه ښـل ښکاري رقیب
بُعدهلـه بُعدبویـه چـې قربـت وي — چې دانـه وي نـه بعیدشته نه قریب
دنـالې اودبلبـل نـسبت خوګـل وي — ګنـې چرتـه ژراچرتـه عنـدلیب
چې تپوس دزړه دزخم یې مژګان کړي — دازخمې دی پـه دنیاکې خوش نصیب
چې بیـان دیـاردخط اودخـال نـه کـا — بـې حاصلـه قیـل وقـال دی دخطیب
ستـاعلاج بـه حمزه بـل طرف ونـه شي — خوچې خدای دې بې نواکاندي طبیب

(۱۴۵)

دې غوږ کړو د مکرې دنیا پـه ست — پـه عقبی بـه دې نازلـه شـې عسرت
د اول دنبـال اول شـي د اول نـه — چې راستون شي ابتدا شـي نهایت
خودې کـور دی دنـاپوهې بـه دنیـاکې — شته په کیف د بیخودۍ کې معرفت
دنسبت غوږونـه ګـڼ دي اواز یـو دی — د وحـدت زنینـه دارګنـه کثـرت

دوصال حسرت مې ووت که ونه ووت — اوس کومه به حسرت بسې حسرت
بناپیرې غوندې دنیا ده چې دې پیغله — بیا بلا شې چې بې تېرشې بکارت
دمحبوب الهي لـه بركـه — حمـزه دی دې هريو شـعر كرامت

راغلو گله راغلو دګرېوان دڅیرولو وخت — دی به پسرلي کښې د. دراوتلو وخت
جام په لاس کې پورته کړه ساقي چې لاله گل شوله — دی دزړه په داغ مې ایله نن دخلېدلو وخت
غونچه دګلو غوندې پېغلو کې ولې ناسته يې — دی لکه دګل دغوړېدلو خندېدلو وخت
وابه وري دلاس نه مې پیاله راته کړه شوله — ای نرگس سترګو، نه دی دا په ترخ کتلو وخت
زړ کې مې کښې ده چې له خنګه مې جدا نه شې — بېکاري چې راتلونی دی زما دغوږ خېدلو وخت
وایم دسپورمۍ دېلوشو تاروته وغرم — راچې غلو په تېال دبې غمۍ دزنګېدلو وخت
کـه دزمري غونډې چې خوی دهند کې وانخلې — راغه شه په پېغله پښتنه دشرمېدلو وخت

۱۹۷۷ فروري ۱۲ پېښور.

برې مې پرده واعظه يم دپاره په انتظار کې ناست — بس خوټصورمې دی دسترګو په خمار کې ناست
سر که وي په نيغه مطمئن چې نه وي تلي نه شي — کري تيوس دلزې که هرخوږې څوک په لاره کې ناست
خارشمه له میو چې خمار د دېب لرې کا — دی چې درندانو سره شيخ په بوللطار کې ناست
شيخه طعن پرپېږده څه مسجد لره خېل کار کوه — وې دتولې شپې به رندان هم دچا په کار کې ناست
زه لکه نظرچې په ککۍ کې نيګيدای نه شي — راځلمه دبانډې څه بکار چې دم په غار کې ناست
څوځله دخپل حقيقتونو دکاروان سره — راځلمه دي سرای نه وبه بل زما په وار کې ناست
پوهه زه حمزه یم خو فرهب دعشق به څه کړمه — ازمانه سوال وي په انکار کې ناست

[۴۸]

داسې زه دیار په عشق کې يم په دارمست — لکـه ګـل وي دچمن پـه نوبهارمست
ماجې شمارنه کړې په مستولیونوکې — ای زاهده، یم خرمست، ولې هوښیارمست
دالست هغه نغمه مې لاترغوږده — نومه څنګه شم په میوددې دارمست

چي تمکین زمابدل په تلون شو — لاتراوسه خکه دی زماقرار مست
دازل نه ده مستي زمابه برخه — نقصان څه دی که شم اوس دجنګ په تارمست
ای حمزه به هغه مست دی له ر — چي دي تل دیاردمیوبه خمارمست

راز د درداو محبت مي حجر پرانست — داغ شو زیه د افشا چي مي سر پرانست
چي سنا خیال مي د زړه غوټي نه ارزي — تصور دي زما ور د بصر پرانست
په درو والي رسیده شي د منزل نه — نیک فطرت مخکي سامان دسفر پرانست
کره هوا د ازادی مي قفس هبره — مهر نه دی که صیاد مي وزر پرانست
سترګو ونه کړو دیدن په سوم د سنتي — د جلوي لاس مي دي تار د نظر پرانست
د خرد بخيي وحشت نه تینګي نه دي — خیاط هم خکه ګرېوان په تبر پرانست
حمزه وک یبي دی ول ول وربل له رازه — بي له عشقه وایه چا به هنر پرانست

(۵۰)

چي زمانه دي رخصت به سحر وغوښت — ضبط او صبر ا زت د سفر وغوښت
ستادیدن که به ژړا شوی یوسف مخیه — دیعقوب نه ورله مابه بصر وغوښت
خپل آیین دي د کرم هم پرپښوی، نه شو — آیینه دي راکره ماچي نظر وغوښت
ستابه سر چي مي خپل یاد درته غرض و — خفه مه شه که قیمت مي د سر وغوښت
خدای چي در کړل درله هسي بانه غشي — ماتري خکه د فولاد و ځیګر وغوښت
شوه معلومه چي ورک نه دي، قبول شري — دخپل زړه نه چي د زړه مي خبر وغوښت
حمزه روح دي پهلوان و له ازله — چي دخدای نه دي الفت دحیدر رو وغوښت

(۵۱)

مات شو تغافل یبي که دېر زور وغوښت — نازیبي، وپښتون چي یې پېغور وغوښت
ګوره هنر، جور یبي کړو ژوندون ترینه — عشق مي له ښایسته دیدن پور وغوښت
یوورلو نبایست یبي چي زرګی زما — سوال چي دوصلت شو اشنا کورو غوښت
ګوره دي بار خوته چي زرور دي کرم — مانه دي هم ماله سور اور وغوښت
بوه دي به مطلب یمه خو ګرانه ده — دېر دي کړو لاغم چي مي غمخورو غوښت

تادلدم بل د رقیب کور خخه — ماته اشارت کړو چې ماګور وغوښت
بې که ته ساحل غوندې بې نیازه چپ — سیند غوندې ماسروهل اوښور وغوښت
پېغلې خوشحالی کړې زماغم دیار — نور بې چې غم راکړلو مانور وغوښت
خورم لم اشناستادابرو په لور — خیر د دیدن ماکه په بل لور وغوښت
ناسره تابیادبلا نوش نه ده — جام دفلک ماکله نسکور وغوښت
پام کوه ای جذبه زما، سور نه شي — دا پر اسوېلی مې له تاپور وغوښت
پرانستې خوخو مې دحکمت غوټې — ماکله وربل چې دچاخور وغوښت
لې خو دي د سترګو نه پرسان کړه — وایه چې حمزه ولې ستا نور وغوښت

(بهار: ملزم)

سرچې مې نن دچاپه در نبروت — دالېرونی په کوم خبر نبروت
نور چې پښتون شي نوسېرې، ورکوي — واخله لېمې چې مې نظر نبروت
لاپښتنې زلفې خورې دي شپه ده — دچاپه جمع زړه سحر نبروت
مېنې ته لاړ د اوښکو عقل بابې — داکه هنر ګڼې هنر نبروت
دزړه رڼا بې خپله نه وه حمزه — خنګه بې دربغه دالحر نبهروت

(سرور)

چې دخودی په تلوسو نبروت — خود دعالم په رنګینو نبهروت
نور بې دعشق وویکې دید چرته و — یارمې دسترګو په ککو تبروت
زړه مې دحشت له خپله کوره کوي — جورې دښکلیو په ورشو نبهروت
خوی د زمرې بې په آهوکې ولید — څوک چې په سترګو پښتنو نبروت
په لهوتوب دمحبت څه وشو — چې په زنځیر اوزولنو نبهروت
ناپوهه زړه مې داشنا په نظر — لکه شبنم په پلوشو تبروت
حمزه ته کور شو په صحراکې وریاد — خیال د کاروان په برېوکو پرېوت

[۵۷۴]

اوس د عقــل مــې د ســرنه اثــر ووت ســتاکوځې تــه مــې ارمــان د سفر ووت
چې د سرنه مې زړه وویست ستا په یاد کې خود په خپله دخپل زړه نه مې سر ووت
چې لیندۍ ورو ځې دې ماته کړې له قهره لکـه غـشی مـې لـه سـترګو نظر ووت
دارمـان د مېلمنو نـه بـه خـه وایـم بـېـو راتـه شـو بل هلـه بهـر ووت
چې حمزه درسره نن سترګې خلور کړې خه خوشته دی چې له زړه بې خطر ووت

دګلـشن لـه زلمیتوبـه بهـار ووت ځـبن زړه لکـه بلبـل تـرې نهـار ووت
په توبـه کـې جـوړ مستې وه د شـرابو چې لـه سـترګو مـې اثـر د خمـار ووت
خنده روی چې لـه فطرتـه لکـه ګـل و د خوشبوی څوندي بې روح په قرار ووت
قافلـه مـې د خاطرېـه ورکـېدو ده چې لـه لاسـه مـې د صبر مهـار ووت
شمع رویـه ستا ژړا مـې ارمـان وویست نـن ارمـان دې چې زمـا پـه مـزار ووت
زه اهلـه وم خپـل ګرېـوان تـه خبرشـوی چې کانـه مـې د ګلـشن نـه بهـار ووت
چې راتلې درنـه راوراندې شـونمرمخیه خورچې راغلې لـه دنیـا مـې سـحار ووت
نغښ کـه خوشـلویدل،خوی بـې لاړ نـه شـو رنګ بې نه خې کـه پوستکی د مار ووت
لـوني خـویـس هـم دې تـه حمـزه وایـي راز د عشق دې چې د خولې نه په جار ووت
۱۹۷۰ ،جولای، ۱۴ ـ لوارګی

دی د زړه جهان مې په قرار ترېنه طوفان ووت دا سې معلومیږي ناامیده ، ارمان ووت
لاړ دې شې دعوی به خونړي هحرسمور لري غشی دا شنامې چې د زړه نه پرافشار ووت
اور لکه د شمعې چاچې تل به زړه وته زغمه راکه غلو محفل وته د ښکلیو خو ګریان ووت
غمه ده داسې خوآیینـه دبهار د حسن ده چاچې کړو لتون پکې دیار ترېنه حیران ووت
خومره راته ګران و د اشنا دمینې خاربه زړه لاړو چې ارمان بې حمزه څرنګه اسان ووت

(۵۷)

څه که په عشق کې لاجوابه ووت   ستا د محفل نه چې بې آبه ووت
زاهد د میونه پرهېز وکړو   خنگه نېکبخت و، له ثوابه ووت
جوړ ورپوسته گودې تالا کړو حسن   چې زړه رابکون دې له شبابه ووت
چاوغندلو په الفت کې جنون   ولې د مینې له آدابه ووت
تړلې پردې خودخبل خان وې زما   هغه اشنا خوځې حجابه ووت
دوېښو سترگو تصور مې کړو پوخ   خکه غفلت زماله خوابه ووت
اوس چې وحدت شو د حمزه په نصیب   خو د بیابت له انتخابه ووت

غم د بیلتانه که وخونکلیه په صاپرېوت   نه دڅه نیوس کوې له ما، خو په چاپرېوت
هسکه شو، سیوبهې دخوارلسې په تندې کې   سوري داشناچې په نیروکې په صاپرېوت
ځوک چې وې په خیال دوابسې غم دهغو دی   گرد د قاطلې څه که په خاپوز صاپرېوت
زړه به مې ترغرېورته کېدو به تسلیو   تاحو په هرخل کړو راوچت خو په لاپرېوت
پښومې ستا دلارې خواوه لاهر کړې نه دي   دلته بې نیوسه مې قدم په خطاپرېوت
ستوري د فراق د سبابې به خندا راغی   راغلو ما شامې چې د وصال په رنا پرېوت
څه به خندنو سترگوبې وکاته محفل ته   جام د صراحی نه حمزه گوره . اپرېوت

روح چې په پیکر کې د ناسوت د انسان پرېووت[۱]   غم د خان بې څه، په سرېې غم د جهان پرېووت
ولید چې ونه لید خان دژوند په آینه کې   ځوکه بې خبر که باخبرده حیران پرېووت
مخ شو له لضا، هره لمحه هره نقطه کې   ژوند چې په قالب کې د زمان او مکان پرېووت
غرېږدی د بلبلو په فضادیوسفزی کې   خیر د کوم چمن دباسه شرک[۲] د خزان پرېووت
خنگسه غرېو نېرلې فضاگانې دلاهورد ي   ښکارې د فطرت د صحیفې ترجمان پرېووت
ورځ د سه شنبې وه د شعبان نهم تاریخ و   لاس چې د اجل د یوسید په گرېوان پرېووت
گل و شنبې که بخارې محمدشاه و   شاخ د ژوندانه نه، که گرېان و، خندان پرېووت
ماوې کال یې وا یه،نوهاتف په زړا ووې   "زلنده کوکب د سیادت د آسمان پرېووت"[۳]

(۱۳۹۷هـ)   (۱) آ: پرېووت   (۲) ا: شرك.

(۳) د سید محمدشاه بخاري د وفات تاریخ، مرحوم د سید طاهر بخاري والد صاحب و.

(۲۰)

حیران یمه د ذهن په کوم لوري قدم پرېوت     ناڅاپه د سخن مې چې له لاسه قلم پرېوت
لاره یم د وجود په رنګینیو کې ورک شوی     لاړاغی په لیمه کې د وجدان مې عدم پرېوت
مرغان مې د سخن په دام کې نه راځي داولې؟     اشنادي پخواني که د حلقو نه یې خم پرېوت
زما د فکر لاس ته د جانان زلفي زولنې شوې     تصویر مې د جاکښه چې مې له لاسه قلم پرېوت
بیا ګرځي شاهدان د بتخانې زما په یاد کې     شاید چې په هنداره مې غبار د حرم پرېوت
ای دریغه تصور مې د اشنا ورت له فکره     یا جام ورته په واپې چې له لاسه د جم پرېوت
ما توره د آورد د ارادې په نیکې وکښه     یا غې چې را نه کوم یو تخیل و قلم پرېوت
آورد مې داسې زور شو چې آمد یکې پیدا شو     لښکر د جمود مات شو لوله قبضه علم پرېوت
ورکوز چې شو زور و د شعور ته زما فکر     هر لور ته د نسیان په ظلمتونو الم پرېوت
ای عشقه آیینه د سکندر دې درنه خار شي     پیدا نزې جام د جم شو چې له سترګو مې نم پرېوت
اخر مې برند نظر ته د یار سترګې د زمرې کړې     هر څوک په هغه ترنډ غرځنې ولـه رم پرېوت

(۲۱)

ای عشقه دا به نه یې چې په ما دې نظر پرېوت     ناڅاپه په تګ تګ مې شهسوار د هنر پرېوت
شاید ورته پیغور د بې لوزی(۱) مې نظر وکړو     داستاز ما په پېنوچې شرمېدلی نظر پرېوت
ګرېوان زما د شوق یې چې پاره ولید له شوقه     د غم په شبستان مې ترمې ترمې سحر پرېوت
بر بېښنا ستا د خندا مې ارمانونه سره وېشي     هر څوز ما نظر که د لیمو نه بهر پرېوت
داځنګه بې خبر شومه که څوک مې لږ خبر کړي     داځه دي؟ دا د چاز ما په غوږ کې خبر پرېوت
زړګی مې د اشنا د خمار وسترګو نه سوال کا     صیاد و ینو ما ورکړه لوکیف په خیګر پرېوت
لښاخو یه سحر کې دې تل تل پرېشانې زلفې     حمزه وایه په زړه کې دې نن ولې خطر پرېوت

(۱) آر لوطي

تندي مې خه پرېوت چې سر پرېوت     نن زما سر د چا په در پرېوت
لکه سپند په ګدېد و شرمه زه     خدای زده په ما د چا نظر پرېوت
داسې ناڅاپه بې خبر غوندې شوم     غوږ کې زما د چا خبر پرېوت
لامې همت دی د خواني په هوا     خیر که په برز ما وزر پرېوت

لکه غبار د انتظار په کونه  زما په سترګو کې سحر پرېوت
مینې څه نوی ارخ بدل کړو اشنا  ستانه مې زړه کې نن خطر پرېوت
تبرېږي بهارشو د خوانۍ راغی  پوخ شو د ځانګې نه ثمر پرېوت
د هر تعلق د دنیا پرې وهستمه  چې سیلۍ راغله درونه شجر پرېوت
څوک پسته له میخانې شو په خود  څوڅوک دننه، څوک بهر پرېوت
خان ته په مینه کې کوم سر چې وي سر  سر چې په مینه شو په سر پرېوت
حمزه هر داغ شو موسکی لاړو اشنا  ستورو بربېښنا وکړه چې نمر پرېوت

۱۹۵۱ دوس دسمبر ـ پېښور.

د بهار د مینې په ماو کړو اثر پسته پسته  نبض په زړه کې مې د ووځو خنجر پسته پسته
سرایت مې داسې عشق وکړو بدن کې  لکه جز مې د فطرت دې عنصر پسته پسته
د بهار ووځې دي خنجر، بانه دي غشي  چیچې زړه مې د زلفانو اثر پسته پسته
چې نقاب په مخ وور کړي داسې ښکاري  لکه پون کړي په وریځ کې قمر پسته پسته
داسې زه یې تهمتي شوم په الفت کې  چې د خلقو غشي ګرځم د ر در پسته پسته
په غلا غلا د رقیبانو له نګاهه  څوره حمزه د سرو لبانو شربت پسته پسته

(۲۴)

څه مې پرېښي له ژړا، واشه وګوره وریځ  چې باران وروي، سینه شي نوره وریځ
څه په دې غم که راشې سترګې لمدې نه کاندي  چې بې بارانه راځي، څه به وي سپوره وریځ
فصل مو پوخ د ارمان، دادې رندانو شولو  و... د محویل مو راځي، شوله سموره وریځ
غم ژړا راوسته خې، ورپسې نور به راشي  په بشه کال کې راځي، نوره په نوره وریځ
اوس لېرېلې مې اشنا، چغوته خان جوړوي  ساکنه نه وي مدام، دکه له شوره وریځ
ساره اخونه به مې ستا تغافل وسپځي  کړي تندرونه پیدا، له خپله زوره وریځ
دیلتانه له خیاله، دوصال خوند ونېښتي  په شین اسمان شي پیدا، له کومه لوره ور...
داسې د زلفو سودا، خلاص د سودا نه کړمه  لکه دللمو په غم، اوري غمخوره ور...
خوی د کاکل حو ګوره، غم کړي پېرزو په رقیب  په ورانه لاړه لاړه، حمزه شبکوره وریځ

۱۹۲۹، جولای، ۲۳ ـ لواړګی

[۲۵]

بې درد ورنځ وغم نه په الفت کې نشته هیڅ
بې فکرو دزړه تول نه په وصلت کې نشته هیڅ

هر څیز چې کړی حاصل ضد به یې هم شي درنه پیس
فارغ که له حشمت شې په عسرت کې نشته هیڅ

زاهده! ستا بدل دریاضت شو کرامت
خواهش یې درنه اوبه عطرت کې نشته هیڅ

حاصل خو معلومیږي دلبند دوصالت
بې زهرونه دشونو به شربت کې نشته هیڅ

لوس چې کانه کوي بیا به شي مرګ ته رالوحت
محشر دیار الیام دی په قیامت کې نشته هیڅ

دا تول دي حجابونه چې انبار یې کړل په مخ
درک یې په تفسیر.فقه.حکمت کې نشته هیڅ

حمزه که شي حجاب دماسوا دزړه نه دور
کثرت عین وحدت دی په کثرت کې نشته هیڅ

چې دي ماونه اشناکړو.نااشنامخ
ستا په مخ کې راته ښکاري دهرچا مخ

دهرمخ به مانه مخ شي دروغ نه دي
هغه ښکلې که کړومانه په رښتیا مخ

په نظر نظر کې فرق دی نور څه نه دي
په دنیا کې هریوشی لري زیبا مخ

چې شوي نهرله عشقه څه شي که لیلی شي
په هرڅه کې ومجنونه دلیلی مخ

چې موسکی شي څه زاره مې رابه زړه شول
داسې ښکاري چې لیدلی مې ودا مخ

زه حمزه که دهغو سترګو قتیل شوم
غروره نه ګڼم کل دمسیحا مخ

۱۹۷۷ جولای ۲۶_اولرګی

په مخونو کې ښایسته مې دی د یار مخ
دی حبیب د تصویر بل رخ د دلدار مخ

په لیدو یې مراوي زړونه تازه کیږي
عطا کړی ورته رب سدا بهار مخ

چې مشام د جهان صدام به معطر وي
دجانان مې دی داهسې مشکبار مخ

شي غالب یې رعب د حسن په خوبانو
په محفل کې چې ځرګند کړي ګلعذار، مخ

کړي وروځې دي زما د یار وګوري
که به مخ کې کتل غواړي د تلوار مخ

و حمزه ته دي رب بل مخ ځرګند نه کړي
چې یې لیدلی ترڅو نه وي د ستار، مخ

○ زما مرشد پاک.

(۲۸)

ستا حسن چې ښکاري د هر چا په مخ — خوک به ولې تېراونه خوري ستا په مخ
ولېږ بېدي زلفې به يو سوال زما — ښخې يې نوکاري کړې هم ستا په مخ
ستا د سبا لوظ ورته سم بربنبې جوړ — تولې د يوې مرې دي ديګاه به مخ
کم دي شي ژوندون خو چې غم کم نه شي — بيا مې نظر وکړ د اشنا په مخ
مر د محبت وته راخې وخې — رنګ وي پراو بېل د مسيحا په مخ
ګورمه اشناته څه زرور غوندي — ګوره څه اخفاده د افشا په مخ
چاته مې غم وکړو خبر هېڅ نه شوم — موسکه چې چپاشوه د صحرا په مخ
مانه چې موسکې لکه برهېنا شوې ته — سترګې مې جوړ نن شولې پيدا په مخ
ګورې چې حمزه ته په پښتون نظر — تل دي تاثر له هم دا په مخ

ستا جمال دی نمايان زما په مخ — ستا دي خداى کړي نمايان رضا په مخ
که هر خود سوری سوری لېده نه شي — ستا د زلفو سورې وينم ستا په مخ
ستوماني ترڅا بسته مه باسه بياوايه — که ښکاره کړ ملاحت سبا په مخ
نه ګل قند دا تنګوور کړه مريض ته — طبيب څه کړي چې دي شته دوا په مخ
که د چا په مخ خلاصې شته له عذابه — نو باده هم شي روا د چا په مخ
که خوله نه راکوې هغه ادا وکړه — له حيا کېده لاسونه بيا په مخ
په فراق کې د حمزه ديدن بنه نه دی — وي همدمه يې مبلمه قضا په مخ

هېڅ پروا مې نشته د دنيا په مخ — سترګې مې پرانستې د اشنا په مخ
ګوره جلالت د يار زما په مخ — ګوره تماشا د تماشا په مخ
مخ که د دنيا د ناوې ګورمه — ګورم يې بې شک خو د عقبى په مخ
سترګې سترګې جوش کې د منزل يمه — جوړ د بربوکې شوم د دريا په مخ

چرته د خندا نه مې موسکی چمن — یا چیه چپیا یم د صحرا به مخ
یار مې مسیحا مدامي ژوند لرم — زه رونق د ژوند د مسیحا په مخ
زه حمـزه ملهم د عاشقانو یم — لرلم چې قرآن د بې نوا به مخ

(۷۱)

چې اشنا مې له قفسه کړي صیاد — بس له هغې به بیا ماکاندي آزاد
جفانه ده، په دې خیال یې هېرومه — گوندې داسې شم اشنا ته ور په یاد
داشنا کوڅې ته باده چې رانه شې — څوچې نه کړم دغه خاورې به سرباد
ته قایل د پښتونه یې زه پښتون یم — مینه چرته اجتماع کې د اضداد
هره پاڼه اوس دوخت لرلم په ترهه — زماني راباندې دهر سبق کړو یاد
په شېرینه خوله اوس خلک نه تېروځي — خبردار په کم فهمي شول د فرهاد
جمعیت له هغه قامه ځغه ووت — چې خودبین اوپرېشان یې شول افراد
ده مې وینه دملت، داشنانه ده — اماتـــه ســـرمایه ده دجهـــاد
نن رندانو د زاهد لباس اغوستی — حمزه اوره چې به څه کاندي ارشاد

۱۹۴۹ اگست ۱۲ ــ لوړگی.

(۷۲)

وایه څه خوته د فراق لاس نه دی که بد؟ — ای واصله وایه چې دې لاس نه دی که بد؟
څرک چې غلامي ته د شاهانو هوسېږي — دوی زده د هېڅ نه زده چې نخاس نه دی که بد
اصل وي محفوظ هله چې نقل یې موجود وي — ودې پوښته فهم چې وسواس نه دی که بد؟
خط مې درلېږلی جذباتو ته یې گوره — دا خیال ونه کړې چې قرطاس نه دی که بد؟
خوږې د اشنا خال د عاشقانو وینې غوښتي — وپوښته هندو چې خون اوماس نه دی که بد؟
ورځ مې په کتو، په تصور مې شپه تېرېږي — پوهه شومه اوس د وصال آس نه دی که بد؟
څو خله کرم پېږي اشنا وکړو شکر نه کا — وایه حمزه زړه دې ناساس نه دی که بد؟

(۷۳)

بوی حیران وي درفتار په آیینه ګرد — رنګ وګل وي دبهار په آیینه ګرد
په تراخو میو لذت دتوبې نه خي — انفعال شو دخمار په آیینه ګرد
تصور د یاس خلا ده په بېلتون کې — مه شه مه دانتظار په آیینه ګرد
دبوسې په وخت مې وېره کړې له آهه — چې بې نه شي د رخسار په آیینه ګرد
صافي، مهل دزړه، قیام دصفایي دی — دآیین نه شي زنګار په آیینه ګرد
تل بیناوسه، که نه وي نوپیدا کړي — خسب د سترګو، ددیدار په آیینه ګرد
اختبار دې څه ورکړی د حمزه نه — چې بې دی د اختیار په آیینه ګرد

(۷۴)

چې اخیستی چا د مال او د کمال خوند — پېرې لازم شو چې به اخلي د زوال خوند
که بېلتون په دې خبر وی رابه نغلو — چې به درد کې بې دوار شته د وصال خوند
راز د عشق ورله کلی پاتې ګل نه شو — چا چې واخیست د پرهر د اند مال خوند
د عاشق بې چې نصیب د لیدو نه وي — د مهرویو به وي څه د خط وخال خوند
دجنت پیالې دفکر په خوله شومې — څوک چې اخلې د سرو لبو د خیال خوند
ای زاهده عاقبت دې ستا روزي شي — ما اخیستی د تهمت او د جنجال خوند
ای حمزه که سودایي شوې شکر وایه — چې دې واخیستو د زلفو د شمال خوند

(۷۵)

بس هغو زلفو چې خوړون بیاموند — ما د غزل نوی مضمون بیاموند
عشق مې دغم او خوشحالي په مېنځ کې — پس له کړاوه څه سکون بیاموند
نن دې چې بیا راکړه وعده دُ سبا — ما مرور تللی پرون بیاموند
بیا زه په طمع د وصال ولې یم — چې په هرڅیز کې مې بېلتون بیاموند
زه به حاصل کړمه د عمر وصال — که حقیقت مې د بېلتون بیاموند
سم د خرد مې کړلېچونه شو تېول — هغه ساعت چې ما جنون بیاموند
بیوه چې په راز د محبت شومه زه — نه مې لیلی نه مې مجنون بیاموند

بـره چې پـه خوی وي ستـادزلفو دمـخ — نه مي هندکي نه مي پښتون بيامونـد
مادنبايـــت دتعـيين پـه مقـام — چرتـه مجنـون نـه افلاطـون بيامونـد
لاالبوتـوب مـي اوړده سـاه رابـكه — چې مـي افكـارو غزبـدون بيامونـد
دهغومرووسـتركو سپندشـه حمـزه — تـاپكې راز چې د ژونـدون بيامونـد

(۷۷)

خرد تجلې زره زما چې کيف د جنون ومونډ — کرليچ مي دقسمت له هغه بستـه سمون ومونډ
برېښنا د مخ يې ونغښته د زلفو په نيږدکې — ليجـر ارزوګانو زما خکـه سکون ومونـډ
ننـ سترګې دې راګوري، دسبا په نظر ماته — اشناجورې مضطر زړګی مي تللی پرون ومونډ
بياځاى دشوندووزلفوسترګو نه وي په وصال کې — حريم د ذات کې چرته چا درک د شبون ومونډ
الفت چې مرتسي وتـه د عشق ورسيدلو — بيا علت حمزه ما، نه زيارت، نه سمون ومونډ

۱۹۷۵ اپریل ۲۹ ـ لواړګی

خدای زده څه مي دی مراد اوڅه مقصود — هيڅ خبر نـه يم پـه زيان اوپـه بهبود
كـرم پرېشانه تـردي حـده رلـيانو — چې وهمې اوس رانـه ښكاري هر وجود
هـر چې كـرم هغـه كـوم د يـار دپاره — اوكـه يم هميشه خان تـه پـه سجود
دي موسـى او ابـراهيم زمـا نومونـه — هـم پـه خپلـه زه شـداد يـم او نمـرود
ياخو هيڅ نشتـه دا واره وهم و خيـال دی — او كـه وي نـو بس د يـار بـه وي وجـود
هـم مـراد يم، هـم مريـد يمـه پـه خپلـه — هـم طالـب يـم سرګردانه هـم مقصود
د خپل نوم نـه هـم ثابـت لـه مـا دعوی ده — يـم حمـزه د هـر وجـود سـره موجـود

(۷۸)

وختونه چرته رانه وری نه شي سامان د و. — نه ودانيږي بې له ماچې هيڅ مكان د وجود
راشه تفسير چې درته وكرمه ``انسان د وجود — چې دهرڅيزسره احساس وي دخپل ځان د وجود
دا برموكې دې كه اشيا چې ظاهريږي ترېنه — دی سمندر په حقيقت كې بيكران د وجود
ته'' چې وجود له ذاته بيل كنې لرپوهه كره ما — دذات احساس به څنګه وكړو په فقدان د وجود
پس د تفصيل ختې نقطې ته د اجمال ورسيد — راشه لرڅير خو كاينات كره د انسان د وجود

بې له پوذانه مې احساس ته هیڅ حصول و نه شو — چې د وجدان پنجې مې پیاموندو گرېوان د وجود
هغه هم هلته چې سلوط د اضافاتو و شو — بس خوپو ته دی چې حاصل بې شو وجدان د وجود
ثم استقاموا دې حاصل نه شو هوا بو وري — وکړو رجعت دې چې پیدا دي شو عرفان د وجود
"هغه" او "دا" هم اشاره د يو وجود ده حمزه — پروت په وجدان کې دې که څو وشي نسیان د وجود

(۱) ار: وکړو. (۲) شیخ احمد سرهندی ته اشاره ده.

[۷۹]

زور د بنکلاو، چې ورېل دې الزول پرېښود — که په سینګار کې آیینې د رته خلل پرېښود
ما د صحرا د عطر بیزې خاموشې د باره — د ګلستان د هنګامو څکه تکل پرېښود
عشقه دانه بې، چې رقیب مې سلامت ګرځي — ګنې کېدی شي چې پښتون چرې بدل پرېښود
ورنه جهان همه روان دی، زه به هم ورسم — همدمه ما څکه د یاره لوړ منزل پرېښود
زړګیه سر ګونه رانه شي راز به ستاښکاره شي — دُرِ صدف له لاسه لاړو چې بې تل پرېښود
چې د ازل او د ابد په عینیت پوه شوم — څکه تمیز مې د ابد او د ازل پرېښود
بس خو مېنود منزل ته مې د یوې کښېودې — په هره لاره مې چې نښان ورته د پل پرېښود
نن څه په شوق بې د رکتل سترګې دې ښکته کړلې — هسې دې لاس ونه د رغلی ولې غل پرېښود
لاځو یه سبمه د پښتون به نور ګلان وکړم — حمزه شباب د تخیل مې که اجل پرېښود
که تغزل او س د حمزه په تفکر شو بدل — ولې په دې مه کړه یقین چې بې غزل پرېښود

۱۹۷۴ م نومبر ۱ سه‌پهانه د پېښور په لار

زما په پوهه کې چې علم یو خلل وګرځېد — چې تصور د ابد هغه ازل وګرځېد
ما د شوې بنکلا هلته لطافت کړلو جس — چې مې الفت د لطافت ځنې شدل وګرځېد
شول مې دېلو نو بنیا نو نه خند نې خند نې — هغه که څو مې د رقیب د پل په پل وګرځېد
د هغه بنکلي د کتو یه د رته څه وایمه — چې را کتل یې څو نظریې څه په چل وګرځېد
د دوه مینو تر مینځ مه راځه که ژوند غواړې — لکه دانه چې په میچن کې راغله" دل وګرځېد
دریغه چې عشقه نه همه عمر مهجوریاني شي — تنده چې شوه "سراب اشنا" د مینې جل وګرځېد
چې تصور یه ویرانه کې داشنا راغی — حمزه که څو هغه صحراوه څو محل وګرځېد

۱۹۷۲ م فروری ۲۱ پېښور. (۱) آر: راغلو.

(٨١)

ما د فرقت سحر صبا ونه لید ... یار مې په سوز او په زړا ونه لید
ده طائفه د معشوقو یې وفا ... یو مې یکې هم باوفا ونه لید
زاهد وصل طلب کوه، ما کوو ... یار مې په کور او په بیدیا ونه لید
نل شکایت له عاشقانو کوي ... ما د چا یار له چا رضا ونه لید
داسې کشتي کې سور سر کومه ... ما په کشتي کې ناخدا ونه لید
حیف و صد حیف دې شا په ژوند دې حمزه ... چې دې سپین مخ د بېنوا ونه لید

(٨٢)

روه مې زخمي ځاځې تري خون ما برې پرهر ونه لید ... عجیبه دا د یار په لاس کې مې خنجر ونه لید
که مې وصلت ونه شو، خوند مې د الفت خو ولید ... میوه یې خوړي په ځانګه چا ګل د اینځر ونه لید
ارض و سما په کل حکمت کې د فراق په نغري ... حیف دې چې زه شوم خاکستر یار مې جوهر ونه لید
چې په بې شراب د یار د سترګو خمار و نوش کول ... ځکه بل کس مې بې رندانو په کوثر ونه لید
داسې اثر د اشنا د برند و سترګو په ما ... وکړه ندا رانه نه رضوان چې دې محشر ونه لید
زه د فراق زنجیر په غاړه په وطن کې یمه ... تېرې شوې دوه میاشتې او ما اللّام سرور ونه لید
د بېنوا د غلامۍ مه کړه لافې حمزه ... چا وفادار په دې جهان لکه قمر ونه لید

(٨٣)

عشق مې محتاج د هیڅ هنر ونه لید ... برق مې حصار په بال و پر ونه لید
حیف په ژړا کې مې اثر ونه لید ... زارې اثر چې ما اثر ونه لید
چې کړې وروخې داشنا نه ویسم ... ځکه هلال مې د اختر ونه لید
د عشق په خوب کې مې چې خوب ولیدو ... د ځان په تن باندې مې سر ونه لید
برق نظر د بېنوا چې راغی ... حمزه وجود مې د عنصر ونه لید

(٨٤)

ما د اشنا د مینې خوند ونه لید ... ما یې د سرو لبانو قند ونه لید
د یار د ورو خو په خنجر چې شو غوښ ... خپل زړه مې بیا چرې پیوند ونه لید
صنم په داسې صفایي کړم شهید ... چې کړو یې ګوزار ما یې مروند ونه لید

تیر مې په درکې شو عمرونه دیار مخ یې ماهیځکله څرګندونه لید
بنده فاعل دبندګی ته وایي مابندګی کې سربلندونه لید
حمزه چه بې کړو بینوا رانه مخ زړه مې بیا خپل چرې خورسندونه لید

۱۸۵

لوی دالفت نه مې بل غم ونه لید زیات مې قاتل ددې نه سم ونه لید
چې شې ناکام، سینه زما وګوره زاهده، تاکه جام دجم ونه لید
چه چه مې دصحرا وکته ماځه نشان یې دقدم ونه لید
دګونګ او کوڼ نه څه ګیله ده په کار ګفت وشنید مې دصنم ونه لید
ماورته زړه کړو دسینې نه بهر نوم یې خپل بیاهم پرې رقم ونه لید
څکه پرهر مې دځیګر شو ناسور تل خوري ګوزار او ده ملهم ونه لید
دی په ناسوت کې چې په تا ای حمزه مابه بل داهسې تورنم ونه لید

۱۸۶

چې مکیز دې کړو دلبر ورسره ګډ نظر څه و.شو کوثر ورسره ګډ
زه له عقله خبر نه وم چې سر که ده مابه کړو دعشق شکر ورسره ګډ
عاشقی دهلاکت کمر نه بوتلم ماشا یوه چې کړو هنر ورسره ګډ
کجاوه وه دلیلی که بربوکی وه جوش دشوق مې کړو نظر ورسره ګډ
دقطرې نه سوانه شوې د زړه اوښکې څه که چاکړو سمندر ورسره ګډ
ده بهګاه دجابه مستو ستر ګو څنبلې واعظ څه وشو منبر ورسره ګډ
په خلوت جلوت دې خور شو حمزه شعر څوک دننه، څوک بهر ورسره ګډ

۱۸۷

چرې نه وې حق لیدونکې سترګه ترتر سودا نه برېږدې د غیرو چې وې سرسر
معشرلې دې په بر د بري بري ګوزې د دلبر د بر نه نښته د چا برسر
څوک چې خاورې وې د پښو د بایسته وو په اسرارو به یې چرې نه شي سرسر
اتکې د اشنا او د رقیب شوندې ګی ګی دې معلومه ده او زر زر

مابه چرې د رقیب سره سم نه کړې — اس خو اس دی خلق پوهه دي او خر خر
امتیاز لازمي ځیز و ،شک ونه کړې — د یو جز نه ښخه ښوه او نر نر
چې حمزه د بو تراب رض، د در تراب دی — خکه ګی ګی نه ګڼې نه زر زر

(۸۸)

د غلطۍ نه دی د عشق زما سفر — ما سوا کړو د جنت نه حور سفر
شي صافي زمانه روڼ کړي تنا مې — د رڼا خوږه کثیف هم وي ګذر
ښت ورک شو چې زلستون شوم ځان مې ولید — ویني عکس د آئینې نه ځیل بشر
عکس ویني ځیل معکوس د آئینې نه — د ښت دویې پرده ده پر بشر
د ښت آئینه صافه شوه پار نه د — مابه ځان نه ځان به ماته کړم نظر
ښا خندا مې زیر بشر شګفته نه کړ — د سحر به ښازده ګر نښته اثر
ځواني ځرنګ د سینګار اجازت د رکړ — لیوتوب خو کړي د عقل نه خطر
ځل د دید په بام موسکې شو ښکته پار نه — پورته بدر راښکاره شو ښکته نمر
ځر یو ښولي ارمانونه مې پخلا کړه — چې مې لړزنده ځواني ده په سفر
انتظار مې اسویلي نه جوړ شو ښتې — اضطراب کړي ځزونې د محشر
حسن، عشق او معشوقه او عاشق یو دي — کله هغه کله زه شم سرور
کله کله د ځیل شعر په اور سوځم — دا به دي چې مې اشنا دی سمندر
ښا ښا لره بلبل زما د فکر — ګله جوړ به شي چې خوري د زره ثمر
د سینګار په وخت خو ته یا آئینه وي — خو چې ته نه یې له عکسه کړي خطر
ښکلی پار مې ښا اشنا دی له حجابه — خو چې نه رسي پرده شي ځیل نظر
ګنګرسی دي په نیاره او په جیبا کي — په دي شور کي اشنا نه راځي بهر
ما حمزه جیران ګرهوان په سحر شه ده — چې دا وښکي دي، که پرخه د سحر

(۸۹)

اوښکو ګلرنګو ته مې ګوره حکایت څه بکار — زه چې ګوهر په مخکه ښندمه دولت څه بکار
خفه رندان دي چې توبه مې کړې بیا له میو — دیر معلوم توبه شکن نه شکایت څه بکار
په هزار ژبو مې خاموشه ښکلی یار دی خبر — رقیبه ځای دی د ادب ستا وکالت څه بکار
که عنایت په نهایت وي عنایت څه بکار — که نهایت په عنایت وي نهایت څه بکار

حیض و نفاس سبب د شرم دي مردانو لره واعظه هرش کوه خواهش د کرامت څه پکار
د زوروکان د کینه مخکښي پطن نه لري رلیـه ستا مجاهده او رياضت څه پکار
نوم د حمزه چي په نامه د بېنوا ستا به شي حقه غلط وا دا وايي شهرت څه پکار

۹۰۱

د غیرو ښکار نه وي هیڅري د شیرانو پکار د بل د خوان یخې توکري دي د شیخانو پکار
د عشق غمونه په قوت به اوچت نه شي له چا د دو دپاره لوی همت دی د مردانو پکار
پیرمغان جاري کړو حکم چي واعظ راولي په میخانه کي نن هغه دی د رندانو پکار
لري زنار د تسبیحو بي کړي د غاري خني دلـي خېزونه دي اکثر د ملکانو پکار
راضي به نه شي بي شرابو د الست دی حمزه نه دي نور څه د بېنوا د ملنګانو پکار

۹۱۱

په فراالجنرکه پري باسي ته خندان ـ ر سحره پريو خه په تيامي دګرېوان تندر
نن بي په مخ د طبیعت د تازګی نخښي وي ويه دي وخت بي تبسم دشین اسمان تندر
ذ اداګـانو تندرونـه دي زاره شواشنا اوس که پرېباسي په ما پرېباسه پوخوان تندر
غوسه دي لړه وه لابرق ودموسکا وريـي ساده مـن څه پېژند ودامتحان تنـدر
بلبلـه بيانوحيثيـت دتادجالي څـه دی چي هغه شوخ و غورخوي په ګلستان تندر
ته زمااوښکوته موسپړي هيڅ خطرنه کوي ښکليه خبرشه چي پيدا شي له باران تندر
حمزه په مخکي درقیب کوه ستاینه دیار اره خوله سهزل دغزل خوان تندر

۱۹۷۱ اپریل ۲۴ـ لوړګی.

ســـتا دزلفو ملامـــت او زمـاســـر مـن هغـه دی چـي وي پـه بلاسـر
مادیاريه زره کـي ځـای ونیـوو رقیبـه رعـب پرېږده دروهـه ستاويه چاسـر
تاچي مانه نه کتل په ټول محفل کي ستاالصور دی چي شو خلق په ماسر
څـه امیـد بـه دسکون کـوم لـه تاتـه چـي همـه نـاز و ادا يـي سراسـر
حمزه، ستاهمه خبري بـه شي باتي چـي يکـي نـه وي دخبـري خطاسـر

(۹۳)

ستاله هوسی ستر گوکه زمادی ترهېدلی نظر — داخوراته وایه چې ستاولې بورنهدلی۱ نظر
ستاچې راتـه بې سـبه نن دی پارهېدلی نظر — سم په خای د زړه سره زمادی دردهدلی نظر
حودبـه دککـو دا سـپيلنې فرېـانوم در — شوخه بې نظیره چې به تامې لګېدلی نظر
سپند عوندې بې بـاره که دې هیڅ نشته په ماوته — خدایږد۲، چې زماهم په ښتوکې لمبېدلی نظر
پم کوه دوخت غوندې په بېرته جاروتل نه کوم — بیارارسېدی به نه شي ستاداګرځېدلی نظر
ستاولداسا،۲مرېنه انوارورستادمخ کرو . — بېرته مې راتلی نه شي لېمونه نړېدلی نظر
دهر دي مالېدلې تندرونه داسې نورهم پخوا — پرې مې پړده واعظه خوخوځل مې لغزېدلی نظر
وار بې خطانه کرو که بې ولره دنظرغشي وو — خوخوځله پرېوت خوبښتون وياځېدلی نظر
اوس دړه قراردستر ګونوریه دي به دي رادرومي — خوځله مرشوی ژوندی شوی رنځېدلی نظر
اونکې دحمزه په بارخوود ريدې برېښنابې وکړه — تاچې کړو په ناز ورته راپورته موسېدلی نظر

۱۹۵۲،اګست۱۷_لوارګی.

(۱)بار بورګېدلی. (۲)بار حقیکو

ستا د نظر د تجلی سره چې تللی نظر — نر اوسه ستر ګو ته زما نه دی راغلی نظر
زما زمري نظر که ناته اوچت هم نه ګوري — ستا د هوس غوندې وې بیاهم ترهېدلی نظر
لاسرمایه د ارمانونو بې سوا شوه اشنا — ستا په ورشو کې چې ولجه و شو ګډلی نظر
دا غیرت خو پخوا نه و خدای دې خیر وکړي — خرنګه نن د هغه شوخ دی بورنېدلی نظر
حمزه په مینه کې تاثیرهم ابوته غوندې شي — چې مې د اونکو په اوبو دی سوځېدلی نظر

(۹۵)

هوب چې شـودمیوېه کاسـوکې زمـافکر — اوس دي اشنایکارې په لېمسوکې زمـافکر
بېرتـه راستنه چرتـه جبـه دماضې نـه کـړي — ورک چې دې بـه تېروور خوشبوکې رمـافکر
زه دمحبـت دمجبورېدېـه لـیون بـم — دی بـه کجـاوو ســه قـاطلوکې زمـافکر
رایـې دروخبرلګـه نـسیم لـه کومـه ګلـه — دی چې بـه لوېدوبـه هـسکېدوکې زمـافکر
پوهـه شـوم بـه دې دمحبـت پـه انتهـاکې — داخوهمـه ورک ووبـه بېښنوکې زمـافکر
خدای زده نور به خومره چیـتانونه دژوند حل کا — ګبرجـې دي بــه زلفوزولنـوکې زمـافکر

زه دي ګرانه عشقه څه داهسې مجرد کړم    دي حدالـه ذهنه به کتــو کې زمــا فکر
پوه د عشق په راز شوم له صحرا کورته واپس شوم    ومونـدو سـبق بـه بريو کـو کې زمـا فکر
پوه خوشوم پري بيه، که زه حمزه لېونی نه شوم    خوان شــو په صحبت دلېونــو کې زمــا فکر
۱۹۶۰ جون ۱۵ ـ لواړګی

خوب د مینې کړي بیدار شو زما عمر    بس خو واره انتظار شو زما عمر
که دمینې دبنو خار شـو زمـا عمر    دیباست دغاړي هار شو زما عمر
په معنی کې مېن شوی به ماشوم یم    خدایه څنګه بې قرار شو زما عمر
چې دیدن بې اوس دمیاشتې نه په کال کړ    وبر بې عمر شه، بسیار شو زما عمر
غم د زلفو ګريبـان دلېـونې کــړ    دخپل لاس نه تار په تار شو زما عمر
بنایسته شولکه زلفې دمهرویـو    په وسنخ دانتشار ° زمـا عمـر
عاشقي مې دفطرت تارونه سُر کړل    سندریز او نغمه بار شو زما عمر
چې کافر د تورو زلفو مې اشنا کړ    خکـه مالرهز ° ر شـو زمـا عمـر
چې دعشق په نقطه نه وبې قرار و    برقرار شو چې پرکار شو زما عمر
چې مې ګام پورته کاوه په لاز د وصل    خود فراق لـره پیـزار شـو زما عمر
اوس له خانه په وعده د یار بېزار شي    حمزه بکاري چې هربیار شوزما عمر

۱۹۷

تګ دی، پرله پسې تګ دی کاردعمر    په هیڅ حال نه دی ممکن قرار دعمر
پـه عـلاج سـره خـار دمیولاژشـي    لـري نـه کـړوهیڅ عـلاج خـار دعمر
هـره لاره کـېي خوینـد ترلی کـيږي    بنـدولی هیڅوک نـه شـي لاردعمر
وخت اوعمرلکه دوه غیرګوني وروڼه    تګ دوخت ورسره سم رفتار دعمر
خوچې زه یم عمرهم بويـه چې شته دی    چې زه نه یم وهم وخیال کردار دعمر
وفادار کلـه یـو نـیم خوییـد اکيږي    خووفاچاسـره نـه کـړي یـار دعمر
څوک صرفي اوفلـقي کـه ماخبرکړي    زه پري بـاریم کـه پـه مادي بـار دعمر

مادامونه ورته اینبي ووچي ګېرښي | په اخرکي ګوره زه شوم بنکاره عمر
دي زمابوخونفسه نورخه نه دي | ورته وايي چي داخلق تاره عمر
کوم سري سره چي وارد خيل ايمان وي | هيڅ اثر پري بانډي نه کړي دار دعمر
په همت کي برابروي دزنانو | چي په کم ښيبي هرچاته شماره عمر
په داخه چي دغفلت نشه يکي وي | که خواني ده سراسر بهاره عمر
۱۰ داسي وړي نشته چي مورنه شي | خومورته شو هيڅري بهاره عمر

۱۹۷۷ مارچ۷_لواړګي

ماته زاهد که کړي دنیاپیغور | هغه ته کړم به زه عقبی پیغور
میده کول کړي خوبنکالو دي نه وي | فلکه واوره د اسیا پیغور
مینه هیڅ وي د دنیا پیغورا | بس خو بو بدوي د اشناپیغور
پلونه مي بنکاري په ورشو کي د يار | وي به بي خايه د صحراپيغور
اوس چي مشغول د زړه د داغ سره يم | مه کوه سترګي د سبا پیغور
تا د اخفا دومره تاکيد به نه که | راکوي اوس چي دافشا پیغور
بنکاري چي روغ شو دکاکل لیوني | چي بي محسوس کړو د سودا پیغور
يم خو پښتون خو د اشنامي وي نو | پورته به نه کړم د بيل چاپيغور
نش دي خيل جام يکي جابه کړه ته | خیرکه وي تاته د دریا پیغور
واعظه ستاخونصیحت وي منم | ماته دي جوړه شي وینا پیغور
نن مي دي سترګوته اوجت وکنل | په تیتو سترګو وکړه داپیغور
همزه له خولي مي د رقیب واوره | وي به په وارو کمي زيبا پیغور

(۹۹)

زه شوم آينه چي ګورم ستا په لور | خیرکه اوس نظر نه کړي زما په لور
ته رتـل شـرل کـره زه وفـا کـوم | سترګي خو د سبي وي د آقا په لور
شو چي سپوږمي مخيه مي نظر په تا | نه کرمه نظر د توتيا په لور

گوره مې همت چې ستا طلب کوم — پورته مې قدم د کبریا په لور
سترګو ته زما توري تیري ووي — تور به موسپین سپین شي د سبا په لور
پرانېزه لبان چې زه رنځور یمه — پېښه اشاره کړې د دوا په لور
لور دي د هجران کړې دوه ټوټې زما — ګوري ما له رشکه نن زما په لور
زه حمزه د زړه له کوره تلی یم — یم لکه چې غږ وي د صحرا په لور

۱۰۰

ښکه شوي اشنا د نا اشنا په ښهر — نن خورانه بېکاري د بل چا په ښهر
خود راته علبی شوه د دنیا په ښهر — رنګ مې چې دنیا کړه د علبی په ښهر
ګډ مې اسوېلي وي د خندا سره — رنګ مې د اخفاوي د افشا په ښهر
ښوري د بوي ای د نسیا[1] لوزه ته — ښنا د ځه ربنا ده ربنا په ښهر
وابي چې ربیاره چې "بار هیڅ نه وي" — ښه ښکلي دروغ وو د رښتیا په ښهر
اوس ښوي صحرا ښته، نه بازارنوی — ښشته تماشا[2] د تماشا په ښهر
ووک مې شو حشت که غولی نشته دی — یارانه خپل کور و د صحرا په ښهر
عشقه د هرچانه دي ممتاز کړمه — ښکارم چې هرچانه، د هرچا په ښهر
شیخه چې رندانو ته قهر سې ته — خولې نه دي ښک راشي د صهبا په ښهر
هرکله ربیاره دلبر دي جار — نن خورانه ښکاري د حمزه په ښهر

(۱) پار: صبا. (۲) پار: تماشه.

۱۰۱

دا زه یم چې حاصل راته عرفان دی د تعمیر — فطرت ښخه نور څه دي، خو سامان دی د تعمیر
ز عمجن لوسه، تخریب که د الفت وي په ظاهر — غافل چې نه شي راز یکې پنهان دی د تعمیر
له کلکې ارادې جهان باني ده عبارت — مېړی هم به دي لاز کې سلېمان دی د تعمیر
ای عشقه همه ګرانې دي اساني کړې زما — اسان دی راته هغه کړو چې ګران دی د تعمیر
بنیاد د محبت مې چې تر څو وي سلامت — ژوندی تر هغه وخته مې ارمان دی د تعمیر
پېري د لېوتوب دي چې راځي په سېلتوب — روغ نه شو، تل مې ځیرې ګرېوان دی د تعمیر
سېلاب د بېلتانه که نزول کړي به دا څه؟ — همت مې مېړني، مجنتلی خوان دی د تعمیر
تړل ستا د هر نظر او التفات دی برکت — تر اوسه زما عزم چې افغان دی د تعمیر
حمزه که خرلرمه زه دماغ د بېنتانه — باک نشته دی چې زړه مې مسلمان دی د تعمیر

(۱۰۲)

دنبا یست بې د سپین مخ ختې اثر لاړ — ګویا ورځ په تیرېدو شوله چې نمر لاړ
زه ګړی ساعت له یاره جدا نه یم — خدای زده کله راځی کله نامه بر لاړ
خفه شوې رقیبان سره پخلا شول — د ورتلو مې د یار درته چې خبر لاړ
څه خندا وه چې غوسه بې بنا یسته کړه — ګویا وخندل به شبه باندې سحر لاړ
دنبا یست په جال کې ګېر دی یار پخپله — کله ښې چې د چمن ختې نښتر لاړ
سادګي د یار مې ګوره راته وایي — په محفل کې دې چې چا ونه نظر لاړ
عشقه تامې د زړه سترګې کړې روښانه — ستا له سره دې دې خار که مې بصر لاړ
سرمایه مې چې د ژوند ورکړه اشنانه — رهزنان د اجل نه راځي خطر لاړ
زه به دلته په صحرا کې ګلزار جوړ کړم — که چمن نه په الوت کې مې وزر لاړ
حمزه هله سر په سېر د عاشقۍ شوې — چې په دې لاړ کې دې دک له عقله سر لاړ

(۱۰۳)

عشقه په بنا یست دې اثر چرته لاړ؟ — ستاله هراندازه هنر چرته لاړ؟
خلاصه ده صهبا، که په رانګ زما — منده چې ساقي کړه بهر چرته لاړ؟
رامې غلو لېمو تــه داشنا سره — دلته چې اشناشو نظر چرته لاړ؟
(۱) په ارمان خومې داشک نه و — کاندې چې تل لوبې په سر چرته لاړ؟
ایه شبستان تــه دارمان مې ښن — ښــه؟ که راتللو؟ سحر چرته لاړ؟
خدای زده رقیب چا کړوله اشنا خبر — ګوره د رانګ بې خبر چرته لاړ؟
داخو جوړ حمزه و د مغرب په لور — بند د ګنا ګانو په ـــــ سر چرته لاړ

(۱) ار عدبګو

(۱۰۴)

دتفرقې خیال مې دنهک او د بدسره لاړ — د - ما - او - تا - چې تعین و د حد سره لاړ
ورلندې چې نهرشومه توحید مې د توحید ولیدو — هغه الف چې و خطې وته د مد سره لاړ
دتعین هله احساس و چې نسبت و به څای — اوس د معبود هغه نیاز د نونود (۹۹) سره لاړ
علله شک نشنه چې لاحد به دې هم حدګنلو — مینه چې راغله ستا الیاس هم ستا د حد سره لاړ

زه چې ځرګند شومه دا واره کاينات شو لويټ — دا ســماونومه رفعــت زما د قد ســره لاړ
تش د خرد سه شو بـکاره راتـه وجود د علم — علــم زما بـه تجـرد کــې د خــرد ســره لاړ
اوس نه زمانه څوک پيدا نه زه د جانه حمزه — چې تنـزل مـې د احساس داب وجد سـره لاړ

[۱۰۵]

شمعې هم زما بـه شانې انتظار کړ — د سـحر د تبسم نـه يې سـر خـار کـړ
د قدرت ستم زغمه چې لوی استاذ دی — پـه ژړا يـې د طفلانـو لا بـسيار کـړ
پـه يو وار يې همـه راز د ګلشن ووې — يو خل وخنديده ګل خان يې وزګار کړ
يو او بل ته خندنې شي چې ګل راشي — هـم ددې بـې خبرۍ نـوم يې ګلزار کړ
سپک فطرتې دې له عشقه کنار ګرځي — د دريـاب چپـو[۱] خـسنې پـه کنـار کـړ
شـي غـذا د محبـت لـه حوادثـو — ولـې چاکـه طبيعـت ورتـه نهـار کـړ
حيف چې قدر د خوانۍ خوخوانې کاندې — ماکــنـه ستا خوانۍ تـه انتظار کـړ
پـه اصـول د اشنايۍ هلـه خبـر شـوم — چې څو ځل مې ناقابل د ياري يار کړ
لا دې شونډې هم لمدې په ميو نه وې — حمزه خان دې وچ په وچه پرهيز ګار کړ

[۱] آر: د درياب په چپو

غم د بـکليو څـه احساس زما جميل کړ — د غـه عمـر دی کـه عمـر يې قليل کړ
چې په جاله ستا د زړه کې يې ځای ومونده — شـومې ستاد تـصور مارغـه اصيل کړ
چې پـه مرګ مې پرورش د ژوندون وکړ — بـايـسته يې راتـه مخ د عزرائيل کړ
امتحان خو اخيسته شي لـه طفلانـو — ازمايښت يې په خليل، که اسماعيل کړ
شمع هسې شپه بلېږي، هم پتنګ وي — وشوه بس د سوز داستان دې د هر طويل کړ
د نظر فرعون دې بوهـه کـړه ای شوخه — چې د بر نول مې هر يو کسی رود نيل کړ
داشـومې زمـا د سخت نـه ده نـوږ څـه ده — چې بې واکه تبسم يې ستا بخيل کړ
د مـېن د زړه کعبـه څوځونـه څـه کـړې — حفاظت يې ددې کـور پـه ابابيـل کړ
عاشقي يـوه کمـې ده بـه فطـرت کـې — عقلـه جـوړ دې و حمزه تـه څـه دليل کړ

حال یې ستا د زړه معلوم، هم یې بیان کړ
خدای زما نظر هم عقل هم زبان کړ

تصور دې چې دیدن راته ارزان کړ
تول عمري فراق یې خودرا باندې ګران کړ

زه خو ستا په اشاره له سره تېر شوم
شکر شکر آشنا تا چې امتحان کړ

ما ایله د اسوېلې تکل وکړی
چې بېغور دمینې جوړ راته طوفان کړ

چې د هر د هر سینګار یې دې په آینه کې
وایه خوک دې پرېشان، خوک دې حیران کړ

بلبلان د ارمانونو مې ګویان شول
تصور دې زما فکر ګلستان کړ

ستا نقطې د خال مې حال د زړګي دوې
ګویا طفل مې دې داغ د زړګي خوان کړ

کله مرګ پکې غوبه، کله ژوندون شي
سمندر چې د هستي یې بې پایان کړ

ستا بنو مې هر نفس لکه پنجه کړ
ارمانونو مې ژوندون لکه ګرېوان کړ

چې باغي له جمعیت لکه نکهت شو
مینې کل جهان حمزه ته بیابان کړ

۱۹۵۰ م وړمې دسمبر اولوګی.

آینه کې چې حیرت وجانان یوور
چې جوهر د اګاهي وحیران ور

ګله ستا به تول عمري خندا نصیب شي
خوکه روغ دې له دې باغه ګرېوان یوور

اوښکې زړه ته ستا په غوټه جبین لاړې
د سېرلي ښکلی باران وطوفان یوور

ستا دستر ګو په مستي اوبه ښکلا یوو(۱)
حس له مایې د مکان او زمان یوور

انتخاب وایه د جانبه و زړګیه؟
شور و وصل، ما د وصل ارمان یوور

نه مې کله شوې رقیب د صحرا باده
چې په مخ دې راته ګرد د کاروان یوور

حمزه، ګران که خو د یار د عشق نسبت و
ما د سر به بها خو مره ارزان یوور

(۱) اوړ. ګو

(۱۰۹)

زه حاجـت لـرم دناز .نـه دنیـاز — واخله سوز درخخه نشته راکره ساز
هر یو خیال مې بې بهاغوندې گوهرشو — چې لباس مې ورته واغوستو د راز
په ناز ناز کتومې څنبې دزرگي وینې — زما عمر. ستا بانـه دې وي دراز
تل دې یاد یم په دې بـادیم تل دې داوي — چې اصول دې شي زمانـه احتراز
دسکون له مرگه زوندغواري غلط شوي — اضـطراب دی زېږوونکـی د آواز
دخواهش پرده دې پورته کره .نظر کره — نشته هېڅ په حسن اوعشق کې امتیاز
چې حمزه شولومبن په مستوسترگو — ای واعظه دصهبا وشو جواز

۱۹۴۱اپریل۱۱ ـ لولوکی.

رقیب سور مې دی په سرلکه عسس — په زور زور مې غـږوي لکه جرس
په دا شان بې کرم عاري له عقل و هوشه — چې مې وهم شولو هر تار د نفس
په اتش به د هجران اخر سوخته شم — یم انسان په اصلیت نه یم ققنس
په صحرا کې د الفت پښې ابله یون کرم — د نېزې نه بې سوا دی خار و خس
نه پوهېږم اوس تلاش په کوم طرف کرم — په فرقت کې مې خطا کړو پیش و پس
سل قدمه چې اشنا وته نزدې شم — نـو هـزار قدمـه پرېوځـه واپس
زه حمزه په عاشقانو کې یم داسې — لکه وي بې مصالحې غورو عدس

(۱۱۱)

عاشق دې نېولی تل په لاس کې سرپاس — تل غرېږي بې په سترگو کې جگر پاس
قرباني غواري دیدن د تورو سترگو — منتظر وي پېري د وروځو دوه خنجرپاس
دعاشق د آه لـوگی بې حالـه شوی — که هر څو لري اسمان کې دی قمر پاس
دعاشق د صداقت نخښه هم داده — چې رقیب هم کښېنوي په سترگو سر پاس
په مکتب کې د فنا چې طالب نه شي — مهرویان دعفه نه کوي اکثرپاس
په محفل کې ادب وايي گوره بـکته — مستي وايي غنیمت دی پر نظر پاس
په دېگدان باندې حمزه د عشق سوخته شه — چې خارج دې شي د کل ځنې جوهر پاس

(۱۱۲)

اوس چې شوې داهسې ته زمانه په سرلاس
ابتنې دي اول ولسې زما وېه سرلاس

کرم به تنواني اوس دعشق په دکوسترګو
نش مې چې کړو عقله ستا له جیبه بهر لاس

دا ونکل چې پیماني سترګې دي ستايم
بنده خکه خوله کړه زما ستا دنظر لاس

خود زره ورشمه پرده به کړمه پورته
نه چې راوباسې د پردې نه بهر لاس

ما دخیال په لاس کړه ستا دزلفو زونده بېله
پورته چې د شپې نه کړو نقاب د سحر لاس

عشق مې پوخولوبنکې ستانظرکې ناپسته کړې
ستوریو نه مې خه که رسېدو د هنر لاس

پو دې داشناکړه حمزه بل دې د دنيا کړه
ګوره چې دې نه شي پو او بل نه خبر لاس

(۱۱۳)

جانان مې ګلفروش د طیلت چمن په لاس
ماهم ورته کچکول کړه د حسرت لمن په لاس

پوځل به قبرستان مې د زړه راشه بې حجاب
ارمان به مې راپاخې د حسرت کفن په لاس

پوځان به مخ د حسن چې پرده د عشق شي
نېښه شي د اجل ونېسې کړه کن په لاس

محفل کې چې وحشت مې شکایت نه کړي تیار
بهانه د ارومې کړي صنم پټ دهن په لاس

دلبر مې خکه اخستې له ملاس د اشنايي
اوس نه کړي د پخوا غوندې د ملسخن په لاس

حمزه له مرو بتر دی خو د ژوند یې دوکړو جام
محبوب الهي د نظامي حسن؛ په لاس

(جواب حسن نظامي)

(۱۱۴)

دښمن که و پکارمې هم داخپل هوس شوېس
داپو قفس چمن نه راشه پوپه لس شوېس

سالې نه مې بس نه وې راکول بې ماجبل
چې سترګې مې راپو نه کړې ماري چې بس شوېس

بلبل خوپه قفس درنګ اوبوی کې دې بندي
اوماتسه داشنادمحبت لقفس شوېس

راپورته دې کړې سترګې بې قراره غوندې شوې
اظهار دمدعاته مې چوپ سوغس شوېس

شايد دمینې جاله مې باد پوورو دهوس
اوس هم شته انتظار مې خو دسترګو خس شوېس

کاروان د ژوند روان دی زړه چاودون به هر قدم
اظهار ته دمطلب د پېبو کې جرس شوېس

محفل یې کړو بې خونده رقیب راچې غی حمزه
مجلس دخورو طعام و ته دا پو مګس شوېس

[١١٥]

سترگې دې شوې ښکته ځکه پاتې د پیغامه پس ... بویه څه جواب خو د قاصد له احترامه پس
شان دخپل دیدن دخدای دیدن ته وونږدې کړوتا ... فکر مې کعبې ته منتقل شو ستا له بامه پس
د هر چې در ته کېږې، دازمایه ولې تش درومې ... خو مې دی آشنا درته سلام له دې سلامه پس
اوس د تا د مخ نه د کاکل راښکته زیاته ده ... کفر غلبه راپانندې راوړه لـه اسلامه پس
خیر دی وورتل، خو چې رقیب وته موسکی شولې ... دا د م دي در واپس دی له انعامه پس
بې جلبه بیرته ستنـدل هم څه پښتو نه ده ... ستون شو دمیلمه نه د درشل سره دوه گامه پس
تش دې راته راکړو خو له هر څه نه یې ډک گڼم ... جام د جم شو هیڅ راته ساقې دتا له جامه پس
دام د تا د زلفو، د هـر یـو بنـده آزاد کړمـه ... خو دامونه واړه شو بې کاره ستا له دامه پس
بام کوه حمزه چې د نویې زره دې ازار نه شي ... گنبد ده پرې مرهم د پسرلي له اختتامه پس

١٩٣٧ مارچ ٢١ پېښور

به وې حمه گڼه چې حاصل شي له تاوانه پس ... مانه شوې ښکاره خپلې خامی د ابتلا نه پس
بیا خو به نو خدایه سلسله د دنیا گانو وي ... مخې نه که بلـه دنیا راعلـه د دنیانه پس
اوس ورته ناجانه ښوندي گورمه د غیر هسې ... مینې وکړه نوې ابتدا د انتهـا نـه پس
تا چې به محفل کې به خیر خیر راته کتلي دي ... اوس به تولې سترگې ماته خبر وې د بېگانه پس
پاتې به اخفا وه که بهیر بې داسې بند نه وی ... اوښکې زما ورکې شوې، دمینې د افشانه پس
ماته تا اشنا ښکاري که د هر شول اشنایان زما ... حفـه دلبري بکـې راغلـه د اشـنا نـه پس
لاخو به خو د نه دي چې یاران وو د محفل ز ... مري دي د یوې، مري گڼه حمزه د بېنوانه پس

[١١٧]

پټ شه نه پښېږي راته اوس د حفې شپې نه پس ... لاته راته د ویښې بې حجابه د پردې نه پس
نه یې هم حفه خویه هر خل راته بدل ښکاري ... شوق د تماشې شي لا سوا د تماشې نه پس
ضبطه پسرلی چې را رواں دی دا به څه کېږي ... زور مې د خمار دی چې زیاتیږي د نوې نه پس
بیا که مې سترگې شوې راوکې چې غصه شوې ته ... خشکې چینې ناندې شي اکثر د زلزلې نه پس
زړونه پرې آباد شول چې بهر یې تربه وویستل ... وگوره قسمت خو د بتانو د کعبې نه پس
ته لرې کېدلې چې خو خویه وراندې تلمه زه ... خان ته به نږدې شومه د هرې مرحلې نه پس

ستا له ادا ګانو ستا ښکلا ته وسېدلی یم — راغلم په غلطه کې شومه ورک د دایرې نه بس
ناو د اتکو نه دي چې زلفو ته په تهښته شوم — سوري دماښام به وي دتکندې غرمې نه بس
دپرو دروازو ته حمزه لاړو خوناکامه شو — خیر ورته چا ورنه کړو د تا د دروازې نه بس

۱۹۶۹ دسمبر ۱۵ ـ لوارګی

[۱۱۸]

عشقه چې شو خپل درنه صفات غلط — ځکه دي ښایست شولو په ذات غلط
هر څه دي منمه خو وجدانه نه — تل یې د ښایست په التفات غلط
خو چې مینه رنګ د حسن وانخلي — هو مره ددې دوارو ملاقات غلط
حسنه څه خبر وم چې طالب نګ یې — خدایه شومه ستا په عنایات غلط
شېخه د صهبا سره چې سم نه یې — غم دي شولو خو د کرامات غلط
غم به شي غلط په تــداروصحیح — ځکه به منزل شي د اوقات غلط
مخ چې صراحي ته زه حمزه کړمه — راشي په دي کار مې، شي برسات غلط

[۱۱۹]

ماچې وکړو له یاری قسم غلط — دغلط زره سره خودشي قسم غلط
وي عادت دویم فطرت. له ماخو هیریې — ستاکوخې ته شي زما قدم غلط
ستامکان زما په زړه کې ښار په ده — په توول ښارکې مې دتا[۱]کړو چم غلط
دا صحیح ده چې دې زه یم پېژندلی — ولې زه شومه په تاصنم غلط
دغضب طوفان دي وساته صاحبه — نن که ستر ګو ته د زړه شونم غلط
ستاپه غم مې غم غلط وغم خو دادی — یاره اوس به په کوم غم شي غم غلط
په خنزه کې د حمزه د زړه راګیرشوي — آهو چشمه څه دي سم دی رم غلط

(۱) آر. پي. ستاګرد

[۱۲۰]

"څه" په خپله هیڅ نه وي د "څه" نه مختلف — بیا ولې ستازړه وي دلهمه نه مختلف
یوورقیب که ظلي. بل پری راغی. فرق یې څه شو — نه وي یو کارغه د بل کارغه نه مختلف
نمر د حقیقت خو نه پرېږوزي نه راخېژي — وی یې که خاته د پرهوانه نه مختلف

به آیینه کې خپل جمال ووینه ‌ ‌ ‌ ‌ بیا د حیرت سبب زما زده کړه
زړه مې به ناخ کې د نسیان مه وړه ‌ ‌ ‌ ‌ ورسره لوبې مشغولا زده کړه
درته حمزه کړي د هنر خبره ‌ ‌ ‌ ‌ ووایه. زده کړه ماچې تا زده کړه

۱۹۴۸، مروره ۲۸ ـ پېښور

(۵۱۲)

مخ دې له نقاب نه د کثرت څو ته ښکاره کړه ‌ ‌ ‌ ‌ بیا به د وحدت به ننداره شې ننداره کړه
بې مقصده کرځم پرېشان لکه نکهت یم ‌ ‌ ‌ ‌ ګله ستا خندا مې د خرد جامه پاره کړه
شبخه د تسبو او د مسواک به بدله کې ‌ ‌ ‌ ‌ ښکاري چې دنیا او هم عقبى دې اواره کړه
بوځل چې واعظه ستا په پند مې غوږ ونه نیو ‌ ‌ ‌ ‌ کوره نابوهي چې نا خبره دوباره کړه
عقله چې له عشقه دې سیالي نه اراده وه ‌ ‌ ‌ ‌ راشه نو اول مې ارمانونه اواره کړه
ماچې د دنیا بې وفایي ثابتوله ‌ ‌ ‌ ‌ ستا د نظر خوی مې د غزل استعاره کړه
خوب د ټول عمري اضطراب څکه حمزه ولید ‌ ‌ ‌ ‌ ستا په تصور مې چې بیا بیا استخاره کړه

۱۹۷۰، اپریل ۸ ـ لوړ ګی

پښتونه چې پراخه دې وختونو میخانه کړه ‌ ‌ ‌ ‌ به خوانه. له میخوارنه دې اوس لویه پیمانه کړه
کامل کړه فردیت له هغه پس اجتماعي شه ‌ ‌ ‌ ‌ د ګلې له اسرګنې نه پخوا جوړه خانه کړه
وا نوري آسماني به د ربنیاوو آسماني شي ‌ ‌ ‌ ‌ رزومې که خپله خاوره د وطن دې آستانه کړه
دانوی ژوند دې به دی. خوشعور دې بخوای دې ‌ ‌ ‌ ‌ پښتونه راسته دې هغه تېره زمانه کړه
په خوی اوراور کی شه به خلا خو بې له تاوه ‌ ‌ ‌ ‌ په وخت د قرباني له خانه جوړه پروانه کړه
دا ستر ګې به تر څو د تندروسو درته سرې وې ‌ ‌ ‌ ‌ په بڼ کې د پرېوونو ورشه جوړه آشیانه کړه
زیبر ګو ته تسلسل د بو مقصد دپاره ور کړه ‌ ‌ ‌ ‌ پیدا له دې ژړا نه ملا نرلې ترانه کړه
پیدا به د ژوندون په پرېشانو کې جمعیت شي ‌ ‌ ‌ ‌ دا ګډې وډې زلفې د پښتو خو دې شانه کړه
د زړه به تل کې دا بې حبره غوندې اوښکه ‌ ‌ ‌ ‌ روزه بې. د ملت به غم تري جوړه دردانه کړه

۱۹۵۸، اګست ۲۹ ـ کابل

(۵۱۸)

دېر کـه د تراخونـه هـم تراخـه دي کـړه — خـودي کـه بـدرد ووي خـواږه دي کـړه

لاخـود زړو نـه دي زلمـي کـړه جـوړ — لاخـوچې زلمـي وونـوزاره دي کـړه

ښـکلیه د تـاوده نظـر دي جارشـمه — برنـد خورلیان ووخوســاره دي کـړه

اوس بـه دي مـبن ولـي سـم سـم غـشي — گوري چې لینـدي غوندي کاږه دي کـړه

نـن دي چـې راوکتـل پخوایـه خبـر — څـه چې رانـه هېرووو را. زره دي کـړه

کـوم دي بکـې خوبن شـوچې دي وزلـې وو — زړونـه دمېنوایـه ځـه دي کـړه؟

اوس اوســه بــراخې دغرورســره — لاړه مـبن لاړه پــښتانه دي کـړه

سترگـې بـښتنې دي ولـجـه ونـه کـړې — برېـږده دا مـبن چـې مېلمانـه دي کـړه

تنـده دي څـه ماتـه دمېنـوکړه — صخ دي کړوښکاره اوبـه اوبـه دي کـړه

داسـې يوناځايـه چـې بيارانـه شـې — کـوم چې کوربانـه وو ، مېلمانـه دي کـړه

کوم چې دي بـه خولـه ووسـتاپه زړه نـه شـو — کوم دي چې پـه زړه نـه وو ، پـه خولـه دي کـړه

سترگوکې موسـکې وې زړوردي کـړم — څه چې مې پـه زړه وو راپـه خولـه دي کـړه

تاتـه خوسـبېن روبـې د حمـزه لـه خوا — درغلـه جرگـه خوراســتانه دي کـړه

۱۹۷۴ ، مارچ ۲۷ ـ نوازکلی

چې کامله په الفت کې ، ماد سرواوسکوټري کړه — زنځير مې ستاد زلفو ، د سوداهره گړی کړه

زاهد وکړه نـردي حـده ، د جنت د ميومـدح — د ظهور طهور تکرار بې داده ژبـه ترتری کړه

خاردي ای غټبرني عشـله په جذبه د رقابت کې — چې هستي د ماسوا وه ، تاهمه يوه نمری کړه

کړه پرسان د صراحي نه چې بس هغه ده حق گويه — د واعظ خبرې پرېږده ، څوکه دنگه بې غري کړه

خلاص بې نه کړل د بې مخـو د زلفانو صـفتونه — توره بېره د حمزه بې تـسلسل سپـيه وری کړه

(۵۲۰)

بــه ده بــه ده جـوړې نـوري بهـانې کـړه — لامـضبوطـه دا رشـتـه د يـارانې کـړه

سوز او ساز بـه دې نصيب بـه بومحل شـي — زړه د شـمعې حوصـله د پروانـې کـړه

نـه لــه وصـله انکــارې اوســه مهربـه — شور بې کم دی څه خو زيانې افسـې کـړه

لاخو بنده دروازه دتوبې نه ده ... راته بیرته دروازه د میخانې کړه
مینې آب داخلاص به دې ستاپه سوز کې ... اوبنکې کم بها مې دُردانې کړه
عشقه مادیار تردره په سربوخه ... راته جوړې گام په گام کې آسانې کړه
حمزه: نوره نقاضا د میو پرېږده ... په گوټ گوټ سره دې نشې پیمانې کړه

په رفعت شوچې نگون شوز زړه ... فرزانه شوچې مجنون شوز زړه
دحسرت متاع یې خان سره راوړي ... هسې نه حې تش راستون شوزمازړه
ځه خبردي ستادحسن له دولته ... خوک چې وایي چې قارون شوزمازړه
بې سباوبې پرون به ولې نه وي ... چې بې چون اوبې چگون شوزمازړه
عقله اوس یواځې پاتې شوې تېرېږه ... په ناشونکوچې مفتون[2] شوزمازړه
که پخپله مینې مرکروعین ژوندو ... ستابنکلا ره ژوندون شوزمازړه
شوه له مادکامرانی ناوې واصله ... حمزه هله چې پښتون شوزمازړه

۱۹۶۳ مارچ ۲۸ ـ لوړکی (۱) ږاړ: تخلص
(۲) یعنې عقل چې کومې خبرې ناشونکې گڼي دوی هم په عشق شونې خبرې د

(۵۲۲)

چې وبنکلیونه محمل شوز زړه ... خودپخپله مې منزل شوزمازړه
ماچې پرېښودوبهرترې ووتمه ... دهمه بنکلیومحفل شوزمازړه
دالفت چپه له خانه بهرنه ځي ... به دې لاړه کې ساحل شوزمازړه
چې به حسن داشناکې لاړو ورک شو ... را... ارشوچې غافل شوزمازړه
عشق چې راکړه آیینه. له مبنخه ووت ... دخپل خان هله قابل شوزمازړه
دالهام به کیفیت هله خبرشوم ... چې به زړه زمانازل شوزمازړه
یوجهان داضطراب هغه طرف شو ... کوم طرف ته چې مایل شوزمازړه
دهستی اودنېستی له تصادمه ... نتیجه کې راحاصل شوزمازړه
عاشقی ترېنه نقصان دحدوث ووېست ... لاقانې شوچې کامل شوز
حمزه اوس دبې چونی به پېښوسردی ... ورلی بیرته که حاصل شوز

(۵۲۳)

خو یـه ښـکلیو ایـې پایمـال کړوزمـازړه ــــ پـه ښـکلایې مالامـال کړوزمـازړه
تـصوردې دامکـان پـه حـدکې نـه و ــــ ولـی سـتامینې فعـال کـړو ز زړه
ناویونکی خوشحالې محسوس کومه ــــ نـن چې تاهسې ملال کړوز زړه
خــه خاصـه دقبلولوجـوړیکې وه ــــ تاچې خان سـره اتبال کـړو ز زړه
هــې زه دې لـه جلالـه وېربدمـه ــــ سرترسره دې جمـال کـړو زمـازړه
داخـودې پـه زمابـده وې کـه ښـه وي ــــ چې بې پوه پـه انفعـال کـړو ز زړه
نورتعریف دې دنـابـت کـولی نـه شـم ــــ لکـه خـان بـې بې مثـال کـړو زمـازړه
عـاجزې کـه پـه ظـاهرکې بونقصـان وه ــــ پـه اخریـې باکمـال کـړو زمـازړه
حمزه زه اوس پـه زمـان اومکـان پوه شـوم ــــ عاشقی چې محض- حال" کړو زمازړه

۱۹۶۳ فروري ۲۲ ـ لوارګی

اسـدازد پواوبل نـــه وي ســـدا. ادزړه ــــ وینـاوې دماشـــوم کـه ماوراز مـادزړه
ارهښ دې دتـبرگرخې زاهـده شـبه اوورځ ــــ لـېکن لاوچوبې ده پـه سـاوبن دتـادزړه
هرڅوکـه دې انکـاردی داغبارولـه دوسـتی ــــ لـېکن منلـی نـه شـم هیچیرې خطـادزړه
کېـدی شـې لـه حبابـه تعلـی دانـاالحبر ــــ پوه نه یم دی په زړه کې مې مقام دجادزړه؟
دې سـتوري له مایـامه.هم بې نیازه زماشیې ــــ راورې شـې کلـه سـترګه دبـا. ـبـادزړه
دانـه ده برېـرکې چې پـه بوخـاځکې شې فنا ــــ طوفــان دانــاالحق لـــري هوازمـــادزړه
• ژوندپه مستی اوخوشحالی دروسې بـه لاز ــــ نغمــه مــې الـسـتې ده .سراســرنوادزړه

۱۹۷۷ .جون ۱ ـ لواګی

اشـــنا یـــوړ شـــو ژونـــدون دراز د زړه ــــ نــاوې راکـړی د ابـد شـوه ســاز د زړه
ګـل د خپلـې خوشـبویۍ مـزه وانخلـې ــــ لامـې زړه لـره هـم راز دی راز د زړه
چې یو دم وزګار له جـت او خبزه نـه وي ــــ پـه کوم دم پیدا شې حرص او آز د زړه
جې حاصـل یـې جنتونـه د ژونـدون دي ــــ پـه دوزخ کـې دی د تـن نمـاز د زړه

چي يې هره پرده غږ د اناالحق کړي — دامضراب مې څوک وهي په ساز د زړه
زاغ د نفس ويجاړوي د مينې باغ مې — په پنجه کې د عنصر دی باز د زړه
حمزه يار يې چې ليدلی لا په رقص دی — ددې نه به وي څه نياز د زړه

(۵۲۶)

قبول خکه په درګې نيازونه دي د زړه — په برخه رسېدلي چې نازونه دي د زړه
دانه چې اعتراض په زړه کوي لږ يې په بيازکړه — اې عقله خودسري، همه نازونه دي د زړه
اقليم کې دهغه، دسترګو کارکوي غوږونه — دا وينې چې څېزونه اوازونه دي د زړه
افراد وېله بېل چې وي ببدا تري جمعيت شي — حرفونه په خپل نوم کې هم، رازونه دي د زړه
خپل خان کې دی روان، له خانه • رازونه سپري — اوس تېرحقيقتونه، مجازونه دي د زړه
دانه چې شي داونه، بيايې زور دنمرود ګوره — شوريس له انجامونو، آغازونه دي د زړه
دشکلو اندازونه، دمينو حسرتونه — دا واړه حسرتونه اندازونه دي د زړه
شاهين دلدس يې ښکاري لکه چنې به پنجه — لاپباس دشش جهت نه پروازونه دي د زړه
معمه د • ازن په کاينات کې باتي نه ده — حمزه کله وران شري چه سازونه دي د زړه

(۵۲۷)

سن وچې کړلو ماونه اشنانظريه نه زړه — رقيب شود جامونه په دې هم بهريه نه زړه
په شپه کې دوصال مې هم ګريوان په اوښکولوندو — داخکه مې په حال شولو موسکې سحريه نه زړه
داوګوره ستم چې يې قاصد کړمه رقيب نه — اوس وړه په مجبوري ده داشنا خبريه نه زړه
بانه دي چې نن غشي کړل دبرند نظريه لمه — ظاهر مې ستاد پاره کړواشنا خطريه نه زړه
حمزه څه احترام دبېښتي جذبې خوبويه — اشنايې چې تاکړلو اختيار سفريه نه زړه

۱۹۶۰ مومر ۹ پېښور

روږدی عاشقی کړلو زمايه تېرو تورو زړه — به ده چې ژوندی اوسي دبنکليو په وعدو زړه
لاپرو سړنی روښانه شپه مې تېره نه ده — وشوه دبوي ولې جوړي نوردې به سلګو زړه
ماوي پرخې څرنګه موسکې به يلوشه يې — وي چې شي روښانه کړي نکل دالو تو زړه
لږ په بېښتي نظرشه خيرورتسه مه — وبه ګوري داچې زمازړه دی دبېښو زړه
خپل حس دي پرهود که خواني دي راسه يووړه — ستا به سادګي مې بې اختياره موسبد و زړه

خوچې زه زړېږمه، غزل سره مې خوانیږي — ماته چې حالت د زړونو اکړودزلموزره
ستادايي قراره ستړګي تل داهسې اوسه — چل مې زده کوي ترینه ورو ورو دالوتوزره
زه به کیفیت حوردالهام پسې یوهولم — ګوره چې به زره زما حمزه مازلیه وزره

۱۹۶۳ مارچ ۳۱ پېښور

(۵۲۹)

پرپرده برزخ دي د ښایست چې دلربا شمه زه — ماهمه تن کړه تماشا چې تماشا شمه زه
سټ له خروشه په حساب د دریا صفحه اشنا — بس مې حودی لره یوځاځکي چې دریا شمه زه
ماته اسنازي د خیال دي بوره ورخ وویل — چې په دزتلو کې اکار تشنه چې تنها شمه زه
که په کتاب کې دهستی بې بهاحرف یم دراز — واخله په شوندو د انشاس چې ګویا شمه زه
دعاشقانو زده ژړا چې په رنګ رنګ بې کوي — ته چې ستم دحدنه زیات کړې په خندا شمه زه
چې ابتداده عیش د غم په انتها بمه تل — اوس نه پوهیږم انتها که ابتدا شمه زه
زه د جبې نه د حمزه د ښرا حال وپوښته — ځله ملګر به چې په عیش کې بېنوا شمه زه

(۵۳۰)

ستا په ماز کې رنګینې دي ورته را ایکون زماله نیازه — جوربساران د بېرلي د زمانیاز دناله نازه
سراسر بې خبري وه چې خبر شومه له رازه — پابندي د امتیاز وه هم بهر له امتیازه
دښایست خود ساپې چې شوه ستګار ونه محتاجه — هحرهم شو خوبولی مېښه هم زمانه سازه
روګردان له حسنه مه شه هغه نېرچې دي په یادکا — حقیقت د مجاز دادی چې خبر شي له مجازه
اى د یار دتورو زلفو پرېشانه غوندي فکره — ژونده د عشق دی لاثاني کړ سلسله دي شه درازه
دکثرت په دي نېږوکې دکثرت په دي غوغا کې — سودایي دي یم د زلفو یم اشنا دي له اوازه
د حمزه د زړه مجبورنه که دنیاتو له نجد شي — حوګارواں ستا د مراد په ښکاره کېږي له حجازه

ړیاوله

یوسکون لرم که خوبې قراریم زه — د مرکز سره اشنا یم پرکار یم زه
چې په تنګ د وطن تل له سره تېریم — حق لرم ددي وینا چې سردار یم زه
هرپولاس چې د مردی کړي په مافخر — د مراد د کاروانونو مهار یم زه
که د سم زمانو مار وي په معنی کې — دایمان تریاق لرمه شُور

که ګلان مې رنګارنګ دي په داغه شي
د وحدت په خندا تللی ګلزار یم زه

جوړول د خپل ملت به څه مشکل دي
یم مسلم د قسمتونو معمار یم زه

د پېغور پوکي زما د ژوند ضامن دي
د غفلت د خوبولن لاندې انکار یم زه

اوده قام به څه راویښ شي چې په خوب کې
خوبولو ته په چغو کوکار یم زه

بیایې داچې زه یو خان ته جهان جوړ کړم
د تبر شوو مشرانو یادګار یم زه

دي غوړ غوړ اوده ګلونه حمزه ماته
په دې باغ کې خوش بیانه هزار.

[۵۳۲]

پوه شه نورو سترګو به خوږلی نه یم زه
څوچې ستاله باده بېهوشلی نه یم زه

ښکلیه زه به ستاد سترګو خوب یم ښنبهدلی
څوچې دالفت سره ښنبهدلی نه یم زه

څه ستا په غېږ کې چې مانه لرې نه شې
وخت هسې وایس راګرځېدلی نه یم زه

لاغوم مې د حسن په دربار کې بهاښته دی
عشقه چې تراوسه دې بایللی نه یم زه

وخت د وصال راځي ښتنې حوصلې څه شوې
سن غوندې په عمر بوږنېدلی نه یم زه

مینې کړم ناپوهه خوچې مینه شوه کامله
پوهه شوم خو وایم پوهېدلی نه یم زه

تاوې د رخسار کړمه فنا خو ستا لمبه ته
اوښکو غوندې څوڅله راغلی نه یم زه

عشقه له جسوده دې هنر د هوس جار شه
ورک لکه د پل شوم، خوځېدلی نه یم زه

خرلې د هوا د نو دېلکو نو واوریدلي
لارې سره دمیسې اورېدلی نه یم زه

ساز د ښېښ نځوادې زما زړه کړو دیار غمه
څوک دی چې څوځل یې اورېدلی نه یم زه؟

مل چې د تبرک سره حمزه زه د وحدت شوم
ژرندې د ختونو دلولی نه یم زه

۱۹۶۳ فروري ۱ پېښور.

بیرته د طلب نه ګرځېدلی نه یم زه
څو مره پورته شوی اولوېدلی نه یم زه

هغه شان غوټی یم، غوړېدلی نه یم زه
بس د تانه چاته رسېدلی نه یم زه

نرېخ مې جوړآهن د شخصیت دی، نوریې تود کړه
یم که تکېدلی، نړېدلی نه یم زه

بې د تانه هرڅه ته نسبت چې د نیستي کړم
وایم چې لاهرڅه" رسېدلی نه یم زه

ماته هغو سترګو د ژوند راز دی رازده کړی
سترګونه د مرګ چې بوږنېدلی نه یم زه

ستا د تصور دیوه مي هیچري مره نه شوه — غم چي سم په لاړه تېرېدلی نه يم زه
ستا دا تنګوېه تصور کې لکه اوښکه — ولي خوځوځله څځېدلی نه يم زه
عشقه څو که مرګ اوژوندي دواړه سره ګډ کړل — بیا هم په غایت یې پوهېدلی نه یم زه
څه مه مي علاج د غیرېت د وسوسې کړ؟ — په چې خپل محفل ته دي بللی نه يم زه
ولې به حمزه لکه سحریه وینو ژاړم — هېڅ د جابه غم چي خندېدلی نه یم زه

(۵۳۴)

په یو دیدن دي دېوانه کړمه زه — په بل دیدن دي فرزانه کړمه زه
ستا افسانه خویه دي پټه نه شوه — که په ظاهر دي افسانه کړمه زه
آب دي د مخ لاړ مه شه عشقه زما — خوندي به اوښکه دُردانه کړمه زه
چې حقو ستر ګو هوښیار کړی یمه — څکه خبرې رندانه کړمه زه
وایه د چا سره یې ورانه کړمه — چا سره جوړه یارانه کړمه زه
حقه خونه یم چې په هره شمع — زړګیه تا به پروانه کړمه زه
سترګې دي راز راته د غم نه وایي — ساقي چې مانه پیمانه کړمه زه
پر پرده تندی چې ستا په در کېږدم — چې تربنه جوړه آستانه کړمه زه
زړه په هر حال کې هم حرم ګڼي خان — حمزه که خوي بت خانه کړمه زه

پېښور، ۱۸ جنوري، ۱۹۷۲

(۵۳۵)

خدای زده نن ړوند او که بینا شومه زه — چې د عالم په تماشا شومه زه
غمه په تېره دي ارمان کومه — د خوشحالۍ سره اشنا شومه زه
تا د زړا چې مې تپوس وکړو — له د بره سوخته په خندا شومه زه
نه چې نفرت کوې زمانه په څه — وایه په تا ولې شیدا شومه زه
خلکو یه دي خوږ زه مې نه ومه — څکه د دروغ وو چې رښتیا شومه زه
دومره طاقت و د پرواز څه پکار — عشقه اوس څه شوې چې عنقا شومه زه
شوم زه حمزه چې ستا د سترګو قتیل — پوره په انداز د مسیحا شومه زه

**۱۵۳۶**

مېږې څه جاري په ماوکړي چې دستاشومه زه — عجیبه داده چې دستاشوم دهرچاشومه زه
ښکلیه شوکماري اداګانې دې ژوندی اوسه تل — دمینې ښکه مې سواشوه چې نالاشومه زه
اوس دې باور نه په ستم نه په کرم کومه — ستادستم اودکرم سره اشناشومه زه
ښکلیه دناد النفات له موجه څه وایمه — که مې هستي بوه قطره ده خودریاشومه زه
نه به وي داچې دهستي په زره کې رازیاتې شم — رنه به ستاد [illegible] اب شي که افشاشومه زه
مانه بل رنګ هم محبت دزړاچل ښودلی — نه چې رقیب نه په خنداشوې په خنداشومه زه
مخکې دروغ وو چې جاوې چې لیونی شو حمزه — نن چې موسکی په [illegible] راغلې په ریښتیاشومه زه

۱۹۷۳ مارچ ۲۰ ـ لوارګی

**۱۵۳۷**

چې دخپل ځان نه مخکې تېرشومه زه — اوس خو بیخي د یار په خبر شومه زه
اوس مې نه ذات اونه صفت پاتې دي — ستانظر په وم درنه هېر شومه زه
ورک مې حروف شو دهستۍ دلفظ — پسته زبر شومه نه زېر شومه زه
ستا تصوریه کاینات کړمه خور — وایه ازاد شومه که ګېر شومه زه
زه هم دتا په زبه تا یادوم — څه تعجب که درنه هېر شومه زه
اوس دې بې مانه بل مفر نشته — دتصور نه دې چاپېر شومه زه
که د شبنواري نه نفرت وي دتا — ورخه د سوات اود بونېر شومه زه

**۱۵۳۸**

داسې په نوي رنګ دې ستایمه زه — هغه به نه وایم چې وایمه زه
مسته نغمه د سرېتوب یمه اوس — چاوده زړګیه ستانوا.
دبرېزدنکهت لکه شمیم اودګل — ستانه جدا نه یم جدا یمه زه
دتحور نه دې ګیله ده زما — چې به بېلتون کې وارخطا یمه زه
ژونده زماسرته دعاکوه تل — ترهغه پایې به چې پایمه زه
لا له وفا دې ناامیده نه یم — داده وفا که بې وفا یمه زه؟

به کابات مې انګازه شوه خوره ناکامه عشقه ستانوا.
له دوه جهانه چې بهر ووځو یونه عالم وته دې بیا بمه زه
حمزه بیلتون چې مستقل شو زما کور د وصال وته رسا بمه زه

۵۳۹

که دهر چا یې ته خوستا یمه زه خکه دې ستایمه چې ستا یمه زه
ستا به نظر کې چې بربښا بکاري ستا به ککوکې به خندا یمه زه
هغه مې هر شول نه چې را غلې اشنا دامې دې یاد چې څه خوا یمه زه
ستا د کاکل په سلاسل مې قسم حلقه بګوش دې به رښتیا یمه زه
خیل حقیقت ته رسېدلی نه یم چې د دینا به تماشا یمه زه
ستا به خندا کې شونډک پیدا ستا به لیمو کې به ژړا یمه زه
زړګیه راشه خوند د ژوند واخله برند و چشمانو ته دې بیا بمه زه
راستنوې راته بار بار ولې مخ ورځه خوشحال اوسه پخلا یمه زه
دا چې هر مخ راته اشنا بکاري دا به د تا سره اشنا یمه زه
مبه قرار به اضطراب کې لري یومې محور دی که اسا یمه زه
حمزه وحدت چې د بنایست مې ولید هلته خبر شوم چې د چا یمه زه

۱۹۴۸،جون۸ پېښور

۵۴۰

بېرته له خانه خان ته رد بمه زه دخپل وجود به خپله حد یمه زه
وخته تېر بېره تېرو بستی مې نه شي دزمانې سره بلد یمه زه
بکاري چې سبندراته به دې نه وایې چې کله جذر کله مد یمه زه
داهمه زه یم چې آثار مې وینې به حقیقت کې لا ولد یمه زه
ایله مې زده کړلوا بجد د مینې اوس به دا دم چې اب وجد یمه زه

یم دوجدان اودشعور بنیاد — بوه نقطه چې اوس عدد یمه زه
په سرپتوب همه داري دي دغه — چې فرښته اوکله ددیمه زه
حیوانیت یم اونه مینه حمزه — اصل مې دادی چې خرد یمه زه

(۵۴۱)

م د صورت سره اشنا د چا نظر یمه زه — په آیینه کې د امکان چې جلوه گر یمه زه
نه خودي نمردمخ څرګند کړه که مې ګورې وها — د ګل په پانو باندې پرخه د سحر یمه زه
په تعلق د ماسوا کې چې طلب کړمه ستا — که په ظاهر کې درېښم پوښ یم قلندر یمه زه
بارمې رقیب نه وکړو غږ چې بهر خوک دی ولاړ — نرې په خواب شومه رومبی چې نامه بر یمه زه
چې راغلې نه هله خبر شوم چې ګورمه نه یمه — چې دمبلمه غوندې په خپل کور کې لښر یمه زه
که حادثو کړمه شبیلی نرې په رنګ رنګ ووتم — هره فنا مې په نقصو ده چې اکثر یمه زه
دانه د ژوند مې اماني که ماسوا وه صیچن — چې مې نیرک د مینې پرېښودو ککر یمه زه
دېوشکست نه چې غوندې بل شکست لره څي — غم د شکست یمه د چا چې په سفر یمه زه
په خپله خان لره تنوره شي جبه د فراق — چې نا اشنا د تلون وي هغه غریمه زه
لبونی خودشو چې دا روغ خلق بې تاب نه لري — راز د هستي شو رامعلوم په غرونو سریمه زه
که هبشه سحتي جبې لري دریاب د مینې — خبردی هدمه چې حمزه یم شناور یمه زه

(۵۴۲)

چې خبرشوی له نیاز یمه زه — له هغه وخته همه ناز یمه زه
ماپه ورو ورو بکاره کوې مانه — دکانیات په زړه کې راز یمه زه
پوهه دي لږ دنظربساز کره اشنا — چې غلط نه شې نظر باز یمه زه
وه نساپوهي داتهاغمونسه — چې خبر شوی په آغاز یمه زه
نه مې فنا شته نه وایس راځمه — ستاپه صحرانللی اواز یمه زه
ساز او که وران یم ستاله لاسه به یم — وایه قصور مې څه؟ که ساز یمه زه
نه ګرفتار دخپلو زلفو اوسه — حمزه له تا دور و دراز یمه زه

۱۵ جنوري ۱۹۵۱

(۵۴۳)

لکه ولفظ د آسان بمه زه — نوم خومې واخله که هر خود ریاندي گران بمه زه

زاهده پر بهیده د حورانو دغلمانو لمحې — بدیه مې نیت نه شي په خدای چې مسلمان بمه زه

اوس چې د زلفو سودایي یم نه شایق دگلو — بیا ولې بې سیبه داسې پرېشان بمه زه

لکه د موج سره ورسره فنانه بمه — چې په زور و دخیال کې دي پنهان بمه زه

کله دي گوري آیینه او کله خپل تصویر — اوس نه پوهیږم نه حیران یې که حیران بمه زه

سالې که وا زولې سترگې وار یې وانه روه — یو د رندانو بخوانی پیاني سشان بمه زه

سالې د سترگو سره وار هم په ما وا زولو

حمزه معلومه شوه محروم له دوه جهان .

(۵۴۴)

بې بدرگې غونډې کاروان بمه زه — لره جرس غونډې پرېشان بمه زه

حیف دی چې نن هغه افغان بمه زه — چې په خپل قام باندې تاوان بمه زه

څو چې گوزار خوري هومره لاسې لوي — ماخو په وې هغه سندان بمه زه

هغه ساده مسلماني مې څه شوه — د آیینې غونډې حیران بمه زه

گران ومه، څومره چې اسان لیده شوم — څومره چې گران ومه اسان بمه زه

په لېونتوکې هم حساب سه شومه — هسې عبث خیرې گرېوان بمه زه

څوک افسانه دبې تنگۍ چې لیکې — هسې بې کردار هم بې عنوان بمه زه

خرنه، خلانده ستوري اوس هم لرم — په لوړ هست لکه اسمان بمه زه

په نغیر کې که مکان بنکارم — خو په نمکین لکه زمان بمه زه

څکه حالاتو نه وسله کښېږدمه — وایه انسان او که حیوان بمه زه

د-نن-- سبا په گیر کې نه راځمه — بس د ماضي غونډې روان بمه زه

(۵۴۵)

بنکلیه ستا د لېونو سترگو ممنون بمه زه — په بې مغزي دعشق کې هم چې افلاطون بمه زه

چې د بل کس د حورې هم وې پرې نظر پرېوتی — رضوانه داسې حوره څه کړمه پښتون بمه زه

د انتظار په لوېو شپو باندې خدا راځې اوس — د بېلتانه په ظلمتونو سباوون بمه زه

په عمارت کې مې دننن د سباخښته عبث
بمه د دښمن د زماني چې تبې برون بمه زه

ستاذره غم به په بل چاپاندې بهرزونه کرم
دا زما ګنج دې روزافزون اوسي قارون.

خه دلسې شادبې رنګې په رنګ کې رنګ شوم اشنا
چې په عالم کې بم دچون خوبې چګون.

خه دې وېل وماحمزه ته رانه هېرشو اشنا
پښتني هومې لاپه خاې دې چې را

۱۹۷۴، جولای ۳۱ _ لوارګی.

(۵۴۶)

چې بیاتې شوی لـه در تلوبمه زه
بس خوتننګ شوی پـه پښتوبمه زه

نـه بسې دنیـاو آیني عـشـقه
ځان تـه حیـران بمـه چې څوبمـه زه

تـه پـه وعـده بـې وعـده راکـبوه
اوا موخـتـــه دشــــوګیرو بمه زه

بس رقیـان دي چې د برسې زمـا
ستـاد کرم نــه بـه پکوبمــه زه

څوکـه حمـزه لـه شپېنوتربمه اوس
خــو لاترتـــه غــزل ګوبمـه زه

۱۹۷۴، اپریل ۲۸ _ پېښور.

(۵۴۷)

نـه د انتظـار د سـبـد چې راولېږه
جـار دي شـم لـه زلفـو زولنـې راولېږه

بیا چې راستانه شي هغه تللې ماسامونه
کـور نـه مې د زړه سترګې ډېوې لاولېږه

وخـتـه حقیـقـت مـې د لـتـون وېږنـدلو
مانـه وروستو پاتې مرحلې راولېږه

مینه همه نیاز ده خو پښتو مې ناز ورو بنود
اوس د پښتنو سترګو جرګې راولېږه

ګېر مې شو کاروان د وسوسو په علیجکو کې
پـوه دي تـصور کـړه سـدرګې راولېږه

وایي چې مېن دي ښـول بللي دي بېګـا تـه
نـه شـوه خـو رقیـب راتـه په دي راولېږه

سـتـا لـه تغافلـه مـې ارمـان شـو خوبـولي
نـه کـه راتللی نـه شي، شو ګیرې راولېږه

خلنده روښـانه چې پـرې خوښه د ماضي ده
نـخـښـه ماتـه هغـه تـورې شپې راولېږه

پس لـه حمـزه راپـه څـه تهرسې په مهضو
حـال پـسې د محفـل د غلغلـې راولېږه

(۵۴۸)

سر په صحرا لکـه مجنـون یمـه د ستـا د لاسـه
پـه زړه زخمـي د ستـا د زلفـو د بـلا د لاسـه

نادې هم خدای کاندې مفتون د چاپه تورو سترګو
چې نوش کوې د کې پیالې د سم د چا د لاسـه

سور اسویلی د شپې ـ زرا دي د سحر شه نصیب
سوي خیګر لوغرن پر بوخې د جفا د لاسـه

خوب دې د سترګو نه قرار شه د بېلتون په نشه ورک دې قرار* د سحر باد صبا دلاسه
نامې جارې په خاې داوښکو کړوله سترګونه خون خوراک دې وینه د ځیګر شه د حنا دلاسه
بوخلې رنګ شې په تهمت باندې په شانې رما په کور و کلي کې رسوا شې د اشنا دلاسه
د سوې لوې زړه په درد باندې به بوه شې هله سوخته په برق چې شې د چشم فتنه زا لاسه
ستا که شعار جور و جفا وي نو جفا کړه نه ولې مجبور یمه حمزه خپلې وفا دلاسه

(۵۴۹)

ستا د سترګو دېوانه وم دېوانه یم لاتراوسه له هغې چې فرزانه وم فرزانه یم لاتراوسه
تا پرده کړه له مېنو، مرور شولې زمانه ورته زه دې بهانه کړم، بهانه یم لاتراوسه
خان نبود نه دې غرض وه خپله مینه دې عنوان کړه ورته زه دې افسانه کړم، افسانه یم لاترلوسه
هغه مې به و دلبر چې ستانوم زما په خوله وو په هغې چې مستانه وم مستانه یم لاتراوسه
ستا خوږ رنګه شراب وو، خو مېخولرې رنګ په رنګ و ور- زه دې پیمانه کړم، پیمانه یم لاتراوسه
لکه اوښکه ستا له سترګو هستي صدف نه راغلم که قطره وم دُردانه شوم، دُردانه یم لاتراوسه
زه له تا دومره جدا یم لکه عکس په آینه کې زه حمزه دې همخانه وم همخانه یم لاتراوسه

۱۹۶۲، اکتوبر ۲۱ ـ لوارګي.

(۵۵۰)

نر خوبه درد بې درده راشه نه خواوس دواشه نر خوبه زما نه بې چې زما بې خو زما شه
جرګې دارمانونو داغ آساد زما د زړه بې چا وې د عرشه بنکته شه خو شه د ثریا شه
په بحر د دوجود کې اې زما د زړه حبابه هوا د ژوندانه له سره وباسه دریاشه
که هیڅ نه وې نو لږ مې مخ روښې داوښکو کړه زه ناته په ژړا یم شمع رو په به خندا شه
خودبین شوې حمزه دومره چې له خپله خانه ورک شوې لرخان د زړه نه وباسه دخان سره اشناشه

(۵۵۱)

ستا په دید مې ور دسترګو نه خمبار شه زړه مې دود شه اسوېلی دانتظار شه
چې دې ستنې د بنوراکړې پرهرته په لیمه کې مې شه خاې د نظر تار شه
چې حیران غخه زبان د بیان نشته آینې وته رادرومه به سینګار شه
دغه کار کړه چې نه چپ هغه ګویاوي صحرانیه راشه غږیه کوهسار شه

په بهو د ورہ لمحه شه اوښکي اوښکي          لکه څاڅکي دشبنم به سرد خار شه
چې کلی د زره به غم وچوي نوګل شي          جمع څه کوي به عشق کي انتشار شه
حمزه لاړه قافله داشناملک ته          پرېوځی شه چې دیدن وکړي غبار شه

۱۹۶۱ م_ لوارګی

(۵۵۲)

ګډ به شي سرخېره سپېلني خوشه          بیا به عقلمن شي لېوني خوشه
نشته په دنیاکي څه چې ستا نه شي          خوی د تنګیالیو کړه مېړنی خوشه
ستا به تنتی خبري واورمه          ښکلیه نه لرمانه پښتواني خوشه
دابې واکه زړه به شي په څای زما          جار دي دوعدي نه خندني خوشه
خدا یوچې مرکز د ښکلا سترګي دي          مانه چې رامخ شي غرځنی خوشه
ښکلیه که داغواړې چې حمزه څه دي          پوه به شي په خوی مي پښتني خوشه

۱۹۷۶، جوزه۹ _لوارګی

(۵۵۳)

لاړه خوشحالي مې یووړه غم جور بې واده شه          ساز د ناکامي او د حسرت پکې راهه شه
عشق چې نظر وکړ د ادم د سینې ور ته          جوړه شوه پکې یوه تناکه نوم يې زړه شه
دا تمهید د راز و چې ظاهر ابن منصور کړ          بت باتې شو څکه چې له خولې نه په واته شه
عشق زما له خوبه یو تپوس د خودی وکړ          وتښتېدو خوب مې چې جواب ترېنه ونه شه
مه پوښته زما او د اشنا له ملاګانه          وي به رهبر دا دی، مابه دا وېل چې څه شه
نشته له سهورمي نه بل حاصل بې له رټانه          بد که د هر رقیب دی په محبت د اشنا نه شه
بار چې وېنې له خوبه شي دیدن بي هله کېږي          اوس مي وظیفه او عبادت په نمر خاته شه
دور چې شوه درېسي حمزه په لاړه تېر بدلو          سه و د نظر څه امتیاز به تله رانله شه

(۵۵۴)

د مسلم به زړه کې رنګ دخطر مه شه          به کعبه کې خونړی ستمګر مه شه
ګورته خان سره هنر مه وزه ښکاره کړه          چې ګل پټ ساتي به خانګه، اینخر مه شه
خانه ستا چې همسایه وزی برنده وي          سترګي وخوري جوردي شال د اختر مه شه

چې بې علمه کوي تله لاز کړي غلطه — د بینا ســره رانــده برابــر مــه شــه
زه به زره د چا په بغض خراب نه کړم — د خدای کور مې د هر چا رهگذر مه شه
د وصال معراج کـه اوږد و خـو لنـډ و — که هر څو مې کړه دعا چې سحر مه شه
چې دې ډکـه د ژړا شپه به دنبال ده — په تیاره باندې خندا د سحر مـه شـه
د عنصرو کـشمکش په اعتدال کـړه — رابرو ده بې حاصل قلندر مـه شـه
په نقطه مرکزي اوسه که پرکار یې — چې حاصل یې اضطرار وي مضطر مه شه
په وطن کې د عشق اوسه ژوند دې دا دی — د سپرغی په څېر لـه اوره بهـر مـه شـه
په سری چې څومره تریخ وي هومره خوږوي — مېچ د شهدو د ډمبري همسر مـه شـه
سپوږمۍ هېچرې تیاره لیدلې نه ده — دنیا یسته یار مې رقیب نه نظر مه شه
چې لـه بـدو حمـزه نـه اوړي دعـا کـړه — خدایه لاس مې په هیڅ باندې بر مه شه

(۵۵۵)

ای د محبت یقینه تـوري اندېښنې شـه — ای د صدق سپینې ورځې راشه توري شپې شه
څو به یې د ځان په معرفت لـه هوښه لرې — راشه چې دې پوه کړمه لږ ځان ته رانژدې شه
ستا په التفات مې هم قرار د زړه رانغی — څکه درته وایمه بیا بیا چې رانژدې شه
خواست کوي یه سترګو به محشر کې هم نګې کا — ای د انتقام جذبه سړو نه شې وریسې شه
سل سره پیدا کړه که مقام د لشنا غواړې — دا داسې منزل دی حمزه ټول پښې پښې شه

۱۹۵۰ ستمبر ۲۸ـ لوړکی

(۵۵۶)

جدایي مې یاره ستا شوله په برخه — ستا له ما سره کافي ده دغه نخښه
زما شو ستا صورت پخپل مرآة کې — ګټې توره د ستم دې وه نیم کښه
ده به ده مراد مند دې رقیبان کړه — د دوی خوا دې په تذلیل زما کړه یخه
تعجب څه دی که زه ملنګ صفت شم — چې مې قوت دخپل بدن شوه وینه خوښه
په اوبو دې د وصال یم صیقل شوی — فکر هیڅ ویره مې نه شي له دوزخه
ستا د ناز او د ادا په توره مړیم — څکه ماته عاشقان وایي چې بخښه
چې ستار یې نومستور هېچرې نه یې — دا خبره د حمـزه ده پـه زړه بـشخه

(۵۵۷)

زما زړه دې وي دا غدار به — ستا خالونه په رخسار به
ته رنګ رنګ جوړوه زلفې — زما عمر دې په دار به
ته په سترګوکې موسکی شه — بخ زما په زړه کې خار به
ګله تابهرته بوخې — له ربیاره نوبهار شه
نن دې کړې دنداسه ده — اور دې بل په هر ګفتار به
ته چې لږ پرې خوشحالېږې — غم زما په سربیار به
دوصال په شبه تلوار کړې — دی تلوار دې له تلوار به
وعده مه کوه خورانه — له ګفتاره وي کردار به
چې اشنا دچاطبیب شي — هغه درست عمر بیمار به
زه تیدي د رواج نه یم — ګریبان مې تار په تار به
ته مغرور او بې نیازه — زه نیازمند یمه خاکسار به
ستا د وروخوله دې ګونجې — د ببرې توري پرهار به
په ژړا زما ستوالونه — په خندا دتا انکار به
شپه دوصل سروه قده — له وصاله دې ر..ار به
اوس وصال دی ګیلې مه کړه — هر یو کار وي په خپل وار به
ته زما د کور په لاره — اوزه ستاد کور به لار به
ستا تازه ببرې نازونه — د حمزه تازه اشعار به

۱۹۶۶م ۸/۸

(۵۵۸)

یار چې یار وي هغه یار به — ګنې یار به څه اغیار به
چې د زړه صفت پیدا کا — تل مېن وي بې قرار به
دبرچې کار د بې کارۍ شي — د دبېر کار نه وي بې کار به
انحصار چې پرې د ژوند دی — دوصال نه انتظار به

انحصار یه خیـل خـواهش دي | نـه خـزان بـه نـه بهـار بـه
زړه مـې مینـه کـامنزل نـه | اې جرســـه تـاکو کـار بـه
عشق په صدق سنده بیزشي | پـه ربـاب بانـدې شـاه تاربـه
شـې یادګـار دګلوپـاتي | هـمې دپـسر عمر دخار بـه
چـې بـدګو او بـې حیـا وي | نـه یـې شوندې،نه رخـساربـه
نــه بنـده بنـایي مجبـوره | نـه بنـده بربـښي مختاربـه
نـه کمـې د دولـت پـه دي | نـه مالونـه دي بسياربـه
هـره تـوره بـه بـاد بري | خـو تـر وارو ذوالفقـار بـه
غـم دقـام چـې پـه سـر اخلـي | هغـه سـرهغـه سـردار بـه
ملحـدانو د دي وخـت نـه | دي مالـک اشـتر کـرار بـه
دجنـت مـاني خوبـي دي | پـه یـثرب مـې تـري مـزار بـه
حمـزه سـتاکردار چـې بـه وي | وي ضـرور بـه دې اشعاربـه

(۵۵۹)

یار مې شته کوز کې خکه ده ز | ګورمې دزړه وران دی خکه ده زما صحراخوبه
یار زما ویلي وو چې خوږ زړه به دې خوښي ر | خکه مې ده وېره د خندا په ځای ژړا خوښه
به لـږم طاقت د بیلتانه د سید چیـږ شه زه | خکه وایم زه چې مې د یار نه ده رضا خوښه
زهر وي،که شهد خو د یار دلاسه خوند کوي | ده د یار دلاسه مې جزا په ځای سزا خوښه
درد مې دی په زړه کې د جانان خکه ثنا کوم | خدای شه طبیبه چې زما نه ده دوا خوښه
حلک دې لیونی راته شیه ورځ وایي زما پری څه | عقل مې پکار نه دی د یار مې ده سودا خوښه
سر د ساز بنګنه په چوکات ورته حمزه ایښی | اوس که کړي وفا او که جفا د بېنوا خوښه

(۵۶۰)

تـادعقبی سـره دنیـا کـره خوښـه | مادیـبالي سـره میـنا کـره خوښـه
اوس بـه کامـل شـي ای زمـانظره | تـاچې دنیـا او نـه عقبـی کـره خوښـه
چـې دبنـو لاندي دي ماتـه کتـل | تادالفـت ولـې افـشاکـره حوښـه

چاپه دروغو چې اول کوله ... مینه یې پسته په رښتیا کړه خوږه
داخو یه دې چې بې اشنا پاتې شم ... ما اشنایې دهر اشنا کړه خوږه
یه ده دژوندمې یوه ورځ شوه سوا ... ما چې وعده ستا د فردا کړه خوږه
ته که مفهوم د زړه چاودون غواړې ... لکه د ګل هسې خندا کړه خوږه
ستا چې چیا لکه د ګل خوږه ده ... ما البونو غوندې خندا کړه خوږه
حمزه، دا داغ به بې یو ګنج ګټلو ... ګل د رهېدې خکه صحرا کړه خوږه

﴿۵۲۱﴾

چې سلګۍ کړې د روښن په غم چراغه ... نه له زړه پاتې کېدې ولې دماغه
د غفلت مواد هوس دړکړې تاته ... مینې اوس دې څه چاره بې استفراغه
هغه کوږ چې دیوه نه لرې څه کوږ دی ... زړه په زړه حسابېدی نه شي بې داغه
څه نسبت د تمنا او تلوسې دی ... څه سیالي به د بلبلې کوې کراغه
اختلاف د لیلو د پښتون څه دی ... دا ګلان دې همه واړه له یو باغه
جوړ اخلاص دې لا حاصل نه دی په عشق کې ... چې نه پاتې بې تراوسه له سراغه
عشق وزګار دی د راحت او زحمته ... طمع لطع کړه حمزه له باغ وراغه

۱۹۲۸ جنوري ۷ ـ جلال آباد

څه شي ګله سر دې خپل مېن که په صحرا که ... خپل خبرې ګرېوان په هر مقام کې په خندا که
ستا د تصور په ابتدا کې بې خان ورک و ... ستاد تصور په انتهاکې بې پیدا که
اوس به د سکون له رازه زړه زما خبر دې ... ساد تغیر دهر قدم سره اشنا که
زړه مې چې مشغول و د حسن په دنیا کې ... څه شندې دې و کړې زما خپل زړه دې دنیا که
ستا د ادا ګانو د وحدت نه خبر نه شوم ... خکه مې کثرت د جهان خان نه معما که
خای به زه هم خان کړم که اغیار دې وې په زړه کې ... نور چې د "هوا" په کور کې کور خان ته پیدا که
راز چې د هستې رانه صوفي وی بې له میو ... نه معلومېده څه مې دروغ څه مې رښتیا که
ستا د سمندر غوندې چپیا مې ماته نه کړه ... شور مې تول عمرې لکه د سیند هسې برپا که
زه حمزه نه یم خبر څنګه اشنا شو ... راز د محبت و چې تکل مې دافشا که

(۵۲۳)

اور دنغمې چې په زړه داغ راکه ربدي د حسن روڼ څراغ راکه
فطرت نه ستا په غلچکې خندا څه په زړا زړا دې باغ راکه
ورکو خوبونو غځونې وکړې چې مو دو ببش اشنا سراغ راکه
ستادي شيرينو غرېونيو ليو لبو څه په خنداکې تريخ اياغ راکه
اوس به زنځير شي د نهستې توتې بند د هستې نه بې فراغ راکه
غافله مه شې له زلفانو اشنا ماله هم بې څه دماغ راکه
حمزه وزر يې د ککو رپېږدي ماله عادت بې که د زا ' راکه

(۵۲۴)

کره وره دې اشنا دې په داغه که خوی دې نور که بيا هم زما لور ته يې که مخ دې په بل لور که
زړه مې له راحته رقيب نه چې مو سکی شوې تدر چرته پرېوتو اوبل يې چرته اور که
ولې مرګ او ژوند په يو محل نه يو ځای کېږي وګوره يو عشق يې دغو دواړو لره کور که
سکارې چې په حسن کې دې چاده خو زېښلي مادې چې صفت کولو خان ته دې پېغور که
نو ځي دې په محفل کې مخاطب کړه بې له مانه فکر دې ونه کړو شمع رو يه خان دې چور که
اوس دې لاله وهره النفاته که به شو ريم مخکې مې که ستا د تغافل له مخه شور که
لاس دې د جلوې که څو زما په نظر بر و سترګې مې همت د کتو ستاله سترګو پور که
ګل د پرېشانی او جمعيت راز و نه حل کړل غوندې خيل د مشرورق ورق کړو بيا بې خور که
خم لاګرد ش دکم نصيبه حمزه نه دی وارچې چرته راغلو برې سالې جام دې نسکور که

(۵۲۵)

بېلتونه څودې چې حسرت ور که زړه ته د مينې دې دولت ور که
عشقه چې څومره دې کلفت ور که هومره مېن ته دې حکمت ور که
عقل د عشقه سره روغه وکړه دلبو تتوب يې اجازت ور که
حسنه آيين دې عجيبه غوندي دی هم دې وحشت هم دې حيرت ور که

خوکه نـاخیزه دمبن اوبنـکي دي ولـي بنـکلا نـه يـې عظمـت ورکـه
چـې دهمـت عطـايې وکـره ورتـه هم يې شـوکت هم يې قوت ورکـه
حمـــزه گمـراه پـه بـدو لارو روان خـــو فخر علم(۱) هـــدايت ورکـــه

(۱) فخر علم زما شیخ سیدعبدالستار شاه رحمة الله علیه

(۵۲۶)

پوگوی ز زره دي دبنو په چوگان جور که احساس نه مې دي شوخه پردلوبو میدان جور که
نه غواړه داد د حسن دسینګار د آیینې نه ماښتاد محبت په حیرانی کې جهان جور که
ښکین دي په نابنو د فطرت جوړي راغلي دي حسن بې قرارچې آیینه کې دې ځان جور که
بنځونه مې دعشق وچلېدل په دغه ویـه الفت نه چې ماته پوره کېد ونکی لرمان جور که
نن کوم غوندي نظر دالتفات بې راته بنکاري اشنا و مرور راسره، کوم مهربـان حـون کـه
لذت له گنبر اخلي هیڅ له خلقو خبر نه دی اشنا چې ستاله کوبه لیوني بیابان جور که
بوغږ دي د راتلو و ،وار خطا به نه وم ولې راتنګ دیـرلې نه خکې مخ دخزان جور کـه
خاموش به وم که ستاخوږې خبرې دمرښت وی مجبور ومه له زره چې ماخبروته ځان جور که
وعده دې نن له نورو نه څه کلکه معلومېږي خوښادي تبسم مې دیقین نه گومان جور که
ماهر کلـه چـې ستاد هېرولو ابرراوســت یادونو دي زما د زړه په سیمه باران جور که
خوبونه وو پریشان دعشق په خوب کې مسلل شول ماښاله نورو زلفو چې اشنا شبستان جور که
چلنوم دلشاوا خپست چې زیبرګی دي له خولې ووت داخومره په ناګران و چې دي دومره اسان جور که
هېرشوی نه زمایې اوکه زه دتا نه هېرشوم باران دی دیادونو چې صورت دي طوفان جور که
وختونه چې کره واره زماني راته پلکوسه دېرزغم د حوادثو مې د زره نه سندان جور که
حمـزه دفنارسک نه لري چاري د مېنو تاولي د سرواوبنکو ګلستان په ګرېوان جور که؟

(۵۲۷)

بس چې دورک شوي زره لټون مې مکمل که حال دوینانه دی ستامعصوم نظر مې عل که
ستادتندې ګونجې مې پښتوز غملي نه شوي حوږ خکـه شـعله کـې مـې دول دېلـه ول کـه
ستانمکي حسن لتوچیستان دزلفونه و مایه اوږدوشپوکې دغه سوال په اوبنکوحل که
ستانه مې حیرت چې دنظر استازی راوړو ماتـه آیینـه یې تـول دحسن جایېر جـل کـه
ماته په محفل کې په هیڅ رنګ چې نظر نه کا ، درسوایي حقه اجمال بـې مفصـل کـه

تېرو هسې غرور دې دنيا هست. آيينې تېرو هست — شوق بې د سينګار درته په حسن کې خلل که
تا به اوربه دلې وې فنا شو پورته نه شو — ستا د کوخو لارو چې تعريف زما دبل که
شک مې د فطرت په بې محله چاروراشي — زړه چې دوه مينو بود بل سره بدل که
ماوې بد رګه به د شو کارو جارې سه کا — ستا ساده نظر و چې ماز ړه ورسره مل که
بس له ما د زلفو تستمنې به جدا اودلي — څکه خو حمزه زما په برخه بې غزل که

(۵۲۸)

داسې بې ګنم لکه چې ما په کور کې خوب وکه — ماچې نن غرمه د کراچې په شور کې خوب وکه
کله کله زړه د عشق په تاو کې هم غافل اوسي — څه دې تعجب که سمندر په اور کې خوب وکه
خدايزده چې به داوې التفات اوکه غفلت د يار — شپه د انتظار وه، خو ملنه په زور کې خوب وکه
عشقه زه دې څه د رسوايي نه بې پرواکرمه — ګوره عجيبه چې پښتانه په "تور" کې خوب وکه
خوب د يار د وصل وشايد په خوب کې خوب زما — څه عجيبه خوب وچې مې نور په نور کې خوب وکه
توله شپه بيګار ليب په سترګو کې ساتلې وم — ګويا ما حمزه بيګا په ګور د چور کې خوب وکه

۱۹۷۶ اکتوبر ۱۱ ـ کراچی.

(۱) ار تښکار وزلي

سالې چور خپلو مستو سترګو ته دې پام ونه که — نه چې دا وايې چې ما قدر ستا د جام ونه که
په يو ديدن کې دې بخښنه د عرفان وه هسې — چې په هيڅ خيز بې هم اظهار د استفهام ونه که
سر مې ونه کړه ملګرتيا له تېنو سترګو سره — پښتون احساس مې زيات له دې نه احترام ونه که
شربې آسرې مې اسرېلې چې له نسيم سره لاړ — روټرې غلط شو که تکل بې ستا د بام ونه که
نن مې سامخ د پرې پېرزو ديده مې پله نه کړه — نه چې زاتلې شو مخروني مې د ماښام ونه که
بشکليه معيار د مېنانو نن سبا شې بدل — کاروسيګاريه دې خفه کړې که دې خام ونه که
نه خو راغلى بې حجابه خاصو عامو ته وي — څه خو سبب و چې ديدن دې خاص وعام ونه که
زاهده مې و محترم چې يې حرام وبلل — جوړې محرم نه بې چې تا يې احترام ونه که
وراندې چې تېر شوې له ناکامه عاشقانو خنې — حمزه تا ولې له خپل قام سره ناکام ونه که

۱۹۷۰ مارچ ۱۰ ـ پېښور.

(۵۷۰)

چې بېلتون د جاناشنائي کړي پيدا په مخ کې مالگه
دزړانه پيدا کېږي د خندا په مخ کې مالگه

چې مې زخم وى لاسانلي، دي دا ځکه زړي اوښکې
چې دلن يې کړه پيدا سنادموسکا په مخ کې مالگه

لرمانونه چې ترسکون مې، په ژوټون ور، اوښکو وورل
پاتې شوې چرته نه ده ددريا په مخ کې مالگه

که سکتې اشنارانه شي هم وعده يې دسباده
تن به زه بله ديوه کرم دبيگاه په مخ کې مالگه

زه په رلز د مينې پوه شوم چې ککی زما په تلو شوي
کړه پيدا د پرې زړاسې د اشنا په مخ کې مالگه

بريوکې چرته ودې شوې لېونې د مينې څه شول؟
خدايه ود اخوځايې نه وه د صحرا په مخ کې مالگه

د عشق وګټه نه فضاشي چې وزر د خلوص پرې شي
د هوس څښې چې رلنې کړي عنقا په مخ کې مالگه

چې دوخت له تراوه خوفه شي اخفاد مينې گرانه
پو لطيف اشارېت کړه د افشا په مخ کې مالگه

حمزه ته چې بې نواشوې اصل تاد مينې وموند
داخو څکه د زړه ښکارې د هرچا په مخ کې مالگه

۱۹۶۰ ،اگست ۱۸ ـ مشهره،حلع هزاره.

(۵۷۱)

تاو د عشق زما جوشه کړله بد رنگه
و عاشق نه ده ښايسته د گل تر رنگه

عاشقي لره تکميل په هجران نه وي
پايېدار بوټلی کښې وي تل په لنگه

ورمعلوم نه شو نظر د امتياز مې
امان غواړي عاشقي زماله جنگه

د ظاهر په صفايي کې کدروت وي
آينې لره خلاصی نه وي له زنگه

که مې خومره تجارت وکړ د مينې
هيڅ پرې زيانه کمه نه شوه زما پنگه

د اشنا د سترگو مې در پوري نه وي
چې خيگر لره راځي؛) مژگان خدنگه

زه حمزه يم له هر څه نه ازاد شوى
ملنگان چرې زهر نه وي له قلنگه

() آر: خرگان.

(۵۷۲)

خم خپل خان ته نامه تر يمه په خپله
مبتدا د خپل خبر يمه په خپله

له گوزاره بې پروا او په صفت يم
چې مرهم دخپل پرهر يمه په خپله

خپل جوهر مې آينې د نسبت ورک کړو
ښايي داچې کور و کر يمه په خپله

انتظار د ازل خوب دى، ترابده
شوه ښکاره چې منتظر يمه په خپله

سپلني د زړه رقصان لرم له سوزه — بدنظرلري، مجرمه په خپله
د دنیا په خوب کې ورک یم پیدا ښکارم — هم مقام او هم سفریمه په خپله
زه حمزه به هسې وچ او پامال خود یم — چې وتړیوته ګودریمه په خپله

(۵۷۳)

ستا له یخه خوسه به نور څه راتله — بس خو اسوېلي ساړه ساړه راتله
ستا ښکلې موسکا مې پرې جرګه کړه خو — تللي ارمانونه مې بیا نه راتله
نه راتنه راګورې زه کښې نه شم — لاړه چې جوړېږي، نوېسه تلسه راتله
ما د ارمانونو لاړ نیوی نه شوه — وس مې پرې ببر نه و چې راتله راتله
زه ساده پښتون یم، خفه کیږې مه — رامې غله به خوله چې څه به زړه راتله
کړې دې وعده د ننن ماښام چې وه — نه خو به راتلې، وختونه نه راتله
کور د زړه دې وران کړو پښتنې زما — دلته خو رنګ رنګه میلمانه راتله
رامې غله لبمو نه که لوستې یې شي — هغه چې د زړه نه مې په خوله راتله
ومونډو منزل د غزل خود هغو — پس نه چې حمزه زما په پله راتله

۶۶/۱۱۹۶۶ ګست ۱۵ـ پېښور

(۵۷۴)

موازنه کړې د مینه داوصاف به تله — ښکلیو تلل زده کړې نه دې د انصاف په تله
لرتعلق نه د نکهت او د ګل خیرشه اشنا — نه خپل مین ولې تلې د انحراف په تله
عشقه ورېنم دژوند به هم ورسه قربان کړمه زه — که رانه اخلې بې اشنا د بوریاباف په تله
زاهده ښایې به ګومان به ګرځېد و نکو زړونو — ولې یې ګورې د روژواو اعتکاف په تله
په یو طرف د مین سرې د حسرت او ښکې واخله — په بل طرف ورسره تول کړه کوه قاف په تله
انسانیت د شجاعت، سخا، حیانوم دی — بام چې یې تول نه کړې د جنګ او (د) مصاف په تله
سبکه هرڅوکه د ازماد شخصیت تیږه ده — ښکلیه څوچنده دې درنه کړه د الطاف په تله
که خوشحالي ده د جنت که د دوزخ غمونه — پوره ختی نه شي الفت کې د اعراف په تله
حمزه معیارمې د ښکلا هجرې تیرونه خوړ — د ذرې فرق هم معلومېږي د صراف په تله

۱۹۷۶ مې ۱۲ـ لوړ ګی.

(۵۷۵)

به تیاریکي مي رقیبانو کړه رڼا بدله
د بـرلي خواني خزان کړه په بلا بدله

د غیرو خلقو د راتلو مي انتظار وي مدام
سختي د مخ چې داشناسي په خندا بدله

شبه د وصال ده د خفګان د لته موقع نشته دی
چې خوشحالي نه کړي جنت کې په ژړا بدله

پناه په خدای داسي نظریه وي هم چالیدلي
کاته یې څه وو چې زمايې کړه د دنیا بدله

وايي واعظ پرېږده الفت د دنیا کار کوه نور
دايې مطلب شو چې سودا کړم په سودا بدله

پټ به زمانه په نقاب کې مخ د یار نه شي
وربخ د برق به په تیاره نه کړي رڼا بدله

دبې قدرانو شکایت مه کوه چپ شه حمزه
ستا زمانه به په ګوهرو کړي وینا بدله

(۵۷۶)

څاڅکي له صدف سره چې جوړه یارانه کړله
دې خپلې جفاورځني جوړه دُردانه کړله

بس خوبي مقصد ه اسوېلي مي له خولې وتي دي
ګوره چې یارانو تر هغه جوړه افسانه کړله

هسې نه چې تندر ګنې ماسره اشنا نه دی
څه که ما په بله ونه جوړه اشیانه کړله

شمعې چاچې نه کړې عقیده په بزمونو کې
دا دې هم هغه چې یې یې کوره پروانه کړله

نن یې مستو سترګو داسې نوی غوندې ست وکه
مانه په لاس لاس کې ساقي هره پیمانه کړله

اوس به امتزاج سره رندي زاهدي بیا مومي
چا د صومعې په مخ کې جوړه بتخانه کړله

هره بهانه دې بهانه لري اشنا زما
بله کومه ورخ دې و حمزه ته بهانه کړله

(۵۷۷)

هنګامه مې نر غوېږنه شوه کله ستا چې صدا راغله
د کثرت د شور و شر نه، هغه ما ته جدا راغله

ستا پوره کمې د حسن چې سینګاره څخه نه وه
ما پوره کړه چې د رمخ شرم ستا بار خوته حیا راغله

زه د زلفو تصور کې الوول. ته نصیحت کړې
چې هغه نه شي واعظه که مې خولې ته بلا راغله

داخو ترک د محبت دی چې پیدايې غیریت کړ
هسې نه چې زما خولې ته ستا نامه په خطا راغله

عشقه ته هم غلچکی یې بېکاره لاړشي پټ موجود یې
ماچې هغه ته نېږې کړې ولې خولې ته دعا راغله

چې په لوبګو پېژنو مې جرته بل نه کړې اوروته
تول قصور زما د زړه دی دا جرګه په خطا راغله

په سحر کې چې پوګل مې و شبنم ته موسکی ولېد
په دې د بره سادګۍ یې حمزه ماته ژړا راغله

۱۹۶۲ مې ۹_لواړګی.

**(۵۷۸)**

**ورخوکي زمالسینتوي ه**

ل وکه چشمک پرېشاني مې بېرته راغله — دي وېجاړې دنياگې ته وداني مې بېرته راغله

سوي سريه بـل و ترونـه قابـل پيدا کومـه — چې په بل نوي لباس کې قرباني مې بېرته راغله

دا طوطي شوا بيان دی چې خوله پرانيزي ترتولي — که د زيبې سلاست او رواني مې بېرته راغله

د سخن ښاري والى په سرولاړي په ادب دي — چې په نوي رنگ د طبعې جولاني مې بېرته راغله

ارمانونو حسرتونو مې محشر جوړ کړويه تن کې — معلومېږي غم وملې جواني مې بېرته راغله

داسي وخوږه نمونه مې چې عدم مې هم وجود کړو — طوفاني کښتي د تن وه اماني مې بېرته راغله

لکه نمريه افغاني افق خلېږم زه حمزه يم — په ادب او په سخن کې سلطاني مې بېرته راغله

(۱) آر: شپوه.

عشـقه واخلـه د هنـر خپلـي راغلـه — د زنځيـر نـه د خـرد وتلـي راغلـه

تـه د بنـو د لاندې گـوري خـو پـوهـېږم — چې نازونـه دي لينـدۍ راښـکلي راغلـه

نه شوه دا هم غنيمت دی چې ورک نه شول — لرمانونـه کـه لـس خـدلي راغلـه

بانـه زلفـي دي برغـل کانـدي پـه سـپـه — اې زرگـيـه د هـر سـپاره اوبلـي راغلـه

شمعې اوس بې چې سبخې دا خو ابرې(۱) کړې — پتنگـان خـو سـتا مرسـکا بللـي راغلـه

گنده په شـول د عشـق پـه جـواری کـې — څـرک چې بـگـه د هـمتي بـا بللي راغلـه

چې تـورن د محبـت و پـه دنيـا کـې — وعقبـی تـه هغـه سـپين سـپيخلي راغلـه

اوس خـو بويـه چـې پخپلـه دتـا وار شـي — چې غمونـه دي خـو خـل راغلـي راغلـه

نـن دي درمنـد د ادب تـه حمـزه گـوره — سـتا لـمطـونه بروشـي كرلـې راغلـه

۱۹۲۷ مې ۲۷ ـ لوار — (۱) آر بشري

**(۵۸۰)**

دنيـا د حيرانـی کـې ورانـي راغلـه — چې نقشه دي په آيين کې ثاني راغلـه

خـې پلـو لـره دي لاس بـې اختيـاره — جوړ خوکی ته دي د حسن خواني راغلـه

چې کاروان د خط دي رانغی تر اوسـه — خو به جنس کې د ديدن دي گراني راغلـه

وفاداره وه د یار د مینې تبه — که اجل یې مینده نه کړو خانې راغله
دنیا شمع په خنداخندا کې کل شي — زرا ماله په نیمګړې فانې راغله
ګدایي د یار د در دې روزي نه شوه — حمزه څه که دې په برخه خانې راغله

[۵۸۱]

د پښېمانۍ نکې مې خوله نه په خطا راوله — په محویت کې دې ای عشقه انتها راوله
پرتبسم د سرو لبانو نه په لاز د مکېز — نه د احساس د خودداری نه په غلاغلا راوله
د پرې وعدې دې د دروغو نن سباوکړې — قاصده ورشه نن سبا یې په رښتیا راوله
هغه نرمخې چې وعده د نن مابام کړې ده — نمره که نرېږي نه خوستورو نه رڼا راوله
غوښته د زلفو دې تناشولې پرېشان حمزه — دا درنه چاریل چې خولې نه مې بلا راوله

[۵۸۲]

خدایه پسرلی په بیابان مه راوله — پرېږده په منزل کې مې نقصان مه راوله
ګرانه تغافل دې کرم بې نیازه مه موسبږه — سوال زما په خوله داسې اسان مه راوله
طفل د ابجدیم لا د عشق په مدرسه کې — زور مې کړه په دې کې امتحان مه راوله
لا په شپه عادت لکه شبنم د ژړا کړه — لا سحر د ګل غوندې خندان مه راوله
ای ناپوهه عشقه به ده څه چې د زړولې مې — بېرته مې خپل کور ته پښېمان مه راوله
زړه مې بربوکې غوندې لوړتیانه خوځناشم — نور وحشته شوق د بیابان مه راوله
لا خو د نسیم غوندې اثرېکې پیدا کړه — لا خو اسوېلې داسې خوان مه راوله
ماته د زېږګو دهمدمې نه بر راکړه — دا بښکلې یاران مې په پرسان مه راوله
نور مې شو همدمه زړه، د زلفو له سودا — پرېږده نور خیالونه پرېشان مه راوله
دا قابلیت اودا شهرت را الره بس دی — نور زما په پوهه کې نقصان راوله
ستا پرده خوما په عریانۍ کې هم ساتلې — پنجه زما بیا په ګرېوان مه راوله
ما د عشق ارمان چې په خودی دی ارمان کړی — اوس په خپل ارمان پسې ارمان مه راوله
ګوره که منزل وې رانه وروسته پاتې شوی — ګرد زما په پلونو د کاروان مه راوله
د هر علم دې راکړو شکریه ده — دا تیرې مې شورې په وجدان مه راوله

[۵۸۳]

دابې کرم ستم دې چې جفا بې کړله کمه — زیات شه داول نه اې زما دزړګي دمه
دم د زره مې ډېر و چې ته ډېر شوې دبهار غمه — دم دښکلي بار به دې سوا کړي د زره دمه
ظرف مې بې کټرچې سالې سترګې کړې رابورته — لړخوریه کـارچې لغزېدلې دې قدمه
لار دمحبت ده چې قدم وسه نشو بیږي — بیرته څه ګوګل ته سترګې مه لمدوه نمه
زلفې ناوراناو دې ستادحسن له کرلېچه — چاره دمبن دمحبت به نه شي ســمه
بې له خپله خانه که څه سورګني نور نه دې — ود ره جام چې درته څه وښیي[۱] جمه
تـاولې حسد دښخانې سره راواخیست — مخ به نور پرونس پښوي تبرې نه حرمه
زه دلدم نخښه بمه څرجې فنا نه بم — نښته هغه کس چې مې کړې پورته ستا له چمه
سم دې کړو هرڅوکه دې نظر د هوس کوږ و — عمر د حمزه دې شي درځار[۲] د زلفو خمه

(۱) آر وښیي (۲) آر جوړ و.

[۵۸۴]

لا تــوم خوښولی دسحر د د خرامه — دادې له کرم رنګه خبر راوړله ګلفامه
ذوق د مینوشي مې پاکیزه ضمیر لرینه — نه دې اموخته چې به کړې ګوټ له جونه جامه
ښجې مې د برق څونډې دې باز دملکوت بم — نیــــه ګرګـــان دې د مرداري دنیا دامه
خدایږوچې بېرزومې سرکوزې په مینه نه ده — وځه له چشمانو مې دښکلیو احترامه
بویم به څه شان به یو تسکین درته پیدا کړم — نه شه یک زیان دارمانونو ازدحامه[۱]
ښکلیو نه د مینې آیینه په مخکې مه وده — سم کانه که غواړې نه له دې سنګدله لامه
ښکارې چې زه ستا په طلبګارو کې ډېر بېه وم — څکه دې په وارد کې ډېر بدشومه له بامه
جذبه چاپلوسه نه دعشق دوطن نه بې — ورک شــه دهوس مخبره لـرې شـه غلامه
کبرې به کثرت درته بې واره سلامونه — خدای دې هسې نه کړي چې به تش درومې سلامه
نه چې رابې پاک دی زما حسن له خاص نه — تا[۲] زده چې باولې زما مینه ګنې خامه
خاې دې د خاصانو په لمو کې پیدا نه شو — ډېرې دې پیښې دخاص الخاصو کړې عامه
ملې چې ډېرې دانتظـار کړې د مینو — څکه مخ روڼی دې همیشه کبرې تمامه
عقل مکمل شي په لورتیا د لیوتوب کې — خاندې لیونې دې حمزه. ګروه بې له بامه

(۱) آر ازدحمه. (۲) آر: له وده.

(٥٨٥)

دستم نخښتې د روانـې زمـانې سـاتمه — زه پـه لېمـو کې بورنـدلي افسـانې سـاتمه
ساده اشنا رانـه ضـامن هـم دوفـا غـواړي — هم يې تاکيد دی چې به راز د يارانې سـاتمه
دلسې هم راشي چې ونه ځېږي اومدهوشه وځي — ځکـه زه بهرتـه دروازه د ميخـانې سـاتمه
شمعې مخ پټ کړو په فانوس کې په خندا يې ووې — چې زه پـرده د کـم همتـه پروانې سـاتمه
تـپې به لاس کې به زړه نوم يري د اشنا يادوم — رشته به منځ کې د کعبې اوبت خانې سـاتمه
ساقي راواچوه شـراب راتـه موسـپېږي ولـې — زه هغـه رند يـم خپلې پاکې پيمانې سـاتمه
نه يمه نه به شمه مست خوستاپه مستو سترګو — چې زه حرمت سـتا دبادې، دميخانې سـاتمه
زه که رنځوروم، رنځورنه وم، خورنځوردې کړمه — اوس به ارمان څرنګه ستا د خسمانې سـاتمه
هغه حمـزه يم چې اشنا د سـمندره، يمه زه — پـه هـر صـدف دتخيـل کـې دردانې سـاتمه

(پلار: غصصې) (سمندر ملوخوي په نشاره ؟)

(٥٨٢)

ستاسـره اشـنا چې زه پخلاخمـه — غـم دخـه دی بيا کـه لـه دنيا خمـه
تالـه بـه درخـم کـه لـه تالاړشـمه — سـتاخنې هـم سـتاپه تماشـاخمه
خـومره بـه مـاګران دي دا شناليدل — لاړمه، بيارا غلمـه، اوس بياخمـه
ورانـه بربـوکې پـه ابـادی کـې يـم — جـوړه چـې شـم لورتـه دصحراخمه
مابـه پـه دروغـه چې دې، دا چې خم — نـن دې دمحفـل نـه پـه رښتيا خمه
مـاوې کـه بيـامرمې کـړې اشنامې دی — ای رقيبـه نـن دې پـه وينا خمـه
دهـرې رسـوايې کـرم دحيـرت ګوتـه — ګـوره چـې اوس خـولې تـه داشـاخمه
مابـه زړه چاودون چې چمـن سـتاموند — ګـل غـوندې اوس خـورترې پـه خنداخمـه

۱۹۵۳ اپريل ۲ـ لوړ ګی.

نن دبهارله ښاره سترګې سرې خبرې ګرېوان خمه — ای د ديدن جذبه جوړ په تابانديې تاوان خمه
پر ديدن د زلفو چې خبر د ژوند په راز کړمه — اوس د جمعيت لـه دهره زوره پرېشان خمـه
وايم به هغه چې دتاسترګوراز ده کړې دي — ښکليه ځکه زه دې بې پرواله امتحان خمه

دا هستي له ما وه او که زه له دې هستي ومه — کور د آیینې ته حیران راغلمه حیران خمه
ناجي ما حمزه ونه به کنج د ستر گو کتل — اوس به لاپه پورته د عالم نه د امکان خمه

۱۹۲۹ مارچ ۱۵ـ د مدینې سورې نه د رخصتې په ورځ

(۵۸۸)

تل به د دنیا به رنګینو غلطېدمه — تول عمر به تال کې د بودۍ به زنګېدمه
بیا نو ولې تلمه چې به دې نوبو هېدمه — تا ته به رسېږم که له تاو نښتېدمه
اصل سختې داده لکه نرم چې سره زر وي — وخته ستا له ضربه غخېدم نه ماتېدمه
ماوې که خو نرم یم، درنه مې اراده ده — تاو نه د الفت لکه سیماب و نښتېدمه
دوه طرفه مینه او بنکلا وه غېږې یو وو — نه مې اورېدلې او که زه دې اورېدمه
نن یې د بنو دلاندې خیر کتلې مانه — تلمه او دخان سره بیا که موسېدمه
لاس دې را کړو نه ده، خو عادت مې پر یو تل دي — څه به کړې هدمه که زه چرته ولوېدمه
غشی به ترې خې، خو د هوس هغه لینده یم — بیا به هم کړه یم. که هر څو راسمېدمه
وخت وچې به بنکلیو اوبل ته اشارې کړي — کله به حمزه چې زه به لاړه نېر بدمه

۱۹۷۶ اګست ۸ـ پېښور

درته داشنا که په لېمه ورسېدمه — نه ورسېدمه، خدای پوهېږي ورسېدمه
نشته څه چاره چې مې فریاد ورته رسېږي — خو که آیینې ته یې دزړه ورسېدمه
ستا کوڅه زما د هر قدم نه مخکې تښتي — زه ور رسېدلی یم خو څه ورسېدمه
هر جابه درک ستا د بور جل راته نبودلو — هلته به بیانه وچې به زه ورسېدمه
جار دي له لدمه شم، رقیبه څه تپوس کړي — درته داشنا د تا په پله ورسېدمه
لاړې پر بشانی چې د نازلفې به لاس راغلې — خکه خپل مرام ته جمع زړه ورسېدمه
څه شو که دې زه کړمه غمونو همه اوښکه — سخ مې شه که ستا ترګړېوانه ورسېدمه
هیڅ که ما حمزه ته به خوله نه وایې نو څه شي — زه یې د ربیاریه تلمه راتلمه ورسېدمه

۱۹۷۲ جنوري ۱۶ـ پېښور.

۱۵۹۰۱

ستاله یادو وتی بی اسري مرمه — خودلکیه دتبري تماشي مرمه
اوس به نوملګروخه چاره کیږي — ایښي یي نښته ده،بي نښتي مرمه
ذکردمی هم کړه دتلقین سره — وګني اوس داهم بي توبي مرمه
ژوندیي زماستاسره یوځای کړلو — شمعي ته له ورځي زه له شپي مرمه
زه له ژونده خوښ کړم،ستاستم،په مرګ — خوښ دي زماژوندی،هم په دي مرمه
بي له هغوستر ګومي هیڅ سودنه شي — خوکه په حرم کي دکعبي مرمه
اري چي محفل نه مي حمزه،خمه — خه کړم له دي داسي تماشي مرمه

۱۹۶۳ اپریل ۸ ــ لواړګی.

ا

حیف دی چي زه ستاله جفاورمه — خنګه خطا،خنګه خطا اورمه
غوږمي چي بي ستاله غناناوري هیڅ — خوښ یم په دا لاچي غنااورمه
خانده ګله ستاپه زړه چاودون مي خه — زاړم چي نوست دصبا اورمه
اوبکو،دسلګوده زماتنګه ساه — ستاسو شکایت به جدا اورمه
حسنه دتسلیم نه مي والف نه وي — پرپرده لحن پرپرده زما،اورمه
دیدي شوممکن خوزه حیران یمه — ستاد دیدن غږدبها اورمه
ستابي نوایي شوه دحمزه نصیب — اوس به دي تل مسته نوا اورمه

۱۹۵۵ جولای ۲ ــ لواړګی.

نن هغه بنکلی دپرخفه ګورمه — زړګیه نن دي حوصله ګورمه
زه بي رهبره کوم زړه مه دخان — جوریه تیاره کي آیینه ګورمه
کورته په تلودي تیرهدلي رندان — زه دساقي په مخ دیوه ګورمه
مخ یي دنمر،زمانظروري دی — اوس یوه شوخه پلوشه ګورمه

چې د پښتو شونډو گفتار ته مې وه — هغه اسره په وینو سره گورمه
داخو همه یې د قدم نخښې دي — چې یې په هره مرحله گورمه
ستا په کوڅه کې ستا کوڅه نه مومم — ستا په کوڅه کې ستا کوڅه گورمه
چې د کثرت اثر ځپلی یمه — عمر مې تېرشو یو ډرگه گورمه
په عشق کې داسې مرحله هم راشي — ما هغه گوري، زه هغه گورمه
چې مې مجبوریه شو گیروکاندي — بس خو په شپو کې هغه شپه گورمه
حمزه محفل ته بې بلنې ورځم — نن د ښکلا د سیند څپه گورمه

پېښور ۲۰ جولای ۱۹۷۱،

بس خو لیتون دی چې زه څه گورمه — خدای زده چې بد گورم که ښه گورمه
پیدا مې نه کړه څه چې زه گورمه — عمر مې تېرشو یښتانه گورمه
چې راته نه گوري در گورمه زه — چې راته گوري در ته نه گورمه
ښکلا کړې د پېره خو پښتو لاړه شي — تېښت دې له شرمه چې بانه گورمه
ملگرو اوس مې ایله زړه وېږي — زه چې د زړه په سلا زړه گورمه
ژوند عبارت دی له کړو سوونه — چاته په سم چاته کاږه گورمه
د زړه حجره کې مې غوغا شوه کمه — خم د غمونو مېلمانه گورمه
سترگې کړه ما سره بد لې اشنا — چې هغه وگوري چې زه گورمه
بغیر له زړه د زړه بهانه شته دي — زړه ورکوم خو چرته زړه گورمه
بې ستاله مخه مې بل مخ ونه لید — په نمر خاته په برهواته گورمه
له ترېو سترگو نه مې دار مه کوه — دنیا په سترگو کې اوبه گورمه
ستا په نظر کې چې دي سپک واعظه — زه هغو سپکو ته درانه گورمه
جار له ترخو دي زه حمزه یم اشنا — چې په ترخو کې دي خواږه گورمه

(۵۹۴)

خبر د رته ربیاره چې درګورمه پروت دې په لیمو کې خبر ګورمه
بل راته رامخ نه شو خوک بې له ما خو چې له خپل خانه بهر ګورمه
بې نمره ممکن نه وي د نمر لیدل تاته به هم ستا په نظر ګورمه
ورمې کړه زاهد ته په شربت کې نن اوس د دعاګانو اثر ګورمه
تت چې تصور مې د اشنانه وي نن چې علامې د سحر ګورمه
وخته زه احساس چې د خپل خان لرم تاخکه هر دم په سفر ګورمه
خنګه نا اشنا شوې د حمزه سره مخ کې دې بیا رنګ د خطر ګورمه

(۵۹۵)

مجنون دې کړم په عشق کې صحرانه لاړمه بېګانه شرمه له عقل نه بېدیانه لاړمه
داستانیکلی بشر به فراموش نه شي له ما هرڅوله دې جهانه که عقبانه لاړمه
مشغول چې یو ګړی شمه د ستا په تصور ګویا د عشق بېړ د کې دنیا ته لاړمه
سودا د ستا د زلفو مې سودا د خان کړه مل بازار د لیوتوب نه دې سودا ته لاړمه
ماسر تریابه یاره تماشا به کړله ستا ناتوان د حال زار دې تماشا ته لاړمه
محروم به زه حمزه نه شم له فضله دستار ښېښې ابله چې د درد مداوا ته لاړمه

(۵۹۶)

چرته یې چې ستا نه جدا یوورمه خوک به وو بې تانه خر تا یوورمه
بې ګودره خفل کړم لکه دود چې وي ستا د ګورو زلفو هوا یوورمه
یوتربلسه غوندووسره د برښکلي خدایزده چې پرېشان یمه چا یوورمه
برندې پښتنې شوې چې رامخ شولې ستا د تیتو سترګو بلا یوورمه
ای د سبا سترګې زه هم ستا په خبر هوش او د تمکین نه سبا یوورمه
داد راته تر د بهره شمعې راکړو خو یوورمه ملګریو سبا یوورمه
ګبر که زه حمزه شوم د کاکل په دام اوس مې بلا چرته بلا یوورمه

(۵۹۷)

که یې ونه بلبلم یاد یې کرمه    که یې خفه کرمه هم ښاد یې کرمه

چې په شېرینه خوله خبرې کوي    څه یې قصور شو چې فرهاد یې کرمه

په زولنو زلفو یې وتړلم    اوس پرېشاني نشته ازاد یې کرمه

پښتو په مینه کې هم نه پرېږدمه    چې د پښتون بابا اولاد یې کرمه

چې زه حمزه دې هېرولم اشنا    هم داتکل وچې درياد يې کرمه

۱۹۲۸ اګست ۱۳ لوارګی

(۵۹۸)

زه که روان په هره لار اوسمه    دا یې حاصل چې بې قرار اوسمه

اختیار مې هم دې عبارت له جبره    زه خو مجبور یم چې مختار اوسمه

کله به یار کله اغیار اوسمه    کله به ګل کله به خار اوسمه

کرکه کوم چې محبت کومه    کله به روغ کله بیمار اوسمه

چې بې کارې مې هم ناخوښه نه ده    خوښ یم به دې چې تل په کار اوسمه

نه یې مجبور اشنا چې ستا په زړه کې    زه چې هم ستا په اختیار اوسمه

چې دې بنو د ستنو خوی کولو    اوس به هم ستا د نظر تار اوسمه

نه د بېګاه وعده سبا راکوه    زه به دې خوښ په انتظار اوسمه

ورځه په خپل حسن مغروره اوسه    زه به غره په خپل وقار اوسمه

چې ستا د لارې په لټون یمه زه    په بې لارې کې هم په لار اوسمه

اشنا چې راشي خطا وار شي زما    حمزه ترڅو به خطا وار اوسمه

(۵۹۹)

ردې له زلفو همه عمر که پرېشان اوسمه    دا شرابي سترګې راواړوه چې خوان اوسمه

په بېلتانه کې دې که تل خیرې ګرېوان اوسمه    ګله راګوره چې سحر غوندې خندان اوسمه

واعظه بس کړه به هر حال به مسلمان اوسمه    نور به څه غواړې ضمانت خرچې افغان اوسمه

دهري نعرې ورته وهمه چې خواني څه شوې ... دزړيودې سره به خوښت وګرېوان اوسمه

لکه نکهت چې هم په ګل کې هم دګل نه بهر ... درسره يم په که دتانه ګرېزان اوسمه

ستاافسانه چې په هررنګ ويلې کېږې اشنا ... اګرېکر دهغې، هم په يې عنوان اوسمه

دآيينې نه مې جوهر دژوندانه زده کړو ... دخاموشۍ ژبه پکارده، که ګويان اوسمه

ګله چې ګېرېږې داغزو په مېنځ کې خاندې ولې ... وي چې به لاپه غم کې غم وي چې ګريان اوسمه

ستاعجيبه غوندې رانګ وي به بېدول نه وي ... هيڅ نه پوهېږم چې مېزبان اوکه مهمان لوسمه

هغزه به مېنه کې څه ګران وي نېربدل له سره ... که اطمينان مې دی حاصل چې په چاګران اوسمه

حمزه پلکرنه دستم دزماني به څه کا ... زه چې به خيال کې داښالکه سندان لوسمه

۱۹۷۴، جولای ۹ ـ لوارګی.

(۲۰۰)

دهرله سرزه بدر، کله زه هلال دعيدشمه ... کله روند به سترګو، کله زه همه تن ديدشمه

سرخمه په قرب کې دهجران غم وي په بُعد کې ... نه پوهېږم تاته چې قريب اوکه بعيدشمه

ماته رقيبان ستاپه غيبت کې ستاصفت کوي ... خم بې شي په خوله چې به خدمت کې دې رسيدشمه

بې دتادلطف اودکرم نه ده ممکن کله ... زه چې دخپل درداوداندوه خپله کليدشمه

خوکه زه سعيديم خوبې تاچې يمه نحس يم ... ای درحمت سترګې نظروکره چې سعيدشمه

وخت به کله را؟ زه حمزه چې دې صبح وګورم ... سرچې به درود، به بسم الله اوبه تمجيدشمه

(۲۰۱)

دربغه چې هومره اسوېلي نه شمه ... څوچې دخوږو زړونوسوی نه شمه

په نېرونو کې مې، بوکيف موندلی ... بس خوتېروخم تېروهستی نه شمه

راته به مروسترګو نظرمه کوه ... چرته ناڅاپه رازوندی نه شمه

دې ته به څه وايو، مې لوظه ته يې ... له شرمه زه درته کتلی نه شمه

دادنسيم غوندې شوخي مه کوه ... زه لکه ګل خوموسېدی نه شمه

دازولنې موراپه پښوکړې ولې ... خدايږو، په دې به لېونی نه شمه

حمزه، ورتله مې له پښتودې خلاف ... زره خومې غواړي خوورتلی نه شمه

واعظه بس کړه دهستي نه خوږتی نه شمه … بیابه نوهم بمه بوشی که زه هیڅ شی نه شمه

په خیر کتومي خفه کېږي؟خفه کېږي ولې … داسې راوګوره چې بیادرته کښې نه شمه

زه سنګیالی یمه دتابه بې پتی مې خه شي … یمه پښتون له خپله هوده اوړېدی نه شمه

په محبت کې چې پرېشان لکه نکهت غوندي یم … دګوروزلفوپه ځنګل کې پټېدی نه شمه

ستاانتګرته رسېدل داسې مشکل خونه وو … ولې اشنالکه ذاوښکې څڅېدي نه شمه

هغه کاکل راباد وي،راته یې مه پرانېزه … هدمه پرېږده زولنې،چې لېوني نه شمه

دااسوېلي مې دي بېخې دښکال ورېخې … دعشق وقاردی په ماګران چې ورېدی نه شمه

بې پته اوس که راته خوګوري په مروسترګو … زره دپښتون یمه واپس به رازوندی نه شمه

حمزه ترهغې مې جذبه دمحبت خامه ده … خان ته به پرخ ویلی نه شم چې خودی نه شمه

۱۹۷۵،اګست ۱۴ پېښور.

(۲۰۳)

د زولنو په پرانستو راضي کېدی نه شمه … هدمه پرته شه له ماچې لېوني نه شمه

په محبت کې اوس اشنا دا څه مقام راغلی … د تصور په سترګوهم درته کښې نه شمه

ای د اشنا د پخوانی مینې زلمو یادونو … هسې رانګ مو څه پکار دی چې زلمی نه شمه

زه حادثو ته مقابل یم د مردانو په څېر … لکه د پل به شم فنا خوباڅېدی نه شمه

په محبت کې هسې هېرله خپله خانه یمه … لکه چې خوب د لېونې راپاد یېدی نه شمه

ماونه ښکلیه په ساره نظر کتل خو کوې … خوفکر بویه چې دې چرته د زړه سوی نه شمه

زه به دتا نه شرمېدم چې د رکښی مې نه شو … اوس چې درګورمه له خانه شرمېدی نه شمه

دخپل شعور ګنې پردې دې یکې یت یمه زه … یمه په خورنګه ظاهر خوپېژندی نه شمه

ستاپه ښکلاکې به شامل لکه نمک یمه زه … خو دې که ترېوراته تندی وې بېلېدی نه شمه

ستا غلامې قبوله کړې ده یې دامه حمزه … بلا دې واخلمه د زلفو خرڅېدی نه شمه

ارګی

[۲۰۴]

ستا په لاز کې د پل نخښه جوړېدمه تلمه
حاروتل مې ناممکن وو، وړانېدمه تلمه

حوادث که شو راسخ لکه بې واره تندرونه
دیانه غونډې ترې هم مه رېبدمه تلمه

لکه اوبنکه بې قراره، د نمر مخې به حسرت کې
د فنا په لور روانه ځغلېدمه تلمه

بربوکې به دې جاده کې سرلوړي زما نه زده کړه
که هر څو فنا کېدمه، جوړېدمه تلمه

که شو کمار و د کاروان مې هر یو شی د دې نړۍ
زه له هر څه بې نیاز وم، لوټېدمه تلمه

خیل وقار و راته ګران چې دا وقار زما د عشق و
ستا محفل ته بې بلنې، تېرېدمه تلمه

نه به سترګو کې مو سکې شوې، هوش مې وکړه لړزونې
ګنې س د پیمانې غونډې لوېدمه تلمه

تماشه چې شوه ځایه بې سودا راته بازار شو
کله بر نه، کله بل ته وډرېدمه تلمه

د حیرت کور به ځایب شوې د هستۍ د آیینې نه
زه مېلمه، پر ساعت وم تېرېدمه تلمه

نن بې ماته چې به برندو برندو سترګو راکتلې
زه حمزه دې له محفله، نازېدمه تلمه

۱۹۵۶، جولای ۲_ لوارګی

[۲۰۵]

که رسېدم نه رسېدمه تلمه
به هر منزل به ودرېدمه تلمه

نن بې کاته پېژند ګلوې غونډې وو
په تولـه لاړه موسبدمه تلمه

پښتني هوسی د محبت ښکار
که غور ځېدمه پاڅېدمه تلمه

زلفو رنا کې تیاري هم لرلې
په تنګ څو تلم څو تېرېدمه تلمه

څه خو دې وې: څو بیا دې هیڅ ونه وې
زه په مطلب ورسېدمه تلمه

لکه تصویر مې حیراني لا نه ره
د فنا لور ته تښېدمه تلمه

ستا اتګر ته رسېدل که وو ګران
څولکه اوبنکه بهېدمه تلمه

ستا د بلنې کیفیت، توبه
خوشحالېدمه، بوږنېدمه تلمه

مینې عطا راته صفت کړ د وخت
که تېرېدم، نه تېرېدمه تلمه

د باسترګه شو مه ستا به دېدن
فنا کېدم خوځندېدمه تلمه

د مینې تنده مې کاذبه نه وه
له سرابو نو تېرېدمه تلمه

د ژوند له جبره د رته څه ووایم
که خندېدم که ژړېدمه تلمه

نن مې د جا سترګې لېدلې حمزه
په تولـه لاړه زنګېدمه تلمه

۱۹۲۹ اپریل ۳۰_لوارګی

**۲۰۶**

ما خوري چې ستا د دیدن غم به یه سر واخلمه      به نو عاریت به اوس د جانه نظر واخلمه
زړه مې به جلب کې اشنا ستا سره لیرلی و      تا سره چې نشته اوس یې چرته خبر واخلمه
دلته خه آداب د میخانې دي چې مجبور یمه      خدایه پروا انتقام درنه واعظه بهر واخلمه
ستا له ساره خویه مې کرمې د مینې ریاته شي      د برخکه درخم چې دې بهره له سلر واخلمه
خدایه پرو دلاله به خبر دې عشقه رسوانه کرمه      پټ به یې ساتمه چې کوم داغ به ځیګر واخلمه
بد رسیین مخ ته که پلو دې نیم کښېنو کړلو      نه چار وخم "خو چې دا حجاب د لمر واخلمه
[illegible]ردې شم له زلفو شو ګیرې داوړ د شپو څه وې      خدایه پو بلاګانې د جهان خوږه سر واخلمه
وکړې بو الوتی نظر تیر دې به مېنو ښې      زه د خوشحال ژوند به هم د دې نه هنر واخلمه
زلفې دې که سترګې که بانه که برندې وو خې دې      زه حمزه د خو مره بلاګانو خطر واخلمه؟

پېښور ۲۷ اپریل ۱۹۷۳      (۱) آر ته جارووم.

**۲۰۷**

له سوزه د[illegible] زړه ولې د واره سترګې ترونمه      بیا ګریبان ولې سحر په او ښکو ترونمه
لاس د وحشت شه د وصال کړلو ګریوان خیرې      له هره جاکه یې خرګند مخ د سحر ونمه
ګند د بر هر دې په پرهر باندې پرهر جوړ ول      وادلاسه سراله جوړه د دلبر ونمه
[illegible]رد نظر یار ته زما دار مانو نوده لاړ      که په صراط سوي جنت ته به سفر ونمه
د پښکال سور اسو بلې پنځ نیسم د قصر      سر په تعبر و هې مارغه د خیل نظر ونمه
[illegible]رجې کوم پولرې رنعت خشکه یې تل دې خوکه      خوک چې درجې الري بلا یې تل به سر ونمه
د نصور سیرلې جنت د زړه د نیا کړه زما      داسو بلې به نیلې سوزتښتې سقر ونمه
کړې تراتې دې زلمی داجابت مرور      خپې د دعا په دولې ناوې داثر ونمه
بوسه د لب یې ده قاتل خودی لعاب یې شفا      لرلې زه به زهر و عمارې د کوثر ونمه
زړه حامه شوه د نوبې ورته دریر شوه شوی      شوله د نوش د زړه په کور کې دې اختر ونمه
یاره رخصت شه دې ظفلان دار مانو به خواب      ورو ورو اریاسې ستوماني رانله د سحر ویمه
خه به د ستا به هکله وایم بې هوښی د فراق      به پیوپولې کندې د ګونجو یه بستر ونمه
[illegible]ن به داجولې بیابان کې ورې تحفه چالره      ٭ روان ډک له وحشت په تلې سر ونمه

مشاعره د حمد ملا      (۱) "د وحې" به "دوو"

(٢٠٨)

مینه د ملت به انتها ته رسومه  ګویا چې یې بېرته ابتدا ته رسومه
زه چې اسوېلي کړم زور یې چاته رسومه  جال دې په خپل خیال یې زه عنقاته رسومه
هم به یې شي داخوشامدګري اوښکي خلاصي  هم څه پیغامونه ښښتونخواته رسومه
نن مې ستا په مخ کې چې ارمان یخ اسوېلي شو  دا د مړو مړي مسیحاته رسومه
تامې چې لېږلو نه اوښکې راوستې نسیمه  اوس د غمه ډېري به زه بېګانه رسومه
پروخ لېږلي نه یم ابتدا ښکاري د مینې  خان په اضطراب کې چې صحرانه رسومه
نه مې هم تکل کوي چې زه دې په تکل شم  خان به کومه لاره وابه تاته رسومه
غم د ښېښتني مینې چې ما په سراخیستي  توان لرم که خان همه دنیا ته رسومه
خپل زړه مې ربار شو چې پخته مې محبت شو  خپل واردات اوس خپله اشنانه رسومه
خفل دملنودي دېیغور ژبه په کار ده  دیداري زوږ و برناته رسومه
لري به داخت کړم د ماضي او مستقبل نه  دانا جوړه حال به مدعاته رسومه
غفل نه چې حیرانه مې جرګه شي د پرېوونو  خان دانتها نه انتها ته رسومه
اوبنکي به شبنم غوندې په ګل د ملت نوی کړم  ورم دغه ژړا نن بې خندا ته رسومه
د ښتني مینې حمزه خواخوږي څاڅکي  نن یې د ښتنو وچې صحراته رسومه

(٢٠٩)

ما خو به دا وي، چې زه هم ستا شومه  هېڅ نه وم اګاه چې د هر چا شومه
ستا په تصور لکه د ستا شومه  څوک به شي رسوا که تماشا شومه
غم درته چې ښکلیه د صحرا شومه  څرنه به راستون شمه چېپا شومه
ستا له نېرنګو نه خبر هېڅ نه وم  څومره چې اشنا وم نا اشنا شومه
حرف د تمنا دې محبت کړمه  څه کړمه چې بیا شومه بیا بیا شومه
چل مې له منصور نه د اخفا زده کړ  سر چې د عالم ته په افشا شومه
دا څه عجب سُر دی چې واصل به وم  ښکلیه، په کوم دم به چې بې تا شومه
نه پرېږدي بې ذکره مَبن، نوم زما  عشقه د تا جار چې زه اولی شومه
غم را- رنګ رنګ د ژړا چل وښود  تا چې ستم وکړو به خندا شومه

دا کــه وي دروغ د لیونتــوب خبــر　　بند به يې بياځه کړي که رښتيا شومه

جور مې نه دی عشق له زماني سره　　پوه يې که هر څو به تقاضا شومه

سر وم د خپل خان به لټون ورک ومه　　ستا به لټون سر شومه، پيدا شومه

عشقه به اخر کې چې مقصد ته وي　　بــه شوه چې مجنون اونه ليلی شومه

څو که هما بون مې و حمزه کلام　　اوس خو خلک وايي چې عنقا شومه

۳۱_لولرگي

تــا(۱) سره اشنا شومه ستا سره بلا شومه　　خو دلــه واکــه وونــم تبرچې لــه خپل جدشومه

ماده سکه تردید کړي داچې جهان نشته دی　　گــوري اضــافت زمــا دي دبهاره ردشــومه

کــار د آيينې سره بوه نه شوم زمــا څه و　　خان کې چې مشغول شومه خان دبهاره سدشومه

تا(۲) سره وحدت زما راغلو خوموږ بونه شو　　ستا د الف قد به سر، تاج لکــه دمدشومه

طفــل د ابجـد ومــه لاړ د محبت کــې زه　　لاخــوزه، به لاړ کــې يم، څو کـه اب وجدشومه

ستاد التفات به وخت بــه بوره حمزه بمــه　　ستاچې التفات نه وي خپل نظر کې ردشومه

(۱) آر. سا.

ورک ومه له ځانه خوشابه چې ستابه زړه شومه　　نن له گومه ځابه راپيدا شوم چې زه زه شومه

نن دي څــه بــه دلسي عجيبــه نظر راوکتــل　　کله وابم بوه شوم کله وابم چې بوه نه شومه

نه چې رانه بــکلــه هــسې وايي وابه نه څه يي　　هيڅ ويلی نه شم، څه به وابم چې زه څه يمه

نه گوري له قصده رانه اوس، که درشه نه بــکارم　　وابه چې دي هېر کړمه اشنا، که دي لېمه شومه

مانه يې غوږ کړ واوکه خان ته يې غږ کړی دی　　څوک مې به دي بوه کړي خفه زه چې ومه څه شومه

جوړيږ چې بيان نه شوم احساس مې بغاوت وکه　　داو　وخت چې بوه به رازد ژوند انه شومه

د هر که مانعات وي څو منزل تــه بــه رسبږمه　　تينگ جرې حمزه که زه به هود د هڅتانه شومه

[۲۱۲]

چې د نظر ســره دې مـل نـه شـومه — څه خوش قسمته وم چې غل نه شومه
قرار مـې نشته پـه گـردش يمـه زه — فلکـه ستا په ژرنـده دل نـه شـومه
حسنه بې شـک چې دې بدل نشته — نـه کـه بـدلبرۍ زه بـدل نـه شـومه
وريـــې تـل شـومه داوښکې پـه رنـگ — دُر دانـــا د زړه دتـــل نـــه شـــومه
تېر شوم له عشقه هغه سوال شومه اوس — څوخلـه حـل شـومه خوحـل نـه شـومه
کـه پـه ژونـدون دې زماواربـل کـړ — څه چې لوگی دې پـه وربـل نـه شـومه
حمــــزه خـــواني زمـــاغزل وخـــوړه — خـامې مـې داده چې غـزل نـه شـومه

۱۹۵۵،دسمبر-پېښور

لـه حقیقـت نـه دې خبـر نـه شـومه — چې د نظـر نـه دې بهـر نـه شـومه
د ېـرې مـې وژرلـې شـپې دريـــې — خـو پـه خندا لکـه سـحر نـه شـومه
نـه خو پـه کسـبو کـې نظر بې زما — زه دې پـه کـسـبو کـې نظر نـه شـومه
څکـه بـې دريغـه پاماليږمـه زه — چې پـا بې مـال د چا پـه در نـه شـومه
تانـه کـه هـم زه رسـبدلی يمـه — خولـه خپـل خان څخې بهر نـه شـومه
پـه هـر منزل لـه خپلـه خانـه بغيـر — چا سره چرتـه سـر پـه سـر نـه شـومه
ستا پـه محفـل کـې کـه زه نـه ښکارم — خـو چې دننـه وم بهـر نـه شـومه
ستا چې برجـل د برنـه بـر دی اشنا — خیـر دی کـه زه لـه بر نـه بر نـه شـومه
غیریـت نـشـتـه خـو بیـا هـم شـتـه حمـزه — چې لـه اشنا نـه بې خبـر نـه شـومه

۱۹۶۹،دسمبر ۳۰-بازه جمار

[۲۱۴]

زه چې ستا د مینې په مجمر کې سېلنی شومه — لازمه فنا شومه، خوستا په زړه کې سوی شومه
نن يې په کره وره کې د غضب نخښې څه کمې دي — وبرد ې مبارک وي مرده بس ابله موسکی شومه
گوره عجیبه ده چې مې دی لـه زړه نـه وتـو — داخومانه دی ترهغې دی و، چې زه دی شومه

تول به مخکي تللي نا امیده راوایس شولو — عشله خفه نه شي که وروستی ومه، رومبی شومه

ماري د برېښنا نه زلفو خیال نه مي زړه جمع کړي — راعلي زولني راته شاید چي لیوني شومه

ما وي شمع رو به رقیبان ولې خوشحاله شي؟ — زه حودي محفل نه دلوګي عوندي ونی شومه

بره شوم چي ادراک د حقیقت په ما شو مشوب کې دي — لوبه دانړی راته بېکاره شوه چي سری شومه

زه دي دخپل حس آینه کرم به دي حوبن نه وم — دي حیران اباد و نه په خپله هم رانلی شومه

زه حمزه چي ستا په کابات کې خایېدی نه شوم — نه زما به زړه کې اوزه ستا به زړه کې ځای شومه

۱۹۷۰ ، حمسر ، ۲۱ ، پېښور

(۲۱۵)

مرچي شومه ژوند دفاني شومه — اوره مې اوس لې دتراني شومه

ستا دیو خیال سره همراه یمه — خنګه مخالف دزماني شومه

نبت مې نظر ستا د نظر مخکې شي — اوس خوابله ستا دنښاني شومه

بوګېه هستي شوه زما ستا دخال — بس خودداني وم ددانې شومه

زه حمزه چي ستا په تصور کې یم — سخ مې چي مالک دخزاني شومه

۱۹۵۰ ، فروري ۱۷ _ شهید اباد ، پېښور

زه اشنایي د هرانسنا کومه — زره مې په لاس کې تماشا، کومه

کار په دروغ او په رښتیانه لرم — زه که دروغ او که رښتیا کومه

رنګ دافشا د پرده اخفا واخلي — هغه افشاني چي اخفا کومه

په بې قرارو اوبکو برنه یمه — خدایه اخفایي کړي افشا کومه

نن دي جرات کومې ادا راکړی — هیڅ نه یم پوه خوابتدا کومه

تېر دوم لاس دي دکاکل ترڅو کسو — په پرېشاني کې انتها کومه

ستا دي بازار وي دنیا یست تل تود — زه دي تل تل یکې سودا کومه

چې سباخان سره بېګاه راولي — دسا غم خکه بېګاه کومه

شمعې محفل موندلی دی په هنر — چې په ژړا کې زه خندا کومه

خکه قرآن د یار د مخ ښکلوم  چې هم ثواب او هم خرما کومه
هغه به نه وایم چې اوس مې ویل  خبره واوره یوه، بیا کومه
خان به به مړو کې زه حمزه شمارم  ژوند به دنیا کې چې بې تا کومه

(ار ـ لغه)

نن اجازه راکړه تنقید کومه  عشقه په حسن باندې برید کومه
چاوې چې حسن مربي دی د عشق  که اپوته یې کړې تایید کومه
ښکلی تخلیق د محبت دی حسن  زه یې تایید هم یې تردید کومه
خامې د حسن ده، خواهش د سینګار  دغه دعوی په روی د دید کومه
داخو هم زه یم چې حسین (رض) ستایم  هم تعریفونه د یزید کومه
زه تنداری د خپل باطن خارم  چې عاشوره او کله عید کومه
کله غندنه د صافي دي له ما  کله ستاینه د پلید کومه
چرته چې خپلې نښانې وینم  هلته سجده لکه عبید کومه
حمزه چې پوهه له کتوده زما  کله خبرې د شنید کومه

۱۹۶۳ اپریل ۵ ـ لوبوګی.

سوال به کوم خو انتظار کومه  مستې خوانې ته دې لاوار کومه
پریشانې ترنندې د مسې واوره  درته په پوښتنه د بهار کومه
مینې در خار چې دې پُر کار کرمه زه  اوس خو کارونه د پرکار کومه
له هغه ګل به درته څه وایمه  زه خو تعریف درته د خار کومه
خدای زده پکار یم که پکار نه یمه  سکه زه پکار یمه چې کار کومه
قاصده چوپ چې هیڅ ونه وایې ته  درته پوښتنه به په لاز کومه
حمزه لسې د لـر الجن اورم  ګند د ګرهوان به پردې تار کومه

۱۰۵۵، جنوري ۲۵ ـ پېښور.

(۲۱۹)

وار مې راغلی دی خو وار کومه — ښکته کارونه د هوښیار کومه
لوري ژوري څه معنی نه لري — زه چې د سینه غوندې رفتار کومه
ښکلیه زما په انتظار مه اوسه — زه لا وزګار نه یمه کار کومه
ستا د راتګ خبرې پس ته به وي — زه لا خپل خاتمه انتظار کومه
دا برکت د بې لارې دی زما — چې په بې لاره کې هم لار کومه
پخپله خو خلق ښکار شوي یمه — اوس خطا کېږي نه چې ښکار کومه
په تال د زلفو زنګېدلی یمه — اوس به له داره ولې دار کومه
درته موقع د بې لوظۍ درکوم — چې په وعده دې اعتبار کومه
حمزه غزل مې بې اختیاره ووې — ولې لیکل یې په اختیار کومه

(۲۲۰)

زه د هجران د ورځې نول به ماسخوتن کومه — په خنکدن کې ارمانونو له کفن کومه
عشق کې بیناشو سپین دستر ګومې د نوروپه شان — په ورځ د زلفو یې به شپه د مخ دیدن کومه
خالي له زرو د زرګر د دوکان خاوره نه وي — ښکه باور د عاقلانو په ګفتن کومه
زه په وله کې د خیال د سخن سینه راولم — رفت و آمد ګویا په سترګه د سوزن کومه
چې سېرلی نه راځي ګل نه وي خوسېرلی هم نه وي — یار چې مخ پټ کړو زه به څه غم د سوختن کومه
حمزه په شهدو کې خوګله اشنا درکړه زهر — بیا مې توبه ده چې باور یې په ګفتن کومه

(۲۲۱)

ګرد د بهار دېلونو دلبو ښکو کومه — ښکه خو کو څه یې په بنو جارو کومه
ماترې په ژړا ژړا کې سوال د یو نظر کړو — وې چې زه نېکې په او بونه لاهو کومه
ستا په ناوهوب کېښوه دزې ورپل دې خورشو — ښکه خونن خان په وینو سوسالو کومه
وار د اسوپلو یه هم ددې نه پسته راشي — وراندې ترې په مینه کې خپل خان ستر کومه
ته چې راته نه ګورې ماسره زنګون کېښود — ګورم چې به نه ګورې تر څو، جادو کومه
زړه مې چې په ډاګه غور خولې یې څه نه دي — ناست یم په خزه کې ورته لارې شو کومه
سوی زه حمزه چې یم یې مخیو، خود وېر یم — وراندې تره) نوشلو شروې ښکه یو کومه

۱۹۵۴ . دسمبر ۳ ـ پېښور — (۱) آر: ترې.

(۲۲۲)

که په الفت کښې کله "زه" وایمه — که فکر وکړې هغه "ته" وایمه
د وچو شوندو نه مې مه وپوښته — غوږ خوله کېږده چې "زه" وایمه
په سترګو سترګو کښې دې ورتلم — اوس به په سترګو هم څه نه وایمه
مینې شعور د اظهار راکړو هسې — چې نه په خوله او نه په زړه وایمه
یوې خبرې ته مې پرېږده اشنا — بیا به په عمر درته نه وایمه
لکه نسیم د هغه ګل سندرې — په تیندا که په پرېواته وایمه
مینو خې چې بې بلنې ورشو — وایې؟ چې بد وایم که ښه وایمه
د ښښتو سترګو مېن یمه زه — تیره تیره لکه بانه وایمه
که څه مې ووې، څه دنیا ورانه شوه — چې خفه کېږې بیا به نه وایمه
خوی د ښو دې د هندوانو وې تل — زه ورته هسې ښښتانه وایمه
پټ دې دفتر لرې د حسن اشنا — دغه کللې چې ورته زړه وایمه
قصه د غم په اسوېلو کومه — خنګه تاوده ساړه ساړه وایمه
ما حمزه نیمه کښې خبره پرېښوه — نیمه به بیا ستا په راتله وایمه

(۲۲۳)

که د انسان د پاره نه وایمه — ژوند د افغان د پاره نه وایمه
دا چې زه وایم چې ته خان یې زما — ګوره د خان د پاره نه وایمه
غم د پرېشان د پاه وایمه زه — ستا د زلفان د پاره نه وایمه
ښکلیه وفا خو د جفا نه ښه وې — د خپل ارمان د پاره نه وایمه
ښکلیه د ښکلیو آیینې خوښې وې — د زړه حیران د پاره نه وایمه
د تبسم تندر دې لاته په زور — د امتحان د پاره نه وایمه

که مې قصه خپله قصه وکړې بیا د عنوان د پاره نه وایمه
ته په ستم کې لاثاني یې اشنا دا د اسمان د پاره نه وایمه
حمزه نه کران یې کرانه. کرانې کوه زه د اسمان د پاره نه وایمه

۱۹۲۸ نومبر ۵ـ پېښور

تاپسې بې کورلکه بوشوریمه سیند د محبت غونډې بې زور یمه
مالکه نرګس به نېټو سترګو وي لاس مې کړه امسا ته اشنا کور یمه
خلاص به د همزولو د پېغوره شې به شوه چې لایق دې د پېغور یمه
اوس مې کړه راجمع به لمدوبنو وم دې زه قسمت د حُسن خور یمه
سترګې کړه راپورته چې بې باکه شم پتنګه د الفت یم به تا پوریمه
غابې مې د الفت د حرص مات نه شو ځکه به دې لور یم. به دې لوریمه
لوستې دې اشنا که زه حمزه یمه واروه دا پانه څه لرې نور یمه

(۲۲۵)

پاتې څه سپرغی دې چې تاوجن یمه اوګنې خوږلن شومه خوږلن یمه
څه کرم د خوارې نه تیارې بنې ګنم نمر ختلې دی خوزه لېچن یمه
سرمې د دې داسې خوشحالې نه خار سا به محبت کې چې غمجن یمه
مانه به مخلص کړې د معنې طلب ګل د حقیقت یم خو اغزن یمه
نرک رانه موسکا د بنو لاندې کړه جور نه یم اشنا ایله زولن یمه
فن د محبت که څه هم فن نه دی فن شو چې اوس پوهه په هر فن یمه
غواړې به مرهم د زړه پرهر زما اوګنې اشنا د موسبدن یمه
غوارې مې اوس؟ تا کړو تغافل ولې؟ بویه چې وزګار شمه خندن یمه
ښکار دې د ښبو چې زه حمزه وم اوس مې که لږ خیر کړې نو ښکارن یمه

۱۹۶۶ د وسې اکتوبر ـ لوارګی

(۲۲۶)

خبر لکه نکهت غونډې پرېشان یمه
ستا په مینه ګل غونډې خندان یمه

وم دې د زلفانو چیستان په حل
شپې یمه اخیستې پرېشان یمه

یم بوډ بې ملته فسانه دخوند
نه لولې ماخوک چې بې عنوان یمه

خوځې مې له بنګلیو زړه تورېږي نه
سپین مې که وېښته شو خولا خوان یمه

مابه دواعظ، نه اوریدل ولې؟
لاخو مسلمانه مسلمان یمه

حق لرې سرتیټ چې له ماغواړې خو
څه کرمه اشنا چې زه افغان یمه

څنګه بې کرم بوه چې تعلق شوغوځ
تنګ چې له ماشوم غونډې ارمان یمه

نوم مې دی اسان خونه بې ناځلې نو
به شوه اشناد ومره په تاګران یمه

داسې دې اشناکرم چې خپل خان دې کړم
ورک شوم له خپل خانه بخپل خان یمه

تاچې له دېر عمره پس ازاد کرمه
پوه شومه بهترچې په زندان یمه

ورانده دې دراتنګ نه دې مېزبان ومه
اوس راته دابنکارې چې مهمان یمه

داخوخکه ستانوم وګرځېدان زما
ستانه زه حمزه چې روګرځان یمه

(۲۲۷)

هیڅ په دې خبر نه یم چې څه یمه
ته که وایې یم، که وایې نه یمه

څوچې دې له سترګو غورځولی یم
هومره دربېښن شوې ستا په زړه یمه

مینه کې تاوده ساړه څه سوال نه دی
نه دې په تاوده نه په ساړه یمه

تاپه کونج دسترګو چې راوکتل
نن مې یقین کېږي چې دا زه یمه

نه پرېوځم پربېږده چې روښانه یم
ستا په دیدن اوښکه په بانه یمه

نه راګورې مه راګوره، ګوروبه
زه هم اولاده د پښتنانه یمه

ته زما په زړه یې په خوله نه راځې
زه دې په زړه نه یمه په خوله یمه

بدیم بلا بد، چې مې بدبولې ته
چارډې د ویتانه بلا بنه یمه

ستا د تغافل نه ګیله نه کرمه
ته که هغه نه یې زه هم نه یمه

سمې مې حمزه له خندا شنې کړلې"
څوکه وربدلې زه په غره یمه

۱۹۲۷ سنمبر ۲۵ لولرګی ۱۰ آر کړې

[۲۲۸]

ماته خو تول ته بنکاري اوما پوښتي چې څه یمه
اوس زما په خوله به څنګه دا راشي چې زه یمه

زړه راپورې مه تره لـه هرڅـه بیګانـه یمـه
یم د خان په خبرمه[۱] سبا یم اوبېګانه یمه

زه په خپل محیط کې چې د هرسړي په خوله یمه
بل په څه سبب وې،یې لـه دې چې ستا په زړه یمه

بدیمه که ښه یمه.دد ې نه هیڅ خبر نه یم
دا خوستا په خوله کې دې چې بد یمه که ښه یمه

ښایې په صحرا د بې ننګۍ یوه نعره وکړم
ګوره که څه یوه شم چې دا یم اوکه دا نه یمه

نن یې بوراسترګو په مستۍ کې راکتلي دي
سرلکه نکهت په بېې طرفـه الوانـه یمـه

ښه چې همه زه یمه اشنا،نو وایه ته څه شوې
وښکارې خپل خان رانه چې تانه په ګانه یمه

دا د قدم ښکنبې خو حمزه رانه زمانښکاري
خدایزده په دې لارې به ته شوې کله زه یمه

۱۹۶۸ م مۍ ۲۴ _لوړګۍ
(۱) وار: خرمه.

[۲۲۹]

چې د خوانۍ او زړبودي نه عبارت نه یمه
څکـه داده د ژوندانـه یـه نهایـت نـه یمـه

ګله ژوندون مې ستاپه خبریوه خندا مه ګڼه
چې بې مقصده پرېشانه وې نکهت نه یمه

شراب د شوق نه وو،دا ماخپله خواني وڅښله
اوس باسته دار د خمارې سترګو دست نه یمه

وینه مې څښه ده،زما د زړه همت وګوره
نور دې ارمانه د پرېشانه زړه همت نه یمه

پښتني هوډ مې پارېدلې اشنا ستا په جفا
اوس مې د زړه نه شه بهر پښتني پت نه یمه

عشله چې نه زما د هوډ سره بلد نه شوې
لاړ شه زما نه چې قابل دې د عظمت نه یمه

اوس چې ما وویني په ورو مخ ته پلو ونیسې
داڅه سبب دی چې په زړه کې دې هیبت نه یمه

یم چه ناداره نو هر څیز د جهان ما څخه دی
کـه تشـه شوره آیینـه یم خو حیرت نـه یمـه

لاپرهه نه یې برې پر خو خله یې بیا ولوله
زه څه لفظ یمه اشنا چې لا جرت نه یمه

پلویـه ورو ارچتوه،یمـه لـیچن د فـراق
چې دې د مخ د پلوشو سره عادت نه یمه

حمزه په کونج د ګمنامۍ ولې لا مور نه یې ته
تل به دې دا وې چه زه ووی د شهرت نه یمه

۱۰۴۶ مارچ ۹ _ پېښور

[۲۳۰]

چې دې لـه سترګو پرېوتلی یمـه
ایلـه دې زړه تـه رسـېدلی یمـه

عشقه دېرهې نه هم ستادی اوچت
داسې مقـام تـه رسـېدلی یمـه

زه دې محفـل تـه پـه ویـنا رقیبه
درتللـی نـه شـوم خـودرغلی یمـه

داخه مقام دی چې زه خیال کومه — نه چرته تلی نه راغلی یمه
ستا اتنګونه رسېدل ګران وو — لکه داوبنکي څڅېدلی یمه
په تمام عمرکښې بس دا یوخل — ستا په ککوکې موښېدلی یمه
راز د سکون مې حمزه اوېژندو — د هر یو جزنه تښتېدلی یمه

۱۹۵۵، جنوري ۱۹ پېښور.

وایه کنه څرنګه دې اوس ګڼلی یمه — ښکلیه چې دې ستا په تهمتو لړلی یمه
پس له ما، د خېلو زلفو مخ په ستم یوه شوې — بیا دې د توُل عمرور خوشبو وړلی یمه
زه دې په ربنجینه خدا ئیرونه ښکلیه — خه دې په پسته پسته کې کلک نړلی یمه
ستا له دره ستا رندو کتوشړلی نه شوم — ستا په تغافل خپلې پښتو شړلی یمه
ولونه مې دعشق او خرد دواړه سره یو دي — پېرې یم محکم چې سر پښوب غړلی یمه
حسن به دې اوس د جانظر خوړلی نه شي — زه دې چې نظر لکه رانجه خوړلی یمه
زه حمزه خو هېڅ نه یم، که یم نو به هغه یم — ښکلیه زما، څرنګه چې تا ګڼلی یمه

(٢٣٢)

دعشق په لارې خطا شوی یمه — چې لاپه دې کښې سرا شوی یمه
یخ اسوېلی لکه نکهت شومه زه — ګله چې تانه جدا شوی یمه
له خپله هوده درته نه وایمه — راځه راځه چې پخلا شوی یمه
په تبسم دې زه داوبنکې په څېر — په پرېوتو کښې رنا شوی یمه
حمزه پښتو د دین ایمان نخښه ده — خپل حقیقت ته رسا شوی یمه

(٢٣٣)

ولیکه قلمه بیا غزل په جانانه — پرېږده چې ویښېږي دا دوه زړنې زمانه
مینه د زلفانو بې له خاله پښېماني شي — نه ورتله تښ دام ته وي چه نه لري دانه
پورته شه بیان په افسانه کې حقیقت کړه — بیا د حقیقت نه رانسکاره کړه افسانه
ښکلیه داخو لادې نښانه د پرېشانۍ ده — څوکه دې کمځې د جمعیت کړې بهانه
خوې چې دساقي مې دریابې غوندې ښکارېږي — نن مې چور په کار شو لغزشونه مستانه

مـــاچي رانيولـــه تـــا راوارولـــي ســـترگي — لاړه ســـاقي لاړه پـــه دې مـــنخ کـــې پيمانـــه
حسن هغه بو دى که په هر محفل کې ښکاري — خـان چـې غورخـوي پـه هـره شـمع پروانـه
يا خو دا خپل غم راته پردی ګڼوندي ښکاره شو — پـامې جنـون وکـړه ابتـدا پـه ويرانـه
شېخه د ربنيا وېل به خوند به هله پوه شې — ستا چې د حمزه ګڼوندي مشرب شي رندانه

۱۹۲۷ . ۲۸_کابل

۱۲

وروخــي لبمــه زلفــي بانــه پـــښتانه — خنګـه پـر خـای شـول پښتانه پښتانه
لـې مـې نظـر تـه هـر کلـی ووايـه — رتلـــي نـــه دې مېلمانه پـــښتانه
زلفې کمڅـی کمڅـی ښـکلا ګنمـه — ولـــي دې وي خـــواره واره پـــښتانه
ستا په محفل کې مضطرب نظرونه — جـور د مـستى نـه الواتـه پـښتانه
ورتـه اغيـار يـې منـاره پـه لمـن — دنـګ دې محکـم لکـه د غـره پښتانه
چې پـښتنه پـښتونې هبـره کړلـه — د دولـــه يـــاده ووواتـــه پـــښتانه
کـــار يـــې د زلفـــو د بنـــو يـــو دی — لـه خوبـه يـو دې لـوی واره پـښتانه
خدايږو چې خپـل مـرام تـه ورسـېږي — کـه د خوشـحال پـه لاړه تلـه پښتانه
پـه خولـه خـو واره پښتانه دي نـه دي — وايـه چـې څومره، دي لـه زړه پښتانه
خو چې له "ته" او "زه" يو زه جوړ نه شي — نه بـه شـي جوړ لـه "زه" او "تـه" پښتانه
چې لـوظ وکـړي بيـا يـې نـه هـاتوي . — پـه ژبـه کلـک دې لـوی واره پښتانه
کـه دېـري خـولې وې چـې يـوه ژبـه وي — کـه دېـرې ژبـې يـوه خولـه پـښتانه
نخښه د ژوند بې شو شملې باتې دي — اغيـاره لاخـو نـه دې مـره پـښتانه
چې سـتا جبـين تـه مـې نظر ورسـېد — تلی شي سپوږمی ته او که نه پښتانه؟
جـار دې لـه سـترګو، دوه خوبونه لري — کلـه خـواره، کلـه تراخـه پـښتانه
ببل دې وې خيرچې ديو لاس ګوتې وي — دايـه نـری کـې يـو پينځـه پـښتانه
ســـت شـول حمـزه د ايـشيا نبـضونه — لکـه لـوګی چـې شـو سـاره پـښتانه

**(۲۳۵)**

ترکه لالندرچې کړه کعبه اوبُت خانه — داچې به وحدت کې ددويي وه نښانه

چاچې کړه رندانو سره جوړه يارانه — پوهې شول په زړه کې حقيقت او افسانه

څوک وچې دامونه دهوس پې تاريه تار کړل — سرشندلي چادي په ورېسل دجانانه "(۱)"

اوس پې واعظان ولې تفسير دقرآن بولي — وي هغه دچاخبري مستي رندانه

دلته شي پوځای دفرزانه وو هغه لارې — يون چې دې پرې کړی کوم دمينې ديوانه

وشي مخروني دميخانې چې اشنا راشي — موسکه دوپيوي غوندې شي هره پيمانه

بېکارې حمزه دابه استهاد عقل وهوش وي — نن چې راته وايي ليوني هم ديوانه

(۱) رحمان بابا ته اشاره ده.

زهد ته مې خدايه نظر ورکړې رندانه — مې دالفت راکړې د ضمير په پيمانه

لولم پې به دې چې پې عنوان انسانيت دی — خدايه د هستي چې تا وېلې افسانه

گرد د محنت کش د مخ غازه دې د ملت کړې — اوبښکه د غريب دناکامې کړې دُردانه

مونږ ته زاره شراب په نوي جام کې راکړې — هغه پخواني مستان پې بيا کړې فرزانه

بله کړه محفل کې د هستي د امن شمع — هر سرې د هر وطن به دې کړه پروانه

مونږ اوراورکې کړه چې رڼا دې سوې مونه وي — ستوروغوندې موسکه کړې زمونږه زمانه

جام دې د پښتون دې خو باده دې بشري وي — دا دې اصول او د حمزه دې يارانه

۱۹۵۲ فرورۍ ۲۳ ــ مزار رحمان.

په الفت کې زما رشکه چې سوا شوې د حسد نه — زه چې اوس په خپله بديم څه شکوه به کړم دبد نه

ستا د حسن نه خبرشوم ستا د حسن له اجزاوو — دخپل حد نه هم خبرشوم چې خبرشوم ستا د حد نه

ستاله کمه التفاته ستاله نازه ستاله کبره — خبردار دې شوم له رسمه د آثارو دمددنه

عشقه اوس ولې تېرېږې دخودی توهين دې مه کړه — ستا کمال خو لهوتوب دی مخکې تېرشه دخرد نه

دحمزه نه به ستالاره په هيڅ رنگ غلطه نه شي — تصور دې ورسره دی بې نياز دی دبلد نه

اوس بې به زړه رناشوه چې کسوف لاړولمرنه
دجانان ورکه بلاشوه چې بهریې کړم ددرنه

زه بلبل نه یم نظریم،بې اوازه بوسه اخلم
کله زه یانه وباسم دجانان دچشم ترنه

ډک نظر دمالګې مانه اشناستون کړومعلومېږي
چې دردونه په حسرت کې رخصتېږي دېرهرنه

دخودۍ فنامې نشته که ستم کوي همیشه
څه ترلاسه به جوهر کړي که کوشش کړي دجوهرنه

زه ترڅوبه بې نوایم دالیاس،خضرمحتاجه
کله مابه بې نیازکړي دحاجت دبحروبرنه

دوصال خواهش نیمګړې وکړوخای بهریې بارکړو
په فراق باندې فراق شرچې سوداپې څې دسرنه

څه نسبت د" وخاورودفلک سره حمزه!
دحیدرعشق به هله کړي چې قربان شي دلبرنه

ژاړي چې بلبل فاني بهار لره کنه
خاندي چې ګلونه موسیقار لره کنه

جمع په خوږو نهتو د بهار مه شه زړګیه
ته چې شوې پیدا خواتشار لره کنه

شمع هره شپه وایې یو راز چې خاندي ژاړي
رون چې د چاړره وي بنایې دار لره کنه

نه راخې اشناګنې دشمعې څه حاجت و
شمع بلوم خوانتظار لره کنه

ستا دنظر ستنې مې ساتلې دې په زړه کې
تار د زلفو هم به وي پرهار لره کنه

یادمې دې چې تېرهغه شهوارده لاتراوسه
اوري مې چشمان د زړه غبار لره کنه

دابه لاجنون وي چې علاج دخپل جنون کړم
خیرې ګرېوان پروت وي بردې تار لره کنه

خاردې شم له سترګو که نظرمې کم شي خیردی
ته خوالتفات به مابیمار لره کنه

جوړدې کړ مکش په مرګ اوزوند کې کړوچې زاغلې
مېنځ د دوو سلګیو کې بیمار لره کنه

نوربنابست بې څه کوي خوخال بې نمونه ده
بس ده دا یوه دانه خروار لره کنه

تن دې به یل دول دې زلفې جوړې چې پرېشان یم
پوهه شي "بلاخپله" هوښیار لره کنه

پس دخاموشي نه دې انکاروکړوموسکې شوې
خدایږونیت دې کړی و اقرار لره کنه

دلته حمزه هریوجنس تیاره ده بې له عشقه
ته دیوه راوړې وه بازار لره کنه

(۲۴۰)

ای لیلی دمابنام راوره بیاگلرنګه شرابونه — دشفق په حناسره کړل دفطرت ناوې لاسونه
دوصال چمن که مراوی دهجران دخزان بادکړ — ای امیده په باغچه کې دې رامه شه خزانونه
بې شماره خیالونه خدای زده خیل دې که پردې دې — آینه یم په بازار کې خودمې خه پوښتې حالونه
یم منظور په هرمحل کې چې لوېږی کې سرکوزې کرم — هره شمع تل دباسه په درشل کوې نظرونه
زه په مینه کې همدمه دخپل تن پاتې یم سوری — اوس پرې څه که اشاراورې دتازه ګلوهارونه
دا نه په زړ ګونوچې روښان پرې تن دعشق دی — که په یوفانوس کې بل دې بې شماره څراغونه
اوم خوسېرلې مې کړې په زړه کې سترګې جوړې — بیاپه وخت کې دګلونوشول تازه دزړه داغونه
دنیښی نه چې هسې نه خوک راځي سامان دجنګ کا — دنمرغښې پلوشې دې ګیاوبلسې تېغونه
په عاشق اومعشوقه کې تله راتله دساپرده ده — له دې دوره دمه چې تېرشې بیابې نل وې وصالونه
ژوندحمزه بوه چپه ده چې راتله یې بېرته نشته — دفناکاسې په سردې په دریاکې حبابونه

په مشاعره ـ ۲۵ مارچ ۱۹۴۰ ع.

(۲۴۱)

عشقه تادمعنوزلفوچې لیده اوږده خوبونه — سلسله دشوګیرویې راته راوړه تعبیرونه
رنګین راکښلې کاندې، ستادحسن زنځیرونه — خپله تنده په سراب کې جوړوې راته موجونه
ماخوړې چې له وصاله، بې له مرګه څه حاصل دي — عشقه ته یې هم فناکړې، چې دې نوش کړه ارمانونه
انتظار دې که خالص وي له یوآنه عبادت دی — چې ګدون بکې دشک وې ترېنه جوړبه شي کالونه
ستاله وېښوخوبونوجارشم، اروې بیې له ماولې — شوزخمونه مې پرکاله، خوبولې شوردرونه
تر ترمې ګل فناشو، نکهتونه بې خواره کړل — په خندا خندا بې ووې دژوندون همه رازونه
بې خبره راشې تېرشې، دسحرغوندې جانانه — په موسکاموسکادې خومره خبرې کړې ګرېوانونه
ستاغمونه دې وي تل چې وي موسکې دزړه داغونه — تل دې بل وي په دې کورکې، ستادپاره چراغونه
همه غږدجرس نشته، چې بې زه په انتظار یم — زه حمزه به ورته څیریم، چې تېرېږي کاروانونه

(۲۴۲)

همه ښکلې به وانه وړې له پښتونه — خلقه پرېږدې څه جوړېږي دجرګونه
تمنا مې کړه سلګی دمخ پرونی — ضبطه جار دې شمه زه دارمغنونه
خیبری مینه زما هې تازه نه کړه — یم خفه یې دشولو پرلونه

دا بانـه چې نـه راګـوري خـو راګـوري | نـه کاتـه یـې لابـلا کـړي د کـرونـه
لاړې ورکې شوې د وخت د تندي ګونجې | چې مو ګونجې لاړې نه شوې د شملونه
ستا د زلفو پـه سـودا کـې لکـه سیورې | نـه خبـر یمـه د تلـونـه د راتلـونـه
هــره لاره د تــا لار ده، خــولار نــشته | هــره لاره دې بــیرته یې لــه ورشــونه
دا چې کله وسله کښېږدې خه سبب دې | کـرم پوښتنه دې لـه ستـرګـو پښتنونه
هـر منـزل کـې دې زمـا د قـدم نخښې | خکـه پـاتې شـوم د پـېرو قافلـونـه
زاهـد اوس پـه برکـت د صـهبا پـوه شـو | سـره د مـغ یـې چې غایب شول د ترېونه
ګرانـه زړه زمـا حجـره د پـښتنو ده | چې هیڅ وخت نه وي خالي د میلمنونه
پـه هـر ګـام کـې صـراحي او پیمـانې دي | حمـزه هـوش دې کـړه خبـرد نیندګونـه

۱۹۶۷مارچ ۱۲ پېښور.

[۲۴۳]

کــه هرڅولــه کیفـه ډک وي شـبابونـه | ولـې تـل یـې پـه سـراوري شـهابونـه
لطافت دی چې ښکلا یې په پرده کړه | بـل ښـکلاته چابـو دلي حجابونـــه
کبابونـه دي کـه جوړ مالـه زړه کـړل | ماهم نوش کړه ستا دسترګو شرابونه
په هرحال د ښکلیو سترګې وي ښکارخني | وي کـه بازاو کـه باښـې، کـه عقابونـه
حمزه غوږ مې ورواعظ نه، هم مې مې ځښل | لمبـــدل پـــه ثوابونو عذابونـــه

۱۹۷۶، اګست ۲۵ پېښور.

[۲۴۴]

مورز دزړه مارغه دي ددنیاله نعمتونه | که عقلاسترمانه شوي دشپه ورځ دالوتونه
پټ د فهم وي بخري په خوړلو دناپوهي کې | بې پوهم حاصلېږي د هرڅل دتهروتونه
دزړا په خاموشۍ کې پټ دشوردي محشرونه | دباران څاڅکي کاجوړه هنګامه دپربوتونه
تن زما د ګلو ماغ شو چې اشنا رانه جدا شو | جوړ په ده خو دشفق شي تل دنمر دپرېوتونه
په فراق کې داچیانو ده دشپې څومره خبرلوځه | شوروشرمې دي جوړکړي راته زیات دنمرختونه
داتکل دمل غورځنګ وي چې پتنګ له شمع ستوړشي | بدګومان دي اشنامه شي ذحمزه دجاروتونه

(۲۴۵)

پټو کې د احساس مې بېلتانه بل کړه اورونه — جوړ مې کړل وحشت په بربوکیو کې کورونه

ونښتله(۱) فضا د خاموشیو انتظاره — لا د ناامیدو پکې پاتې دي شورونه

عشقه په تکل چې د سراب یې تږی نه یې — اوکه رسې حلقه ستا اوبه به شي زورونه

لاړ کړه د الفت رانه احساس د خودۍ ورکه — پو په دوه به عقله درنه اخلمه پورونه

ولې به حمزه زما د سترګو ککی نه وي — بس په پو دیدن یې چې راپیدي شو تورونه

۱۹۶۸ مارچ ۱ ـ لوړ ګی

(۱) آر ننښتله مجبوري ګول.

(۲۴۶)

عاشقي به فنا نه شي که به مایل کړي اورونه — په خاشاکو که لاس بروي به لوګي نشته زورونه

ته چې عقل ای واعظه له ما غواړې په الفت کې — که توانېږې ورشه حور کړه په سیندونو کې کورونه

ستا جلال و پروي هغه چې پخپله لوړ اوچت وي — د صحرا تړې څه نقصان دی زلزله دې کړي شورونه

چې سپین مخ زمانه عشق کې نور کوډی شو غرا وشوه — که مې پته اشنایي کړه خو راپیدي شو تورونه

په دنیا د عشق کې پل پل د عاشق د نوم یادګار وي — چې فنا یې حوادث کا دا هغه نه دي ګورونه

له رقیب نه پټ وصال چې د حمزه او د بهار وشو — خدای زده لوس به په څه خلاص شي چې ناخوښي دي پرونه

(۲۴۷)

ښکلیه د تا بنو خپلي زړونه — خومره وي ښکلي بو پو هدلي زړونه

ته لا محفل نه هم راغلی نه یې — زمونږه سترګو ته راغلي زړونه

د مینې دار دي سلامت اوسي تل — ژوندي خوسا یي زنګېدلي زړونه

لږ خو په سترګو کې موسکی شه اشنا — چې دیوې بلې کړي داغلي زړونه

لږ خو موسکی شه چې تیرې وتښتي — وارخطا شوي تبرېدلي زړونه

عمر دې دېر شه چې ستم کوې تل — درته دعا کړي دردېدلي زړونه

پام کوه ګل نه شي کلی به یې ته — چې پرک ونه چوي موښدلي زړونه

حمزه ژوندون یې مبارک د دوام — چې په وعده یې تېروتلي زړونه

۱۹۷۸ فروري ۲۶ ـ میرخشانه ورسک.

(۲۴۸)

پاتې مې اسرې دي هغوسترګوته اوس مې وینې شپې دي هغوسترګوته
مانه به راګوري.خوراګوري نه ویښې مې توبې دي هغوسترګوته
خار، مې ترې دژوند دانه دانه کړله اوښکې مې تسبې دي هغوسترګوته
اوښکې دي سلګۍ دي اسویلوسره تلونکې څه جرګې دي هغوسترګوته
اوس مې ترې بېلتون لرې وېستی نه شي سترګې مې نږدې دي هغوسترګوته
ګوره دمحفل دېتنګانو حال تولې دیوې مرې دي هغوسترګوته
خدای زده چې پیدا شي دحمزه نظر پاتې څه نهتې دي هغوسترګوته

(۲۴۹)

واوره عجیبه چې مې نشې لاړې دسترګونه نه تلې چې توبې دې.چې توبې لاړې دسترګونه
سالاره کتوکتومې تورز دسترګوپوړلو خاردې انتظارشه چې مې شپې لاړې دسترګونه
ماوې ورته سخت به د فولادونه هم زړه سانم نرم شوچې اوښکې یې دره درې لاړې دسترګونه
دلاګوم مقام دی عشقه،خلک چې مې ګوري اوس وابې دالفت دې افسانې لاړې دسترګونه
ښکلی شومنظرستادورشود تصورسره راغلې خودلښکلې مېلمې لاړې دسترګونه
ستاپه ګوابن مې اوښکې چې دزړه نه راجدا شولې څه په بوږنېدو، په موسپدو لاړې دسترګونه
زه چې دهرڅیزپه حقیقت پسې پوهولمه لاړې حمزه اوس هغه څپرې لاړې دسترګونه

۱۹۵۵،دسمبر۱۱پېښکی

(۲۵۰)

دابواوبل ته دي چشمان ګلونه اوکني څنګه دي خندان ګلونه
سپرلي روداد د زړه چاودون راوړي وزله پسې کېښودو عنوان ګلونه
فطرته ستاپه پسې پسې خاندم وېنم چې زه څپرې ګرېوان ګلونه
وچ شي بیاربږي خوخندایي نه خي جوړ دي څپرې دمسلمان ګلونه
داسویلو کړې په سرکاندي چې شي راپیښ په دې جهان ګلونه
تېروې جمع زره خندانه عمر مونږ ته دا وایي پرېشان ګلونه

هله به گل دا تنگور اوري ... چي وریسي مي شي چشمان گلونه
بلادي واخلمه ای پېغلی حیا ... تا اتنګي کړه دجانان ګلونه
داد حیا خولې چي پاکي نه کړي ... پرېږده موسکي داماشومان ګلونه
تل دي نرګس وي خوبه ترخ دي نه وي ... مه شه بیمار دي دچشمان ګلونه
حمزه سپرلي به دوصال راشي ... په ارزاني به شي داګران ګلونه

۱۹۵۲ مارچ ۲ ـ ګهری حکیم خان.

(۲۵۱)

والوتمه دبېر خو زه بهرته شوم له "څه" نه ... وته دا شري ده بیا په وته باندې وته
کله منقلب شي نښر خانه برېواته دواړه ... اوس شومه بې غمه له خانه او برېواته نه
هر خوا ته که لاړمه سفر مي د په زړه کې ... لاړمه له زړه نه خو وته وتم له زړه نه
مېنې له ښکلا، ښکلا له مېنې زوندون د موند ... حور شو په اخره کې وحدت د "ته" او "زه" نه
عشقه، له کبهد سپر دي ووېستم بهر نه ... خلاص شوم د نهکی او د بدی له زولانه نه
ووب چې وي په سېند کې ترې قلم وي پورته شوی ... څه به یې زاهد وایې د سم او له کاڼه نه
خورمره تقسیم شوی زه حمزه ومه حیران یم ... اوس شومه خبر چې تللی "زه" ومه له "زه" نه

۱۹۷۰ دسمبر ۴، پېښور.

(۲۵۲)

پروا د ساقي څه کوي چې جام لري که نه ... لېمه يې بادره چې په جاپام لري که نه
درانه غوښونه نه اوري ويناد سپکو خلقو ... درانه تکي ته خیرشه چې ابهام لري که نه
تا ترکي تداري که دېوبام او دبل بام کړي ... بیا ګوره چې جلوه په هر بوسام لري که نه
ښامخ چې کله ستا په واعظ مې کړي کافر ... حیران يم چې څه مینه داسلام لري که نه
طالب دهغو زلفو شه چې تا ته شي معلومه ... دي لاره کې هرخېزيه لاس کې دام لري که نه
اشناوي چې خبره درته نن يوه کومه ... ماوې چې مبارک شه خوابهام لري که نه
اي عشقه که بیا رونډشي خولې خیرشه په اول ... محبوب دي شرافت چرته د لام لري که نه
قاصده بس موسهې سترګي نه پورته کوي ... ستاسترګي خوشاید چې څه پیغام لري که نه
کړي زهری دراتلو بې دارمان بلې ډېوي ... داورخ دي حمزه ګوره چې نماښام لري که نه

۱۹۷۲ مارچ، پېښور.

هله به ګل دا ننګور اوري — چې وریږي مې شي چشمان ګلونه

بلا دې واخلمه ای پېغلې حیا — تا اننګي کړه دجانان ګلونه

دا د حیا خولې چې پاکې نه کړي — پرېږده موسکې دا ماشومان ګلونه

تل دې نرګس وي خوبه ترخ دې نه وي — مه شه بیمار دې د چشمان ګلونه

حمزه سپرلي به دوصال راشي — په ارزانی به شي دا ګران ګلونه

۱۹۵۲ مارچ ۲ ـ ګهري حکیم خان.

(۲۵۱)

والوتمه د هر خو زه پهرته شوم له "خه" نه — ونه دا نري ده بیا په ونه باندې ونه

کله منقلب شي نمر خانه پرېواته دواړه — اوس شومه بې غمه له خانه او پرېواته نه

هر خوا نه که لاړمه سفر مې د په زړه کې — لاړمه له زړه نه خو ونه وتم له زړه نه

مېنې له بنګلا، بنګلا له مېنې زوندون د موند — حور شو په اخره کې وحدت د "نه" او "زه" نه

عشقه له کهه سحر دې وو پسئم بهر نه — خلاص شوم د نېکی او د بدی له زوالته نه

ډوب چې دې په سېند کې تړي قلم وې پورته شوي — شه به بې زاهد وایي د سم او له کاږه نه

خو مره تقسیم شوي زه حمزه ومه حیران یم — اوس شومه خبر چې ظلي "زه" ومه له "زه" نه

۱۹۷۰ دسمبر ۴ پېښور.

(۲۵۲)

پرواد ساقي څه کوي چې جام لري که نه — لیمه یې پادره چې په چاپام لري که نه

درانه غوبونه نه اوري رېناد سبکو خلقو — درانه تکې ته خیرشه چې ابهام لري که نه

تا ترکې تنداري که دېوبام او د بل بام کړي — بیا ګوره چې جلوه په هر یوبام لري که نه

سنامخ چې کله مشابه واعظ مې کړي کافر — حیران یم چې څه مینه داسلام لري که نه

طالب د هغو زلفو شه چې تاته شي معلومه — دي لاړه کې هرخیزه لاس کې دام لري که نه

اشناوي چې خبره درته نن یوه کومه — ماوي چې مبارک شه خوابهام لري که نه

ای عشقه که بیارو ندشي خولې خیرشه په اول — محبوب دې شرافت چرته د لام لري که نه

قاصده بس موسیهي ستر ګې نه پورته کوي — ستاسترګې خوشاید چې څه پیغام لري که نه

کړي زېږي دراتلو بې دارمان بلې د پېرې — داورخ دې حمزه ګوره چې نمابام لري که نه

۱۹۷۲ مارچ پېښور.

(۲۵۳)

زمـا پـه آه و ژرا بـوه يـې کـه نـه    څـه پـه بـاران اوهـوا پـوه يـې کـه نـه
زلفې پـه مخ دې چې قیامت جوړوي    څـه پـه بېگـاه او سـبا پـوه يې کـه نـه
درتـه خير گـوړم خفـه نـه شوې ولـې    تـه بـه زمـا پـه خطـا پـوه يې کـه نـه
اوبـکوته راغلـه اشنا سـتا پـه موسـکا    پـه تيرپـدلې رنـا پـوه يـې کـه نـه
سـره يې بـار خوكړه زمـا ووړې نظـر    وې چې پـه خپلـه حيـا پـوه يې کـه نـه
زړونـه دې خوښ دي، وړه يې ،ډېره بـه ده    خوتـه د زړه پـه بهـا پوه يې کـه نـه
پکـې محسوس نـه دی پيغـام د جـرس    تـه پـه خپل بانـگ بـه ملا پـوه يې کـه نـه
پـه خولـه صـفا خبـرې زړه راولـې    دآيينـې پـه خطـا پـوه يې کـه نـه
تـه نـاروا کـوې روايـې گـڼـم    چـوړ پـه روا ،نـاروا پـوه يـې کـه نـه
کـوه پکـړې کـرم چې درمخ شـمـه زه    دپښتون مـرو پـه ادا پوه يې کـه نـه
سـتاپه بيابيـا بـه حمـزه تېرنـه وځـې    د سترگو بـازه پـه "بيـا" پـوه يې کـه نـه

(۲۵۴)

سـتا غمونه بـه ختمېږي هـم کـه نـه    دا دردونـه بـه جـوړېږي هـم کـه نـه
سـتا وعـدې د نـن سـبا خـوراً    وايـه    چې پـه چرې وفـا کېږي هم کـه نـه
د سـوخته وو پـه نعـرو او پـه ژرا څـه    کلـه زړه دې پـرې ژړېږي هـم کـه نـه
نه مې ځای شـه په صحرا کې نه په کور کې    گـوندم ځـای مـې چرتـه کېږي هـم کـه نـه
لـږ خـو واوره پـه دنيـا کـې سـتا د ظلـم    افـسانې وپلـې کېږي هـم کـه نـه
لږ خو یې ويوښته چې ستا په درد و غم کې    پـه حمـزه بـه څـه تېرېږي هـم کـه نـه

(۲۵۵)

هیڅ پوه نه يم له تا چې شناسايم او که نه    زه ستا په تماشا کې تماشا يم او که نه
هیڅ هاتې اعتبار مې د وېنا نه دی په خاق    اشنا زما پوهېږي چې گويا يم او که نه
برهم په دا مه شه چې زه اوس بې نياز    م    اوس دی دغه سوال چې شيدا يم او که نه؟
پرسان دې له پرېشانو توررو شپو کوه اشنا    چې ستا د تورو زلفو په سودا يم او که نه
عـــالم متغير، متغيـــر هـــره لمحـــه    لږ ما کره پوهه پاره چې حمزه يم او که نه

(۲۵۶)

تکی هم وېلی شم له خپله حاله نه — وتي ناطقه مې شي چې ستاله حاله نه
به نو التفات چې نه پایي ګله ناله نه — خدایه وسېر کوري هم جوره شوې ماله نه
خم پوره سېر نهی به چرته ګورمه سبالي ده — رخو یره وخي، خو زما به جاله نه
سره د عشق د مخ وي چې وي داغ دمبني پت — بنایي دښمن دپاره حوری دلاله نه
ستا د زلفو بوی راته الوت د ګوربت راکړ — وری شم که وتی نه شمه ستاله جاله نه
جار دي له وعدې شم که د کال وي لا به وي — چاوې چې به پاپه نه زېلې کاله نه
ستاورو خو حمزه په رنګینی د جهان پوره کړه — دی دغه شعورېې دبوږي له ناله نه

۱۹۶۳ جوزې ۲۳ پېښور

(۲۵۷)

داسې کیف مې کړو حاصل له مېکدې نه — چه توبه به اوس کومه له توبې نه
ضد د حسن به هم حسن در معلوم شي — خبر کړه ژوند له مخالفې زاویې نه
د بالې سرور احساس مې دلته وشو — شوم راستون د مېخانې له دروازې نه
تر دې دمه له یوې نه پاتې نه وم — څنګه پاتې شوم له هرې قافلې نه
و احساس مې د ساقي د کرم چرته — چې باده مې توېېده له کاسې نه
انتظار مې چې غافل دی راسره دی — چې مې زېږې یوه شپه له بلې شپې نه
ستا به مخ که حجابونه هر څو ډېر دي — خو امان غواړي زما له حوصلې نه
ستا د مخ څه عجیبه څرندې رڼا ده — رسوې مې چې تیارې نه له تیارې نه
کړي چینې د لېمو و چې کله تاندې — څه بې وایم د غضب له زلزلې نه
سر هېڅ د بېلتانه یم که نصانخې مې — د بیار څو له ګرمې نکندې غرمې نه
ایله سترګې مې راد کې دې چې لاړې — وچ به وچه وېرېدلې له شبې نه
بخت یې ګوره چې به زړونو کې مېشته شول — کوم بتان یې چې بهر کړل له کعبې نه
نصر د مخ بې لا پرېوتی له مانه دی — حمزه خوک به یې کړي دار له غرغرې نه

۱۹۷۰ جوروری ۱۰ پېښور

(۲۵۸)

اور شوم په لټون کې خې شعلې زما د سوري نه — خې به وراندې تښتي مرحلې زما د سوري نه
نه شوله زمری چې دهوسی ترهه دي ورکه شوه — څنگه تښتېدې به ښېښتې زما د سوري نه
کور د رڼا سنا به تصور شوهه نصر مخبه زه — وتښتېدې ووتې تیارې زما د سوري نه
ورک شو زما سوری چې زه سوری د اشنا شومه — مانه چې اشنا شو رالنزدې زما د سوري نه
تکېدې غرمې د بېلتانه بې چې زغلې وې — څنگه شوې پیدا د وصل شپې زما د سوري نه
غبر مې پانې نه دي اوس چې نه شوې آیینه زما — ورک شو. اشنا نه چې بروېدې زما د سوري نه
زلفې به حمزه اشنا پرانستې به سحر کې وې — شپې د انتظار چې څځېدې زما د سوري نه

(۲۵۹)

مخ دې راخرگند کړې سبا کېږې نه — شپه د بېلتانه هسې تېرېږې نه
سترگو نه راغوندې شوې چې راغلې نه — مه دروغه چې اوښکې مې توېږې نه
اوس د زړه گوهر راته لاگران شولو — ښکلیو نه ارزان شولو خرڅېږې نه
خبر دی که اصرار یې په سینگار دی نن — بیا که په دې خپل حسن نازېږې نه
داسې مې زړه خور دی په کاکل پسې — دود غوندې پرېشان شو راټولېږې نه
اوس چې زما سترگې دتاسترگې دي — سترگې له خپل خانه خوشې مېږې نه
ښکارې هغه ښکلې زما هېرنه دي — اوس راته حمزه چې رایادېږې نه

(۲۶۰)

رندان دې که د سترگو د کاسو کوې ستاینه — صوفیان دې د سپین مخ د پلوشو کوې ستاینه
شک نشته زولنې د لېونو کوې ستاینه — جا وې چې لېونې د زولنو کوې ستاینه
بانه دې چې اسمان نه دې کاږه مغروره نه دې — بې واکه دې د سترگو ښښتو کوې ستاینه
خیر خیر چې ورته گورم اننگې یې حیا سره کا — مېن خو هم د داسې اننگو کوې ستاینه
واوه زما نظر دې لې د سترگو په موسکا کړه — بابه چې کوریانه د مېلمنو کوې ستاینه
سېږمې چې ترږمې یې. ترږمې یې چې سېږمې وا — زړه چاودی انتظار د هغو شپو کوې ستاینه
خوانې مې سرمایه د حوصلې گټله اوښکې — چې اوښکې د خوانۍ د څڅېدو کوې ستاینه
که لوړې تراسمان شي. خو ترې نه وځي بهر نه — صحرا به تل د داسې بربوکو کوې ستاینه
حمزه چې دې ستاینه د ښښتو ده خپله کړې — بیا پس د تا نه ستا به هم ښښتو کوې ستاینه

۱۹۶۶ جون ۶ ـ لواړگی

(۲۲۱)

ستا په سترګو کې غړېږي زمانینه — ماته نه ګوري شرمېږي زمانینه
تاظلمونه کړه اوږده ګیسو درازه — عمرلنډشونه لنډېږي زمانینه
امیدونه مې سلګۍ دفناکاندي — سخ زمانشه چې خوانېږي زمانینه
په جلبه، کې ستاد حسن دبهار ده — که تېرېږي نه تېرېږي زمانینه
شمع ستا د تصور ورسره نشته — رنده نه ده چې تېرېږي زمانینه
حسن دا و؟ که فریب؟ که حسن بېل دی — چې په شابېرته ستنېږي زمانینه
ستا مخ د شمعې سوز کې یې بقاده — چې پتنګ شوه ترې څرخېږي زمانینه
که ستم دې وم ذ رم نه پرېوسنلی — په ستم دې ولاړېږي زمانینه
درته څه په غرور کې ووېل ستاقهر — چې په سترګو کې موسکېږي زمانینه
له ساره خویه دې خارشم لادې د هر شي — سره منه شه چې تودېږي زمانینه
حمزه! حسن یې خزان په مخه واخیست — اوس به ګل غوندې غوړېږي زمانینه

(۲۲۲)

ژوندی به نه شي په اشنا مینه — شولې غلط په مسیحا مینه
مینه یې تل په بربوکیو کې وي — مینه خو تل ده په صحرا مینه
له مخه مخ او زلفو هم شه خبر — ای په صبا او په بېګا مینه
د بنګلیو مینه په دروغو نه شي — مینه خو تل ده په رښتیا مینه
د انتهایي هم احساس ولره — ای د الفت په ابتدا مینه
ګوره تکل د محبت ونه کړې — ای په دنیا او په عقبی مینه
بکلیه خواهش دې د نمود شي پوره — خبر که ده مینه په افشا مینه
شور به د زړه په کوم طرف یوسم — که خامشي ده په بیدیا مینه
ستا په سبب کړې رقابت ورسره — تول له دنیا ده په حمزه مینه

۱۹۷۰ جولای ۳۰ _ لرلرګی

(۲۲۳)

شوه لاهو مې بې ګودره سفینه ... دا زما د وبـــــد ووده قرینه
چې کتل مې آینې ته آینه شوم ... اوس نه خان وینمه خپل نه آینه
دوصال دبور جل سرته ختل ګران دي ... په زینه بې راخې بله زینه
ددریاب او د سیلاب نه هم سوا وي ... په منزل د عاشقۍ کې بوه چینه
اى حمزه! له سره تیرشه که یار غواړې ... په رښتیا سره که مرد یې نارینه

(۲۲۴)

بت د عشق مې کړه هستي لکه نینه ... لا سره پرې د رقیب نه ده کینه
په بنو مې د سینې دهوال سوری شو ... منور مې دیار په حسن شوه سینه
چې پولی شې بیا په سطح د اوبو شې ... چوب چې دچ شي نو هغه شي سفینه
وم سنګدل ولې الفت د اشنا موم کړم ... خارجېې تل له کاڼي نه چینه
زه حمزه دشه، ستار د در فقیر یم ... که پوشاک مې دي زربفت اوریشمینه

(۲۲۵)

څې مې له خولې نه شا له جوره څنګلن کې وینه ... دزړه دداغ هسې مې داغ شوه په کفن کې وینه
زما د خوږ زړګي ساغر دی له شرابونه ډک ... یا مو جزن ده د لالا په پیرهن کې وینه
ما به اودس د عشق نماز سره په وینو وکړو ... دیار مژګانو مې بېرې نښتوده بدن کې وینه
په جامو سپینو به بهر د بهار له دره نه شم ... دبلبلانو خو تو یېږي په چمن کې وینه
په مېنځ دوروخو کې چې بل د اشنا راشي جرې ... ورکه له خوفه شي په دوست او په دشمن کې وینه
شا په داروباندې صحت نه دی ممکن د حمزه ... بیا به پیدا نه شي به عاشق غمجن کې وینه

(۲۲۶)

جوهر څانګونه نظارې شو پېران د آیینې نه ... جوهر روح، د تا نظر کړو ګرېزان د آیینې نه
انکار یې خپل وجود و، خو قربان یې له خلاشو ... بیا راغلو د جمود اخلې ناوان د آیینې نه
حیران یم چې ترهغې به میزبان ترینه غایب وي ... ترکومه چې رخصت نه وي مهمان د آیینې نه
تر خو چې وي هغه د استفهام نخښه پوښنه یې ... حاصل به هغه وخت کې شي عرفان د آیینې نه

خپل زړه د هر يو خپز نه پاکول د پوهې راز دى — خبر که شي سوا به شي حيران د آينې نه
مانه وې چې دې خپل حسن زما په زړه کې گوره — اوس خو ننگه راستون شوې پښيمان د آينې نه
سيکاردې پانې خام دى چې نظر دې سنگلاري کا — ما پرېږده ور° واپې خله ناوان د آينې نه
اشنا چې تصور ته زما راشې سکون راشي — سېرلي لکه چې جوړ کړي گلستان د آينې نه
غافل له خپله خانه په دېدن کې د خپل خان دى — حمزه ورشه که وينې دې خپل "خان" د آينې نه

۱۹۶۶، سنمبر ۲۲_کابل

(۲۲۷)

نـم زمـا د زړه دې نـوري بـاره مـه گڼـه — کمـه مـې د الپـه لـه خـرواره مـه گڼـه
ورېژه که دروح ترپنه بهرشوه په داخه شې — پروره مې د تن هم خه بې کاره مه گڼه
تـولې د بـارلارې دې دا هـم غلطـه نـه ده — بيـا هـم هـره لاره د بـار لاره مـه گڼـه
عشق په دايره کې د هستى کله بند بېږي — داجذبـه مشتقه لـه پرکـاره مـه گڼـه
مينه مې اختيار کړه نور زما اختيار د خه دى — مـا بې اختيـار بې اختيـاره مـه گڼـه
داد ذوقا چرتـه بـه پـه عمر د رلـه درکـړى — دا الهـلـه د پښـکليو لـه کـرداره مـه گڼـه
چاوې لاس په سر په شي حمزه د ناله مينې — مـه منه، دامـه گڼه، سـرداره مـه گڼـه

۱۹۶۲ ع

ستا مخ مې ستا د مخ په پلوشو کې ليداوه — قدرت مې د قدرت په ننداروکې لیداوه
زه ورک په اداگانو کې شوم پاتې شو ښايست — گلشن مې د گلشن په رنگينو کې ليداوه
ياران بې دښايست په ننداروکې وو سرشار — او ما تش التفات بې په لېمو کې ليداوه
هر خيز راته بېکاره بېې لکه گل هسې پرېشان — دا خوک مې د فطرت په اتگو کې ليداوه
احساس ورکه پنگه چې شوه ستانه دخندا — جوړ تا يې التفات په موسېدو کې ليداوه
ستا ازبنکې وې چې ضبط يې د زاهد وېهاوه — دا خيز وچې مستانو په شېبو کې ليداوه
دا سم چې کنټل نه کړې اضطراب بېولى دى — ور زړه مې ستا په سترگو غلچکو کې ليداوه
وا د نور او سپين نه دې هوښيار و سترگو کرم — ما راز چې د هستي په ورځو شپو کې ليداوه
رندانو ته حاصل شو په برحام کې د صهبا — کوم خيز چې زاهدانو په تسبو کې ليداوه
هر خيز راته پرېشان کړو خپل دفتر لکه د گل — دا خوک مې د فطرت په اتگو کې ليداوه

داخبره بي ګله ستا په موسېدو کې لتاوه — کوم تاجې د بلبل په اسوېلو کې لتاوه
بېبمانه وم به دې چې بې هيڅ راغلى خواب — جبل عم مې د صحراپه بربوکو کې لتاوه
حاصل خوېلوشو کړه تړې دنيا درنګينى — شبنم ولې خپل ژوند په بلوشو کې لتاوه
پيدادې شو په سترګو کې وحشت د غرغنې — زرګى مې ستا په سترګو غرغنو کې لتاوه
بوشور ود شهرت بې چې شوم پيښ په پيښور — حمزه مې په خاموشه مقبرو کې لتاوه

[۲۶۹]

احساس د ناکامى که را دام وغورزاوه — همت مې مخ د عشق په هر بوګام وغورزاوه
اعرخو يسرلى د تماشې شې محرک — سافرش ورته نظر په سر د بام وغورزاوه
خيرخبر چې شو پرغل ته د اشنا دنظرباز — ماجال د بنو خود په احترام وغورزاوه
مري مري چې کړي فلک د انتظار زما وبوي — ځادر د کهکشان بې په ماښام وغورزاوه
بار خو بې حيا سره اوکړو پلو بې نيمکښو — زړګى هم عجب شې دې چې ابهام وغورزاوه
حاصل مې چې وحدت شو نو ګلشن مې دخاطر — ستاهرناز و انداز و هر کلام وغورزاوه
مصحف بې ستا د مخ د زړه په لوحه کړو رقم — بر لوى جهان بې ماته د الهام وغورزاوه
عرفان چې نه شې چاوته حاصل بې له ا. ° ر — خالق چې بخپل کور باندې احرام وغورزاوه
بودام دا ستعماردې چې بدلهږي رنګ په رنګه — ظالم که په کشمير که په ويټ نام وغورزاوه
واعظه نصيحت هغه مېکش ته دې په کار — بې رنګ د انتګر بې چې بو جام وغورزاوه
حمزه اوس څه مزه شته د پښتو نه د حيا — اسمان چې دسترخوان د هر کدام وغورزاوه

[۲۷۰]

اى عشقه طور مقام ته دې انسان ورساوه — لېکن ووايه شاولې عريان ورساوه
ښکاريږي راته ستا په لېونتوب کې څه خامي — دا روغ دې چې صحرانه ګريبان ورساوه
اى رنده بس له نوشه ورته تاکښېودو غورې — مطلب ته دې واعظ څکه لسان ورساوه
اګاه شو بې نموده په عالم کې نشته هيڅ — کوم دم چې آيينې ته مې حيران ور و
رااوري بې ملګريه دلته بيابه زړه بوتسان — حمزه که دې کعبې ته مسلمان ورساوه

[۲۷۱]

ورخه چې څې داحال مې دسلګومه هېروه — طوفان زمادا وښکو اسويلومه هېروه
يادونه که زلمي ساتې دزلفو داشنا — زلميه شرنګهار دزولنومه هېروه
هرخوک ه درنه ګونجې وې تندى دزماني — لېکن جرى شمل دمحان مه ه..

داخبیز بې ګله سنا به موسېدو کې لتاوه    کوم تاجې د بلبل به اسویلو کې لتاوه

بنیمانه وم به دې چې بې هېڅ رانغې خواب    جبل غم مې د صحرابه بریو کو کې لتاوه

حاصل خوبلوشو کره تري دنیا درنګینی    شبنم ولې خبل ژوند به بلوشو کې لتاوه

پیدادې شو به سترګو کې وحشت د غرخنې    زړګی مې سنا به سترګو غرخنو کې لتاوه

بوشور ود شهرت بې چې شوم بیښ به بینبور    حمــزه مې به خاموشه مقبرو کې لتاوه

[۲۲۹]

احساس د ناکامی که را° دام وغوراوه    همت مې مخ د عشق به هر بوګام وغوراوه

امرخویــــرلی د تماشـــې شـــې محـــرک    سافرش ورته نظر به سر د بام وغوراوه

خیرخبر چې شو برغــل نه د اشنا دنظرباز    ماجــال د بنیو خود به احترام وغوراوه

مرې مرې چې کړې فلک د انتظار زما ډیوې    خادر د کهکشان بې به مابنام وغوراوه

بار خو بې حیا سره اوکړو بلو بې نیمکښو    زړګی هم عجب شی دی چې ابهام وغوراوه

حاصل مې چې وحدت شو نوګلشن مې دخاطر    ستاهر ناز و انداز و هر کلام وغوراوه

مصحف بې سنا د مخ د زړه به لوحه کړو رقم    بر لوی جهان بې مانه د الهام وغوراوه

عرفان چې نه شي چاوته حاصل بې له ا° ر    خالق چې بخبل کور باندې احرام وغوراوه

بودام داستعمار دی چې بدلیږي رنګ به رنګه    ظالم که به کشمیر که به ویټ نام وغوراوه

راعظه نصیحت هغه میکش ته دی به کار    بې رنګ د اتنګو بې چې بو جام وغوراوه

حمــزه اوس څه مزه شته د بهشتو نه د حیا    اسمان چې دسترخوان د هر کدام وغوراوه

[۲۷۰]

ای عشقه لوړ مقام نه دي انسان ورساوه    لیکن وواپه تاولي عریان ورساوه

بنکاریږي راته سنا به لیوتوب کې څه خامي    دا روغ دې چې صحرانه ګریبان ورساوه

ای رنده° بس له نوشه ورنه تاکښېودو لوري    مطلب نه دې واعظ څکه لسان ورساوه

اګاه شوبې نصوده به عالم کې نشته هیڅ    کوم دم چې آیینې نه مې حیران ور ه

رااوري بې ملګري نه دلته بیابه زړه بوتسان    حمــزه° که دې کعبې ته مسلمان ورساوه

[۲۷۱]

ورخه چې څې داحال مې دسلګومه هېروه    طوفـــان زمادا وښکوا ـــــوبلومه هېروه

یادونه که زلمي ساتې دزلفو داشنا    زلمیـــه شـــرنګهار دزولنومه هېروه

هر څوکه درنه ګونجې وې تندي دزماني    لیکن چرې شملې د محـ ان مه هـ ..

ورځـه کـه دي پـرواز دلرپانـه وي اوچـت — لـېکن حغــه مقــام دالوتومــه هېـروه
هرڅوک‌ه وي دچاپـه هوس سترګوکي نشي — تـه ترېوتـنـدي کانـه دامزورمــه هېـروه
پښتودي که کره هېره نه شي چاته به وریاد — وریادبـه يې هرچاتـه خوپښتومه هېروه
دي سـتاو پـنوسـره پـه اتنګـوکي دالسلام — تـــاریخ دغفوتېروزمانومـــه هېـــروه
راوړي لـه فطرتـه دي مـزاج دي دجمهـور — پـښتوکوه جرګـي دپـښتنومه هېـروه
حمزه که په حجازيې که پـه روس کـه امریکـه — بیـاهم دپـښتنوخوانيکلي ورشـومه هېروه

۱۹۷۷ نومبر ۱۰ ـ راولپنډي.

[۲۷۲]

بیـــاغې دجـــرس وږي قـــافلې راواړوه — ای جذبـــه لاخـــوتېرې زمـــانې راواړه
ربـاره ارمانونـه دي پرېمـو چې پـاتې کېـږي — پــه بیرتـــه تــبتېـدلي مرحلـې راواړوه
سـختې دېلتانـه زمالـه توانـه سـوا کېـږي — بوخـل خوهـــې سـترګې پـښتنې راواړوه
زاهـــد، دســــېرلې دنکهتونوســـره لاړي — کــه تـــوان دي وي زماهغــه تــوبې راوا
ای جذبـه دخودي کـه نـه قبلـه يې دنیازمنو — لـرمخ خـورې تـنـدې تــه دکعبـې راواړوه
داګرانـه بـه وي تاتـه خوړوندون زماپـه دي دي — اشناشـرابي سـترګې لـرې مـرې راواړوه
حـمزه، چې يې بـاغې درنـه دزلفوتصور دي — پـه بیرتـه هغـه تېرې ورېنې شـپې راواړوه

بـس داسـې بې عنوانـه افسـانې مـه جوړوه — بې شـوره اشـنا شـورې بهـانې مـه جوړوه
معلـوم دي پـه و ماتـه سـتا د سـترګو تلـون — از پـه کـې د تېرې زمـانې مـه جوړوه
راسـر شـوې لـه ماښـامه ولـې شـمعې پـه سـلګو — اوس ځانتـه خو پيغـور د پروانې مـه جوړوه
ای ښـکلیـه د ښـکلا خـو دي لـر د پرېـږه زکـات — قـارون غوندې يې خرڅه خزانې مـه جوړوه
لـر شـېخـه د دسـتاراود تسـبو دي غـواړه خبـر — رندانو سـره تـار د بـارانې مـه جوړوه
ای ضبطه پـه لېمـو خـو مـې لـږ بویـه عنایـت — دي ترمـو ترمـو اوښکو نـه دانې مـه جوړوه
همـزه چې اذانونـه د يثـرب دي راوړېـدل — نـور بـام کـوه يې کیفـه ترانې مـه جوړوه

۱۹۲۹ مارچ ۱۷ـ (له کویټ نه د عراق په لار)

[۲۷۴]

ښکلیه په دبدن کې دې ګراني مه جوړوه
پیام کړه د ویښو ارزانی مه جوړوه

نهر شو وخت چې تامې کړې له صبر سره لوبې
بس کړه راته سترګې پخواني مه جوړوه

پو دبدن دې کم و چې تصویر دې د حیرت کړم
شوري پېرې دپاسه عریاني مه جوړوه

ګراني به وروېښې دا تکل د خوشحالۍ کړې
پرېږده غم به غم کې اساني مه جوړوه

ماخورې چې غم د زړه د کور کوه چې وران دی
چا درته ویل چې ورانی مه جوړوه

ستا د هوسو سترګو چې زه ښکار یمه کافي یم
شورې نور وحشت وته خواني مه جوړوه

پرېږده ښېښې جذبه مې ای د مینې جذبه
پیام کړه په دوی خپلې خاني مه جوړوه

هسې نه نصاب دې د ښکلا شي له نظره
هره ورځ اختر د قرباني مه جوړوه

خوبن په دې هره دی چې انکار له وفا وکې
خوشې بهانې خو "افغاني" مه جوړوه

شار به تار واعظه کړې هغو کافرو زلفو
پرېږده د حمزه مسلماني مه جوړوه

۱۹۷۰ مارچ ۳۰ ـ لولرګی

خپل کور ته مو خاونده بې خطر ورسوه
ژر ته مو د پاک خیر البشر ورسوه

چې ستا د در د خاورو مې رانجه شي په نصیب
پخپل فضل و کرم دا بې بصر ورسوه

ستاره پېرده دارښه د پښتون د قافلې
په خیر سره اتمام ته دا سفر ورسوه

دشین ګنبد د لاندې چې نوښه ده د جنت
مونږ هلته هر ماښام او هر سحر ورسوه

هر څو که دی په بار د ګناهونو باندې خم
خپل درته دا زمونږ نیست نظر ورسوه

پهود وته د نفس بې لااله کړه زوالفقار
جهاد لره دا خلق د خیبر ورسوه

خاونده بیا اوچت کړې دا ملت د پښتنو
غازي او دلاور د برنښه بر ورسوه

مونږ دلسي راوابس کړه چې خالي یو له عصیانه
هم مونږ د حادثونه بې خبر ورسوه

۱۹۲۹ جنوري ۲۹ ـ کابل، حجاز ته د روانېدو په وخت

[۲۷۲]

مستو ولولو ته مې سلام ورسوه
وخته ناکامو ته مې سلام ورسوه

نه ورځه ارمانه ته چې خې په خدای سپارلی
بس تللې خواني ته مې سلام ورسوه

درله بند په لفافه کې کړو قاصده
پټ یې له هرچانه په د پیام ورسوه

لار د لیمـه داده ای زماسـکروتې اوښـکې
ورشـه د دیـدن ورتـه انعـام ورسـوه

نن سالې محفل وته په موسکوستر گوراشه
تولوتـه شـراب دیـوه جـام ورسـوه

داشـه دسوې نـه ده چې راغې په سپوږمۍ مخې
زهـري مـې دیـوو تـه دنمابـام ورسـوه

زلفې دې راښکته په بارخوکره څواني راغله
اوس خـودې ورشـوته لوهـه دام ورسـوه

دیـو ډیـر درلیـب پـه مخکـې ماتـه اشـناگوره
حدتـه پـې جذبـه داتـقـام ورسـوه

پام کوه حمزه چې دالفت نه په شانه شې
دابـــکلي آغـاز دې تــر انجـام ورسـوه

۱۹۵۴، دسمبر ۲ پېښور

جوړېږي د ارمانونو وې ترې جوړه:

اوده به رانه څنګه شې وعده دې چې اوده شوه
بیاد غـه دزره سیمه ماکشل چې هدیره شوه

خبره دبنـدي ده چې زلفې شـوې راپـادې
وده پرې زماپـنه وه بـس وېـنـه شـرګـیره شـوه

ډیرزونه بربوکي شول په ښیرکې د وختونو
که څومې لنـدولـه دا خـوږه قصـه اوږده

رانلمه نا ورې څه، چې لاړم، اوس د څه پیغورشو؟
ژوندون هکې چهـه کلـه پیدا ګلـه خـوږه شـوه

نسیم د اشنا زهري د سحر نه مخکې راوور
پـښتـوزمادمینې پـښتنې ولـې ګـجـه شـوه

اوس ناونه پې نظره لږ، حصارشه که دې زغم[1] وي
ز ادب شناسـه ډیره وګـوره چې مـره شـوه

سالودکهکشان له ستاروسې ورشه جوړ که
چې سـاله ګـستاخـې پـه اـنګـرکې بې غرمه شـوه

پخوا به منفعل په بې لوزي وې د حمزه نه
که ورځ وه خوځې ساد تصور دپاره شپه شوه

اوس څرنګه بدل شرې ډیره بـه ده ډیره:

(۱) از. غیم.

[۲۷۸]

کله کله ستا نه چې ګیله زما په زړه شوه
وګوره خلوص مې دجذبې چې ستا په خوله شوه

خدایزده چې ګستاخ نظرمې بیاستر ګوته راشي
ستاداتګونه جـې حیاپـه څـښـیـده شـوه

ماوې که ګرمې شې دلاسه کې د یار زیاته
ضبطه چې سلګې دې وه سانلې هغه څه شوه

ښه که اوس اشنازما دګوریـه لاره نـه وي
روایـه سپوږمې د خوارلـسم رنـادې څه شـوه

مینـه لیـونی سـهي، خـوداهریې ګـوره
جرې ترې کوڅه دخپل اشنا غلطه نه شوه

خلقو پېژنـدی نـه شـوه زمـادګوڅې لاره
ورانه دې په تله وه، بیادې جوړه په را[1]

ما ورته محفل کې چې تن خیر کتلي نه وو — خان ته خوخوخل په آینه کې په کاته شوه
زه او فلک دواړه د وختونو خالقان یو — داسې گرداني شوه څه زما، څه دهغه شوه
نه چې له حمزه حقه په بدو درلیب یې — داسې اشنایي کې که پښتوشوه، خوونه شوه

[۲۷۹]

چې ونم د عشق له بحره داغوته راله غوپه شوه — پر ناونی اسویلی مې د خرد هره چپه شوه
ماله سوزه دیار مخکې کړه په زړه کې گیله جوړه — چې دزېږ سر ته راغله ساز یې واخېښونه شوه
له سپین مخ نه په پرمنځې، چې یارزلفې وارولې — انتشار دفطرت زړه شو چرته ورځ اوچرته شپه شوه
اې مطربه ترانه کړه چې دې روح پیدا کونکې — دتن تن هره صدا دې د منزل د عشق کړپه شوه
دکوم غیزیکې کمې ده چې سرغات یې ورله یوسم — دجوپې حاصل مې زړه نه بس دټول عمر جوپه شوه
پر حمزه د پښتو شعر بابا دم ولاړو نېرشو — نرې پیدا د شاعرانو په سرحد لویه تپه شوه

دیار ښود

[۲۸۰]

اوبنکه چې بهر ته راغله سپکه شوه — څوکه مرغلره ده کونجکه شوه
ژوند د هر یو څیز په اعتدال کې دی — دیره چې شوه مینه، مینه ورکه شوه
تښتې د نظر د بلوشې نه مې — دا څو د شبنم غوندې نازکه شوه
دیره موده پس مې هوس ویېژند — داځرنگه مینه ده چې کرکه شوه
ملا مې چې کړه شوه د لیندې په څیر — اوس مې تمنا ایله ناوکه شوه
غیرو نه د سوال یې چې عادت ومونډ — خوله د پښتونوالي مانه خکه شوه
راوسته نیاز د اشنا غیرې ته — یورته د سپوږمۍ دپاسه خمکه شوه
حیف دی چې جذبه د پښتونوالي مې — لاس کې د اغیارو شوه نهنخکه شوه
غوره پښتنه لره حمزه مدام — ښه ده که شینواري که ختکه شوه

[۲۸۱]

په سپرلي د خار په زړ نوافسانه شوه — چې وصال د اشنا وشو بیابان که رخانه شوه
چې مې سترگې سنله لوړ کړې د پرهېزله لیده خلاص شوم — چې کوزه داودلسه مې شکسته کړه پیمانه شوه
زه په عشق کې بت پرست شوم جوړه لویه بهانه شوه — په حرم په بت خانه کې څنگه جوړه یارانه شوه

رنده راشه ترې وباسه ښکې مې دمعرفت شته    چې زما په خوږه وینه زرغونه د زړه دانه شوه
نه هغســې کبریـا یـې زه هغســې یـې نـوایم    شته په مالکه ښخوا وه نه چې تهره زمانه شوه
کرې بلا په دام کې ګېره دبلاګوټ لرې ته    چې دي بنده په کاکل کې دهزار غابنوشانه شوه
هغه شمع د زړه سوز نه د حمزه چې په کتو ده    په سلګواوپه زراشوه په غورځنګ شوه پروانه شوه

(۲۸۲)

رڼاکه دې د حسن څه ښېښتلې غوندې شوه    اوس څه چې زما مینه تپهیدلې غوندې شوه
زلمې زلمې سـونه دې چې ښځلې سترګې کړې    خولې مې په تنګ تنګ کې ښه نبولې غوندې شوه
په سترګوکې دې ګوانې وخوږه سوانډې غوندې ګوانې    جذبه د شکایت مې څکه علې غوندې شوه
چې وکړل سترې مشې یې د سـره اشاره    جرګه د حال په اصـل پوهېدلې غوندې شوه
حمزه او بـد ګومان پـه پـښتـه ز. داڅـه؟    لیکن هغه وعده یې خندېدلې غوندې شوه

(۲۸۳)

عشله په حواسـو کې مې ستانه دښمنې شوه    جوړه په ارمان اوپه خردی کې تربګنې شوه
بن کې یې د زلفو د لیمو نه شوخې نه ځي    څه که نګهتې وړشونصیب دغرځنې شوه
عمر چې په خوږ نشودومره پوهه شومه عقله    ژوند مې ستادلاسه افسانه د لیونې شوه
وروځونـه مستې دیښو لاړه سنجیده شـول    زړه د څشو کار شو مشغله یې تېغ زنې شوه
وې په تریخ ژبان خو د وصال وعده خوږه وې    شل دېیار دلاس وخوږه یې دګنې شوه
زړونه مسخر کړه د عنصرو تسخیر څه کړي    ګرد په دې هوا کې شهزاده د جرمنې شوه
راغلې بسرلیه چې دهر دهر وورپه مه    ستاپه تصور مې د زړه سیمه ګلشنې شوه
سوی د شمعې دهر دی قربانې دېښګ زیاته    حسن د سوز برخه شو شهره د مهرنې شوه
خود زما د عشق جونګنه ستاپه سر پرېبوځې    خوی چې دسیلاب لرې شهوه دې بیخ کنې شوه
اوس ورنه وصال هم د زکات غوندې ښکارېږي    خار د تصور نه خواره مینه مې غنې شوه
مستـو سترګوستاچې زه حمزه بیابانې کـړم    اوس په تیند کوشو مې خرمن د غرځنې شوه

۵ زوږ.

چې په ښکلیو زمامینه ازلې شـوه    خودبخود. دښـکلیو ابـدې شـوه
نمرد مینې مې راځېږي کـه پرېوځي    چې قضا زمادسترګو شفقې شوه
چې په زور کې زماسوال اوستاانکارشول    ښـن خبـره دلـرې اودبـرې شـوه

اوس لـه يـاره زيـات بـه تاغمـه مـهن شـوم
سوال به نه کرم که دعـامي اثـري شـوه

دامـيـد هـوامي سـتاد ديـد دسـترگو
پـه ورشـو د زره ښـكالو د غرخنـي شـوه

پـه کـانو کـې وم کـس پـه بـې کـس کـي
اوس چې کس شوم دکـانوپې کـس شـوه

چـې دهـر دهـر دې بـه ديـدن سـرابولم
اوس مې تنده دخواهش بې رغبتي شوه

سـتابه مخ لوښكې رواني وې موسكى شوې
ژرا خـه وه چـې خنـدا دې نمکـي شـوه

چې حاصـل تـري خوشـحالي دهمېـشه وه
حمـزه، مينـه دغمونـو مقتـضي شـوه

۱۲

بلار چې زه دو ٭ وم ښېښتو نه مې پرې نه ښوه
برنده زمانه وه خو ښېښتو نه مې پرې نه ښوه

گويـا تمنـا وه خـځيـدو نـه مـې پـرې نـه ښـوه
اوښكه ښېښته وه بهيدو نه مې پرې نه ښوه

شـوندې مـې د ‹ب› پـه تكـې بنـدې وسـاتلې
ناخلپه توبه راغلـه وتونـه مـې پـرې نـه ښـوه

كـار د سـوځيـدو نـه و پـكـار، د وصـل شـپـه وه
خلنده ديـوه وه بلېدو نـه مـې پـرې نـه ښـوه

خو چې سمه ما سره جلېل نه شوه په اوږ كې
نيغه مې شعله وه گرېدو نه مې پرې نه ښوه

هـود د ښېښتې تصـور ځـه يوښېښتې لـه مانـه
ستا دمخ سپوږمې وه، خپلوښونه مې پرې نه ښوه

ما حمزه خواني چې كره پيدا په خپل غزل كې
زوږ كه شرمه زه خو زرېدو نه مې پرې نه ښوه

۱۲۸۲

طاقـت بـه دې دگفتـار پيـدا كـوه
خوجوهر د بـه كردار پيـدا كـوه

كـه ديـوه دې داميدپـه هـره شـپـه مـري
نـوى ژوند دانتظار پيـدا كـوه

لورزور لاېښتنـې هسـت تـه څـه دي
دسـبند ونو غوندې لار پيـدا كـوه

اوازونـه خولـه ضـربه پيـدا كېږي
وخت خوكم نه دي خوكار پيدا كوه

يارهغـه دې چې دهاردبـاره يـاروي
ياركـه غـواړې داسـې يارپيـدا كـوه

زه بـه تاتـه پـه ژړاكـوم سـوالونه
تـه انكـاردې پـه رخسـار پيدا كوه

وارخطانـه شـې دښـكليو پـه رتنـه
پـه يوواريـسـې بـل وارپيـدا كـوه

همېـشه دگلرخانوموسـكانه وې
لـه خونابـه دې بهارپيـدا كـوه

حمزه خپـل تـه لكـه گـل پـه خنداوسـه
داغيارپـه لاركـې خارپيـدا كـوه

۱۹۶۲ حسن ـ خلفر

(۲۸۷)

مادرته ویل به چې چشمان مه راکوه — رادې چې کړه شپې خو دهجران مه راکوه
راځله واخله وایې خله واپس په کار مې نه دي — ماته دوه جهانه په احسان مه راکوه
زه لکه مېږی که په لوېده هسکېده خوښ شوم — خیر دې دبدبه دسلیمان مه راکړه
ته خوښه پوهېږې چې دچالمصه به لیکم — هرڅه هرڅه وایه خوعنوان مه راکوه
تاچې راکړله مینه، خودمې قبلوله — نه مې شوریلی چې ګرېوان مه راکوه
راکړه جمعیت لکه دګل به زړه چاودون کې — فکر لکه بوی هسې پرېشان مه راکوه
نور همه غمونه زه زغملی شم چې څه دي — بس خو یو غمونه دافغان مه راکوه
ماته اعتبار دهر یو څیز دی ستاله مخه — پرېږده سوګندونه په قرآن مه راکړه
به یم ددنیا په باغ چې ژاړم لکه پرخه — مخ راته سحر غوندې خندان مه راکوه
لاخومې ترمخې هریو څیزدهستي خس کړه — لاخواسویلي لکه طوفان مه راکوه
لامې په خپل فکر کارته پرېږده، لایې نه کړه — پرېږده ترلی ته مې نقصان مه راکوه
به دې خوچې مخ دمستقبل مې کاندې خلند — ژاړې چې ماضي هغه ارمان مه راکړه
به یمه بې سره نه چې سرمې نیت شي غیرته — واخله دادې سر، هم بې سامان مه راکوه
خوله یه زه دزړه دصدف ورانه په سوال نه کړم — داسې ماته څاڅکي دنیسان مه راکوه
ولې حیرانېږې اوس چې سوال دآیینې کړم — مابه درته نه وې چې چشمان مه راکړه
زړه مې دې آیین کړ خواوسېږم په ژوندو کې — کړه وړه دتصویر غوندې حیران مه راکوه
ستالامکاني ده څنګه؟ مخکې مې لېږوه کړه — هسې چاپېرچل دلامکان مه راکوه
تاچې رازده کړي هم هغه به راته اوري — ماته دې دبکې دامتحان مه راکوه
پوهه زه حمزه به حقیقت دمحک به یم — وېره ترهه ماته دشیطان مه راکوه

۱۹۵۲م ورمی فروری پېښور.

دحقیقت سره عادت دجفامه زده کوه — ته چې له آنه عبارت بې خطامه زده
ستاپه نظر کې دې کم لېچ لکه دزلفو نه وي — په سمه لار اوسه خوې بوی دبلامه زده
لکه دګل به خاموشي کې خبرلوڅه اوسه — لکه بلبل هسې بې واکه نوامه زده

تابه دخان سره راوړي دي مسلم چې یې نه     د له دژوند دپاره جنګ دی وفا(۱) مه زده کوه

دماضي باده که راځي نو د اغزو غوندي شه     وشوه عادت دخندوونکي(۲) سبا(۳) مه زده کوه

ستابه رحسار څه بدي ښکاري تنهاني دشکست     ګل شه په بڼ کې دهستي خوښرا مه زده کوه

خو چې مات نه کړي چې اخپښي دي عادت دقفس     څه شي که بردي سلامت وي هوی(۴) مه زده کوه

راشه هنر دکیمیاچي در زه زده کرمه     کیمیاخان نه دملت نه جدا مه زده کوه

ده پښتانه څه اښکلې په بخښش په عطا     خوږه خپل رنګ او امتیاز کې عطا مه زده کوه

په هم جنسانو کې د هر کار دبلاري هم کوي     له خپله سيله جدا شوره صدا مه زده کوه

دي ستا په وینه کې برانه کجګلاهي(۴) اخوږونه     کاسه لیسي دغیرومه کره ګدا مه زده کوه

دکامیابی دي دوه صورته که شوې ښک په رضا     ورځه بیاپسته نوراندازدقضا مه زده کوه

دملت لاس کې په بوحال، دغیر په لاس کې په بل     فلسفه شوره د موسی دعصامه زده کوه

(۱) ار: صنه ونکي (۲) ار: صبا. (۳) ار هوا (۴) آر: کبجکلاهي

(۲۸۹)

خبري په بنواوبه لهومه زده کوه     دزړه په ورو کې خوی دغلچکومه زده کوه

تر خودي چې اسمان نه دالفت نه رسوي     هو ښیاره پیچ وتاب دبربوکومه زده کوه

له توروزلفو کړه اکتساب دخاموشي     غوغااواضطراب دزولنومه زده کوه

شدل دي اندازونه کره، ساده ساده کښل     داچاوېل چې خوی دېښتنومه زده کوه

چې زړه دي کوکاریه حرکت لکه جرس     دمه په هر یو سرای دقافلومه زده کوه

تنهاکې دزړه څه دي؟ چې نن وي او سبانه     داکارد کورېسر بوله کېږدو(۱) مه زده کوه

چې سرخنه حمزه ګرولی نه شي دېښتو     هر یوزلمي نه وایه چې پښتومه زده کوه

۱۹۶۲، جرنده ۲_لوارګی     (۱) ار: ګردو.

په اشاره خبري مه زده کوه     د غلچکو خبري مه زده کوه

خیر په پښتو خبري مه زده کوه     د مېرنو خبري مه زده کوه

خو چې اوچت وي هومره زر شي فنا     دبربوکو خبري مه زه کوه

درله اجل یې دی تحفه د سکون     د منزلو خبري مه زده کوه

بس محبت دی وحده لاشریک　　د فلسفو خبري مه زده کوه

څه اضطراب چي نتیجه یي وي مرګ　　د سیلنو خبري مه زده کوه

سترګي درنسي پورته کوه پښتني　　ته د هندکو خبري مه زده کوه

آیینه ګوري؟ خاته خیر مه ګوره　　د زره ویښتو خبري مه زده کوه

حمزه ته تل کره د راتلو خبري　　ولي د تللو خبري مه زده کوه

۱۹۲۸ اکتوبر ۱۴ ـ لوارګی

(۲۹۱)

هیڅ یي د نظرنه د ښهرو پوښتنه مه کوه　　ګوره ته د غل نه خود غلو پوښتنه مه کوه

ګوره خو واعظه داوریځي جړی څه واني　　وخت د پسرلی کي د توبو پوښتنه مه کوه

تاریه تار دانه دانه دي زړونه د رندانو کړل　　اوس نو د دستار او د تسپو پوښتنه مه کوه

مانه د الفت د مرحلو پوښتنه مه کوه　　بس په هرقدم د تیندکو پوښتنه مه کوه

څنګه دي نظر زما نظرته نا آشنا کړلو　　ښه ده پښتني د میلمنو پوښتنه مه کوه

ګوره نکهتونه چي لمون دلیوتوب کوی　　نن د حکمتونو د نکتو پوښتنه مه کوه

مینه ده چي اوری زمی هم تري نه امان غواړي　　شوقي د تودو او د سړو پوښتنه مه کوه

وچي پوښي له پوا وړله پښت په پښت ګټی　　نوره د پښتو او پښتنو پوښتنه مه کوه

هیڅ پښپله نه واني، جواب تي اشنګی کوی　　پرپرده د بی مخیوله لبمو پوښتنه مه کوه

څوچي په غزل کي یي څواني به غزُو شو دي　　هومره د حمزه د زړه د و پوښتنه مه کوه

(۲۹۲)

څه وو کاینات خو د امکان پېره جبه وه　　زه وم او زما دار مانونو قافله وه

ستا د بې رنګی نه یې رنګونه شول په برخه　　عشق له ګني ژوند خو بس زمانشه خاکه وه

ستا د مخ او زلفو تصور چي وو سره و　　ژوند دده پېرېو سوه ورخ او پېره شپه وه

ستا نو و ناز و نو مي تعمیر نوی ژوندون کړ　　او ګني د مري مینې زما قصه زړه وه

ستا په تصور مي مخروني د هر مایا م وه　　بس خو کاینات زما د ژوند د څه د پېره وه

هغه چي په مهر د فلک به نازېدلو　　سر په زنګانه شو په آخر کي خوابې شنه وه

هغه تمنا چي د الفت بار خو سره وه　　خلنده پري ژوند و د حمزه چي ورسره وه

(۲۹۳)

وارولي سترګې دې چې بلـه پيمانـه نـه وه
هر څـه وو ساقي ولې څـه نوره بهانـه نـه وه

خود به مرکيدم چې خال مې نه ليد د اشنا مخ
خلک به هم دا وايي چې هاتي بې دانـه نـه وه

پټ رازېې څرګند شـه دښايست پلوچې لرې شـه
شـمع بلېـده اوپـه محـفـل کـې پروانـه نـه وه

يار چې له محفله لاړ،نو زه رقيب طلب کړمـه
خبر وکړو صياد د بـسرلي چې نښانـه نـه وه

يار چې مرده پس راغی حالت د حمزه دغـه و
مات يې ساز د زړه و، په لب هاتې ترانـه نـه وه

(۲۹۴)

د به جذبه دمې نوشي داحترام هاتې وه
چې پيرزوينـه د          په خاص وعام هاتې وه

دا ده اشناسره مې برخـه دانعام هاتې وه
ورځـه نن بوه تحفـه دتش سلام هاتې وه

شومه جدا د زمانې نه تار په تار يې کړمه
دوخت په زړه کې څه جذبه دانتقام هاتې وه

راغله سلګۍ خوبه مرې کې مې بوېن ونيوه
بوه تـبه په خنکدن، کې ستادنام هاتې وه

راته شو يادچې حوصله مې دديدن نشته دی
دښکلي يار کوڅه که ماوته يو ګام هاتې وه

زما په يادوکې نورهيڅ په مدهوشي کې نه و
بوه صدادشکسته پرهوتې جام هاتې وه

ستا په ورشومې هم کلې دزړه موسکې شوه اشنا
ته که په بام نه وې هوا خوستاديام هاتې وه

شودزاهد کـې روښان دميخانې په څراغ
ګويا خاصې په وظيفه کې دنمانبام هاتې وه

ساقي بې کيفه ستاشراب مې ترسباګنلي
چې اند بشنه زما په زړه کې دانجام هاتې وه

اخرې جام يې هم کړه پورته ستا په مخ ساقي
لا، حمزه په زړه کې مېښه داسلام هاتې وه

(۱)ار :زنکدن.

(۲۹۵)

دحسن په ورشو کې چې تېرېږي زما پوهـه
له برمه دالفت جوړې غرورلخېږي زما پوهـه

دانن دکرم مقام ځنې تېرېږي زما پوهـه
ترڅېږي دخيـل سورې نه بجونهېږي زما پوهـه

اوس غيرې ورنه خپلې جوړې کړې لارې ښکارې
شنګيزه،[۱] ترې تېرېږي چې شرمېږي زما پوهـه

پروازيې دې روان که ماوراء وي له عالمـه
خپل خان ته چې راوګرځي تېرېږي زما پوهـه

اوس راورمه تخنـي دنا پوهي لـه کومه خايـه
دربار کې دښکلاچې نه قبلېږي زما پوهـه

خپل خان له محسوساتو چې بهر په مخه ورشي
لـه خانـه بـې خبـره راستنېږي زما پوهـه

حمزه چې سره په مخ دعاشقي ورته ښکاره شي
پو نوره غوندې شخړه شي پسخېږي زما پوهـه

پېښور ۲۲اکتوبر۱۹۶۲،

(۱)ار:ځنګېځه.

[۲۹۶]

لباس د مینې د لباسه وهه — یاس هېښه قلعې د آسه وهه
چې دې رقیب له پاخېدو نه وځي — داسې یې تل د سر دپاسه وهه
نوم دې د یار چې پکې ښکلی نه وي — نامه د بل زره د قرطاسه وهه
تا نه په سر چې د اشنا خوري چغلې — سر په خنجر خپل له خناسه وهه
دا سمندر د یار پالنګ وګڼه — پکې غوټې ته یې وسواسه وهه
چې بېنوا نه دې اسرې شوې حمزه — ژاره خپل سر په دواړه لاسه وهه

[۲۹۷]

جار دې له سترګو جست وخېز لکه هوسی مه وهه — زړه خوږه پنجو د . ز زمری مه وهه
پرېږده چې ستړی شي پخپله په خاموشه کېښې — ای تمناد وسوسره ابېری مه وهه
اوس دې شعله رانه ښکاره شي د غیرت رېښه[1] — پښتونه سنګ چې درنه پاتې شوېګری مه وهه
دلته په شي د تاجتون خیر د اشنا بنه — پام په صحراګې داسې ګرېکې لېونی مه وهه
سم دې خبر، خوېښتنې جذبه مې مه لمسوه — لاړ دوفا مې په شوکمارو یې ښنی مه وهه
دلم خمار دې چې سېرنه کړې د تسکین په مېو — د صراحی غوندې سرخم مه شه سلګی مه وهه
د خودبینی چپه په هیر کړې درنه نمر د ښکلا — لاهې په خپلو پلو شوچرې سپوږمی مه وهه
نن التفات یې مې سرلې ول په امید ونوراوور — روانه وخته داګلی مې په ړلی مه وهه
حمزه د عشق منزل د کندو خر خوریږ ک دی — خفل په دې دشت کې په مثال د بربوکی مه وهه

۱۹۷۷ مې ۱ ــ لواړګی. (۱) رېښه، جاروګی

[۲۹۸]

چاپېروليې ښاد کور شوې د افلاس لښکرې وایه — چې عارې شوې له مذهبه. اوس د غم ښدرې وایه
دا پرون چې لاړونن واو ښا چې راځې نن دی — پروني خبرې پرېږده ننني خبرې وایه
د ښاخوهښې نوم دی، که رښتیا وایم خوښ دی — سباچرته وي چې بل وي به تاا ور د سرې وایه
د خوارې د سېند وتل ته خوش نصیب یې رسېدلیه — ترې بهرنه راویاسې ولې مرغلرې وایه
چې دې زهر په بدن کې کړه خواره د جهالت مار — اوس په روغ به د پر مشکل شي لاحاصل منترې وایه
چې به تاله د پره کبره د پنوپه خوکو یون که — اوس چې نه خوري نو په خه خوري به تندې جنترې وایه
اې غمګینه پرېښنه نه شکرلب شکردهانه — ای حمزه، شپوه بیانه خوره شکر شکرې وایه

عشق نه مقابل چې شو لاهو شو په زور روایه
حق دې دا ویل لکه د سپند بې په شور روایه

چې شولې جوړ نه د نصیحت رد عمل گوري
بیه چې بې دگوري واعظه خو نور روایه

زره دې چې مینه د وصال په بدل ورکړلو
خدای دیاره عشق خو ورته مه وایه پور روایه

وصل دوعدې خودې پخلې نه نزدې شوی دی
بیه که په خوله نه وایې د وروځو په لور روایه

زنگ د ماسوی چې آیینې د زره نه پورته شو
اوس چې شوې بې لوره نوهر لورې نه لور روایه

مینې مبلمنه شوې د ښتون بې ښه کېږه مه
اوس لکه میرمنې غونډې زړه ته مې کور روایه

ژوند د دنیا څه دی؟ د فطرت د پسرلي یوگل
جمع حمزه ښکاري، په ساعت ورته خور روایه

۱۹۷۰ مارچ۶ـ لوارگی

۱۷۰۰

گوښې غونډې ښکاري له صنمه پاتې شویه
اوس به دې اباد کړمه حرمه پاتې شویه

نیرویستې دې خیلې جذبې، تیرشوې له منزله
بیرته په شا راشه ای قدمه پاتې شویه

مرېه شې د وصل د بیواکه خوشحالی نه
واوره ای ژوندی له وېره غمه پاتې شویه

جذب دې کاذب و که غلط پخپل همت وې
ای د عشق په لاره کې بې دمه پاتې شویه

خیل وجود دې هم نشته که ته زما وطن وې
وېریه راته یاد وې ای عدمه پاتې شویه

څوک به دې حواهش د اوریدو نه کړي غزله
ای ته د ښینواري له قلمه پاتې شویه

۱۹۲۸ جنوري۷ـ جلال آباد

نیغ یې تل گرزار وي څوک تري څه ساتي
ښکلي چې بانه کاږه کاږه ساتي

زره په پېرزوینه داسې روڼ لره
څنگ چې آیینه د هر چا زره ساتي

مه گرځوه سترگې له مبلمه نظر
گوره حجرې بیرته ښېتانه ساتي

مینه د سنگدلو بویه هغه کړي
څوک چې حوصله لکه د غره ساتي

ښې دې محبت لره کامل چې شې
پیغله جینی خلق به کاله ساتي

ما د الواته هنر زده کړی دی
هر څوک که فطرت دامونه وساتي

ښه شو حمزه پوه مې په فطرت خو شو
اوس که تعلق راسره نه ساتي

(۷۰۲)

اوس چې ورشو د تصور نه مې اشنا تښتي — ځکه له سترګو مې هر رنګه تماشه تښتي
وحشته څه شوې؟ دلبې ښکارې چې په خودشرمه زه — خو چې په وراندې لاړو هم رانه صحرا تښتي
د جهالت د مرې داسې عجیبه ژوند وي — چې درمانده یې له علاجه مسیحا تښتي
ولې رندانو د واعظ په ملګرتیا تېروځې — ما ته معلوم دي چې سبادې که بیګا تښتي
د علبې سیورې دا سراب ځوندې دنیا وګڼه — چې عقلمن وي له دنیا او له علبې تښتي
لې په دې پوهه شه چې بیا به یې راتوله نه کړې — خوله د هر ګل نه په دې باغ کې په خندا تښتي
ستا په تندې کې به رڼا د کوم زلمي وي حمزه — چې درته مخ شي درنه ناوې د دنیا تښتي

۱۹۲۹ مارچ ۲۵ ـ لنډهار، د حجاز نه په راپسې «آر هنداسې تولماتې ده»

(۷۰۳)

بوي یې د یار د شورو زلفو عنبرو راځي — د زره بلبل ځکه ګلشن ته په نعرو راځي
اوس محافظ د عاشقانو د هستۍ شه مولې — جانان محفل ته نن په ناز او په نخرو راځي
صومعه نه ده دغه ده صحرا د عشق واعظه — دلته لړلي لېونې په وېښو سرو راځي
سم قاتل واخلې پلوشې وازه جهان کړې مسموم — سحر چې خور د یار په زلفو منګرو راځي
د عشق رنځور سره دوا ده رنج وغم د حبیب — دا څېن نه دی چې صحت یې په دارو راځي
ه جوش لومستی وارمورواخی اوس مرحبا — د کې پیالې د یار د سترګو خمارو راځي

(۷۰۴)

یاره چې داستارانه په خوله راځي — لې خوزماهم درته په زړه راځي
هېرمې که اشناکه خولاهېرنه دی — نوم یې په خوله نه راځي په زړه راځي
دابه وي دژوند اوبه چې ستاپه نوم — ناڅاپه چینې ته دلبه راځي
بیامې مینه ځوانه شوه که چل څه دی — ما ته اسوېلي هغه زاړه راځي
څوک چې په معنی شي داسمان په خبر — بې واکه یې سر یه زنګانه راځي
بنه وایې ناصحه منم بدبه وي — عشق خویه چابدا وبه چابه راځي
پل داشنا لاندې وي تر پل زما — وربه شي هر څوک چې مې په پله راځي
مخکې دې مقصد دخپل منزل کړې هېر — پسته دې حمزه زما به پله راځي

۱۹۵۴ جنوري ۱۰ ـ پېښور

**۱۷۰۵**

خزان چې تېرشي بيا گلونه گلستان ته راځي    يوسف كه ورک شي خوخبرېږي بيا كنعان ته راځي
خان په منزل دعاشقۍ چې ستړي نه كړي چرې    زړه دخدای كوردی عشق پخپله دې مكان ته راځي
زړه داسې كوردی چې سوځته شي نوشي هله ودان    شانه چې خيرې خيرې شي زلفې پېچان ته راځي
په اتكوكې يې سرخي دي دعاشق دوېښو    چه تصورمې دیار چشم خونچكان ته راځي
په محبت كې كېږي داسې التضاده دعشق    پاڅې له خايه نه خردطاق نسيان ته راځي
زماد لاس دلاسه ژلړې گريبان خوځه كرم    وحشي چې زړه شي نولاسونه گريبان ته راځي
په مهروبانړيسې ځې لرې نگاه دحمزه    ناگاه په بياد بېنوا رخ قران ته راځي
دزماد مرشد سيد عبدالستارشاه مرحوم لقب

شمعې دپتنګ په سوزدې ولې پروا نه را    وې چې جاړېدو ته شوې شوې پروانه راځي
زمانه بې رخې يې شوه، تمهيد دالتفات نه وي؟    زور دتبارو زيات شي چې رونبانه زمانه راځي
حط چې يكې ښكارې جورسالې نوې راغلي دي    نن زړو رندانو ته چې كومه پيمانه راځي
ښكلې خپله هم نه وي خبركه نړې تېوس وشي    خولې ته يې ناځاپه دكوم خوانه بهانه راځي
كوم وخت چې خبرې دواعظ شي اثرې غوندې    پوه شم چې تړدې جرته په لاركې ميخانه راځي
حال ويلي نه شم شي خندا ژرامې گومره    زړه ته لكه شمع چې دمينې افسانه راځي
اوښكې مې نسيې كړې خو حمزه دیار د نوم په ورد    شي خپه مرۍ مې چې په لاس كومه دانه راځي
۱۹۶۳ ع اپريل ۳ پېښور.

ولې كړو غمونو د زړگي مې صدا نه راځي    نم مې د الفت په اور كې وسو ژړا نه راځي
نشه بوی د زلفو له سبا نه هم شويت صنم    زه يم په دې فكر كې چې باد سبا نه راځي
نقش مې په فرلت كې په دماغ دمرگ صورت شو    هره سا چې وباسم شوواېم چې بيا نه راځي
زه طالب د بهار يمه رقيبه د جيفې نه يم    مردچې وي، گونكت هسې بياكورته په شانه راځي
داسې دورنگۍ د خپل اشنا متحير كرمه    غم كې ژړامالمه، خوشحالۍ كې خندانه راځي
خلک داسې وايي چې له خوف سره رجا وي مل    ولې مې د زړه تورې كوتې ته رڼانه راځي
لطف او كه جفا كړې همه ښايي بېنوا لره    بل څه د حمزه په ژبه بې له ثنا نه راځي

(۱۷۰۸)

ښکلیو نـه هـر دم چـې بهانـه راځـي. — خـدايږو چـې بـې چانـه بهانـه راځـي
تـاچې سـبا وکـړو سـبا نـه راځـي — راشـې بـه هـر چـا خوبـه مانـه راځـي
بیـا بـې نوبـه بیـا دی څـه باوریکـار — خوخلـه بیـا وکـړي خوبـا نـه راځـي
ښکلیه چې موسکې په تیټو سترګو شې — هـېڅ دې انـدازه د ښـکلا نـه راځـي
غواړې چې هرڅوک د خوشحالۍ ورځې — چـا وې د غـم شـپې دې بـه چانـه راځـي
ووایـه واعـظ تـه ګنـاه زه کـړمـه — زور خـوبې نیکبختـه بـه تانـه راځـي
بـس حـو پـو ګـوهر د محبـت نـه غیـر — نـور څـه خـو هېڅ بـې لـه بهـا نـه راځـي
ــــتاد کـــرو برندو بنودا غــشې — هېڅ بـې پـه ویښتـو کـې خطـا نـه راځـي
خدای دې مُبن د بر کړه چې ښېرې کوې — هـېڅ رانـه نورچـل د دعـا نـه راځـي
بـې څـه دې تنـدی د کـوڅې برنـد نـه د — هـېڅ یکـې نـن غـېږ د ګـدا نـه راځـي
هېڅکلـه ممکـن نـه وې تېنـدک د وخت — سـتا بـه تغافـل کـې خطـا نـه راځـي
عـشق دی لکـه وخـت اوسـه حمـزه پکـې — تـل وي بـه تـنګ بیرتـه پـه شـانه راځـي

۱۹۷۰ حوت، ۱۱ ـ لولوګی

ترڅو چې بې ښکلا ته شـابونه نه راځـي — پـې مخیرنـه هـم څکـه حجابونـه نـه راځـي
بهرې که ګرندی نه ده مانګی مې نه دی ګرم — دریاب کې مې د ژوند چې ګردابونه نه راځـي
پوستاد مخ کتاب و چې مې ولوستو بوخل — نـور مانـه حسـابونه کتابونـه نـه راځـي
ارمان بـه مې زلمی شي د اشنایه تغافل — سـوالونه مې ورځي خو جوابونه نه راځـي
غم مه کړه به دې لاړکې که ستا تنده وې رښتیا — صـحرا د محبـت کـې سـرابونه نـه راځـي
ښخـښنه راتـه وکـړه د لېمـو د بـوه جـام — دا چـا وېـل چـې تللـي شـبـونـه نـه راځـي
مرکب د ژوند رغمی شي کله.زین د عافیت — بـه خفـل کـې څکـه بـیـرته رکـونـه نـه راځـي
ملګریـه د اشـنـاله رلفـو بویـه دا تیـوس — هـېڅ مانـه د دردونـو حسابونه نـه راځـي
حمزه د چا دپاره معطل شو داسې ژوند — محفـل کـې تنـده زور ده شـرابونه نـه راځـي
حمزه د هغه مخ به بل مخې نه شي پیدا — نـور بـس لـه دې کتـابـه.کتابونـه نـه راځـي

۱۷۱۰

## نیمگړې غزل

خه عجیبه شپه ده سحر نه راځي  نن هغه سپوږمۍ چې بهر نه راځي
نن چې هسې خان نه خبرشوی یم  بنکاري د اشنا مې خبر نه راځي
راغی تصور یې په بیلتون کې نن  چا ونې چې وچ ښاخ کې ثمر نه راځي
لاړو هندو ستر ګو سره خوښ شو جوړ  بېرته چې لېمو ته نظر نه راځي

تازه په ماهره ګرۍ دعشق چچې راځي  نوی امید لره زما د غم ځوېي راځي
شاهباز د جهر به وهل وې په رباب د مینې  ګنې نو ماله هم دغم سوې نېي راځي
واعظه رشک مه کوه زه که شبخېزي کومه؛  ګوره لست کنه په شپو کې کله شبې راځي
رباط د درداو دالم دی که زړګی دی زما  چې پېرې د هر طرف نه تل دغم جوږې راځي
زما دیوان به دغزل تازه بچې کړي پیدا  تر هغه پوري چې په ده وخت د چاپې راځي
وحشت مې زیری په اغزو کړو چې نیرې کړي ځوکې  ستا سو دعوت لره حمزه پښې ابلې پښې راځي

۱) اړ ګوی

ګرې ګرې بنکاري صهبا ۱ بکې پیالې راځي  حمزه زیری مې دریاندې زولنې راځي
بیا تصور د شوګیرونو سلسلې راځي  داوږدو زلفو په سودا لړلې شپې راځي
سالې بېګادې تواضع د کوم زاهد کړي ده  چې نن مې خولې نه د هر ګوټ سره نوې راځي
اوس خو داغشې دبنودې راته مه ګورتوه  په تسواتې زما او بنکې ښښتې راځي
دلته د بنکلیووې کړدې داچې تماکې دې اوس  د زړونو سرای ته څسې رنګه قافلې راځي
دامحبت دحد نه زیات راسره مه کړه اشنا  زړه راته نورځه نورځه وایې وسوسې راځي
ستا التفات او تغافل دې ماحمزه وته یو  په محبت کې خوتودې او هم سړې راځي

۱۹۵۴، دسمبر ۹ پېښور  ۱) اړ صهبا

(۷۱۳)

ستاغم ستادښکلاخني ماموردی چې راخي
اشنا په سر او ستر گو مې منظور دی چې راخي

ما او ښکې بارانونه اوورول چې کړل اختیار
سېرلی د یار د وصل خو مجبور دی چې راخي

د زلفو په تیرو کې سپین سحر د ښلتانه
اسمان دانتظار نه مې کافور دی چې راخي

دزړه په تل کې مې څه پاتې دې شاید
ستاغم چې په معنی لکه باتور دی چې راخي

ای عشقه د وفا له هوډه وانه وړې هرگز
داشک اوید گومان خودې ترپور دی چې راخي

کېدی نه شي، غلط یرې فراست شي دالفت
پردو کې هغه ښکلی که مستور دی چې راخي

دا یادیې چې بیابیا پېښه کوې زما په زړه
دزړه دخوږې رنځې مې مخمور دی چې راخي

ای ضبطه ستا په ماتې کې دی دار د محبت
یو غم مې ورد هن ته دمنصور دی چې راخي

سالې که حمزه کړې اوس د مینو نه توبه
لیکن دزوړ کرم خودې مشکور دی چې راخي

۱۹۷۲م ورمنی مارچ پېښور.

(۷۱۴)

حیران یم د اشنا راته جرگې دې چې راخي
او ما ته بیو ښوونکې وسوسې دې چې راخي

راخي پخپله هم، خود مېنو کړې ازمینت
محفل ته په کاسو پسې کاسې دې چې راخي

سېرلي کې مې په وېره وېره ما ته کړه توبه
اوس خولې ته مې هرگوټ سره توبې دې چې راخي

خوبونه د کاکل نه وو اسان چې ما لیدل
اوس پربرده په ما گرانې شوگیرې دې چه راخي

موسکې په ابتدا وې، څه فریب و د ښکلا
اوس گوره بیو ښوونکې مرحلې دې چې راخي

نش نور مې ارمانونه په ستنه د زړه په لور
دې سرای وته لوټ شوې قافلې دې چې راخي

روغ نه و چې بس کړله بدرگه د لیوني
یو څو لیونې وروستو رابسې دې چې راخي

قربان دې د وعدو نه، زما عمر یې کړو دېر
هم داسې په نېښو پسې نېښې دې چې راخي

حمزه په هر دېدن د یار تنده شي سوا
الفت کې په پردو پسې پردې دې چې راخي

(۷۱۵)

زه کلک لکه د غره یم طوفانونه دې راخي
همت مې لاهو نه شو سېلابونه دې راخي

چې نفرم ارمانونه لا مې مینه شي سوا
ژوندون مې په ارمان دی ارمانونه دې راخي

کرم سوال چې ره ماکړی اوس برې زه یم پښیمان
د ېره پر که دېلنې جوابونه دې راخي

سـاتلي مـې ده سـتن داطمينـان اوتـسـلـي
راخې دې همه څيرې ګرېوانونه دې راخې

بولمدی''چې دې وکړو خوحيران يم چې اوس هم
اشنادهرطرف نـه اوازونـه دې راخـې

لايومې هم خوبي نه شوافسانې ته داشنا
اخرپـه يکـې راشـې عنوانونـه دې راخـې

لاخوانـه مـې هغـه زړه جذبـه ده دجهـاد
غم نشته نوي نوي ميدانونه دې راخې

اشـادزړبودی مـې ولـې اخلـې امتحـان
ورکوتيه ګورې نه،چې شبابونه دې راخې

اشناوکره جفادزړه بندونه کره محکم
حمزه چې اوس داوټيکوبارانونه دې راخې

۱۹۷۳ ستمبر ۳ پېښور.    (۱) آر ۵۵.

(۷۱۶)

هرسـاعت رالره نوي ارمانونـه خـې راخـې
يم هغه وطن چې تل پرې طوفانونه خې راخې

ای ملـله دبهارځه خوشحالي پربهړده خزان ته
چې سېرلی شنه،دې چمن کې به ګلونه خې راخې

بونفس دحـسرنونودک بهرشي بل پرې راشي
دی ودان مې دزړه سرای پرې کاروانونه خې راخې

برګوزاروبې اوازه چې پرهرترې پيدا نه شو
خوهمدمه لاراوسـه بـې دردونـه خـې راخـې

خپلـه سـترګه آيينـه نـه بندوي پـه پر"
زه په غم کې والړې سترګې يم خوبونه خې راخې

دوصال دشپې دخرڅ يکې هيڅ جوړه څښه نه شوه
دبياض هـسې مخ نورشو،خيالونه خې راخې

ای حمزه جوړ دليلى قافله تېره پـه دې لاره
په فضاکې بوخوابل خوانکهونونه خې راخې

(۷۱۷)

ګلـــه مـــبن دې نـــاقلاره''ګرځـــې
لکه نکهت چې بې اختياره ګرځې

پـه مخـه مـه راځـه چـې مـخ پټـوي
زمـاخومخ درتـه بـې واره ګرځـې

ماخولاځـه کـړې چـې سـتاپه لټـون
لـه خپلـې لارې هـره لاره ګرځـې

چې به محفل کې هغه سترګې نشته
دايپمـــانې دچادپـــاره ګرځـــې

مادوصـــال خپلـــې هـــم ليـــدلې
چې په بهار کې بې بهاره ګرځې

لـه مابـه مـخ دبنـکليواوري ولـې
چې آيينې تـه بې اختياره ګرځې

بکـې ديـوې مـې تـودنظرکړي بلـې
اوس پرې پتنګ شوله رخساره ګرځې

گـل پـه خنـدا ، دیوه تـرې ســر یـه ســالگو — خـدایزده نـسیم دچادپـاره گرځـي
بـه کـه پـواخې زه مَـښن نـه یمـه — نوګوری ښکلي هم بې شماره ګرځي
عـشقه، جذبـه دي دلتـون نـه بـه ده — نالـه دحــسن بـې مهـاره ګرځـي
واعظـه ســتانه بوتپـوس کومــه — ربـتیامَېن درنـه بهـزاره ګرځـي؟
لـه پـښتني مینـې بـه څـه وایمـه — بـې بـدرګې اوبـې ربـاره ګرځـي
دزره پـه وینـه چـې سـرابه کـړه مـا — تـل بـه پـښتوشکرګذاره ګرځـي
عجیبـه داچـې ســتاپه نـوم مـې زبـه — ګرځي تـل تـل خـوبې تکـراره ګرځـي
حمــزه هغـه بـه بـې دیـاره وي تـل — چې بـه الفت کې بې دَ یـاره ګرځـي

۱۹٦۳ مارچ ۲۰ ــ لواړګی (۱) ار. مطالاره.

**(۷۱۸)**

عقلمند چې دخپـل عقل یـه لمـون خي — لیـونې پـه اشـاره دخپـل جنـون خـي
تلـه رانلـه وې همیـشه دتـن" رباط لـه — "نـبا"، خي نه چې راخي نـه چې "برون" خي
ســرکوزي زمـانظر زده کـړې نـه ده — نامـمکن چـې سرلوري بـه دپـښتون خـي
دمقـصد دیـاره خاصـه زلزلـه وي — تـل دخمکـې تـه هـرآن کلـه قـارون خـي
خبرنـه بـم سـتاله برنـده التفاتـه — هرنظـر دروبـزه ګرولـی ممنـون خـي
دوه جهانه یې دوه کامه دي دنفـس کـړل — خدای زده چرته به د دوو سرګو مفتون خي
لیونتوب بـکارې حمزه چې عقل بوخ شي — ـل مفهومه بوګفته شي نور مضمون خي

(۱) ار صا

نـوزې تیـرې"' راغلـې نظرچرتـه خـي — دابـې خبرچاکړوخبرچرتـه خـي
ورک پـه موسبدو پـه خندبدو کې شي — چرتـه یې منزل وې سحر چرتـه خي
خوان چې شي راکوز به له پنداره شي — پوخ چې شي بیاګوره ثمر چرتـه خي
خـدای زده د اشنا دتـصور سـره — شـوق د تنداري مې بهرچرتـه خـي
کـښت کـه دزعفرانو دبارخوکړې تـه — بیابـه دبـې مخیـونظر چرتـه خـي

سریې چې تل تیت وي په درشل دحسن — ګـوري دالفـت نـه هنرچرتـه خـې
څوبـه لـه رندانوکړې ساقي تېـوس — خیرشـه د دوی ګـوره نظرچرتـه خـې
موسکې دې که سترګې کړې له ګوابـه پس — اوس رانـه احـسـاس دخطرچرتـه خـې
اوس یې له تاهم نه شي کېدی علاج — ســتاد اداګـانو اثـر چرتـه خـې
دابه په خپل خان کې نیمګرتیا وني — پرلـه بـسې ژوندپـه سـفرچرته خـې
مخ د حمزه بښکاري دمغرب په لور — بارد خطاګانوپـه ســرچرته خـې

۱۹۵۴ جوسر ۱۸ پـېښوي. (۱) ار لېږي.

(۷۲۰)

دمې خورنه دتوبې پښېماني نه خې — ســتادمســـتو غزونو خواني نــه خـې
نه تازه په جبین خال کړه لاله رویه — که داغونـه مـې دزړه پخواني نه خې
څـوچې وینـــه دمینـــوارزانېږي — ســتادوصــل دشـرابو ګراني نــه خـې
ســتادزلفو پــه نکهـت زماقــم دی — لـه جامې چې شوم بهرپرېشاني نه خې
آینـه دې دجبین دکــه لــه آبــه — دبهـزاد او د مـاني حيراني نـه خې
دنظـــرلمن دې راکـــاږي تېرپېږي — اوس خوسـتادنهتې عريـاني نـه خې
ســتاخنداته دي حیران ودانــه ونکیــه — دحمـزه دزړه د کـور نـه وراني نه خې

(۷۲۱)

خواني زما شوه دود له غوبوه ددلبر سره خې — څراغ د هوش مې په سلګوشو دسحرسره خې
کورمې د زړه شولکه ګور.غلابه خورشه په مخ — دې غـاري وتي ارمانونـه د نظر سره خې
چې له شوخي دې لبې جام کړلې په ست دوصال — شراب د وينو مې د اوښکو د در سره خې
جې د اشنا د اوږدو زلفو تصور رانغسی — د انتظار شپه مې کوتاه شوه د سحر سره خې
رانه موسکی شه که خبر دې وي د یار راوړی — قاصده پام کوه چې هوش مې د خبر سره خې
عقله بخښي دې برهرونـه د سکون په زړه دې — جې دوحشت پنجه پرې ورشي دلبر سره خې
نمر دتوحید دسپرلي ورکاندي شبنم د جنت — تاو د الفت کړي تقاضا چې دی د نمرسره خې
په صفازړونوي ښکاره که وي بخري دعیب — دغم غبار د آینې نه د جوهر سره خې

جې دې له سترګو په ماخبل هغه شراب نه وینم — زړه مې په لاړه د چشمانو د نظر سره ځي
اشنا خو رادې شي که کلکې دې بخښي د کفن — داخه سودا د محبت شوه چې د سر سره ځي
توره وه سترګې چې دعشق له توره نور ونه خوري — نور د بصر مې په زړا کې دنظر سره ځي
دحافظې نګار خانه يې تصور نه لري — شوق مې محروم د تخیل د مصور سره ځي
جوړيه مجاز او حقيقت کې څه نسبت شته ضرور — حمزه په مينه د حيدر کې د سرور (ص) سره ځي

(۷۲۲)

ځان نه شه راښوون چې دې د وهم نه کثرت وځي — خو پاتې وحدت شي چې له فکره غیریت وځي
زړه چې دې فعاله پکې شک پاتې کيدې نه شي — خلې له ګردابه، د ګرداب به حرکت وځي
ښاله يوې سختې چې اشنادرپه سختنه وي — وکړه انتهاکه مې دخولې نه شکايت وځي
وخته په نقطه د محبت د زړه قدم لرم — زور دې په رفتار کې کړه پیدا چې دې حسرت وځي
ښکليه په ديدن کې دالفراط مې دنا خوښی نه دي — هر څوک چې اسراف کوي له ماله برکت وځي
پام کوه دنياته چې دمينې، هوس برې نه دي — بيادرنه جذبه به دايثار او عزيمت وځي
داسې سپکاوی به دې ښتونه عشقه ونه کړم — خلق يې له بزمه د رقيب په اشارت وځي
ګوره دعادت به ماتولو چې عادت نه شي — بيابه هم عادت وي پاتې شوی که عادت وځي
حسن شي خندا، د سپين سحر د ښاستر ګه کې — چرته وي ښکلا د صباحت چې ملاحت نه وځي
ته پخپله پټ ساته حمزه اويې پروا اوسه — نشته هيڅ امکان چې د رقيب نه خيانت وځي

(۷۲۳)

هر ګل به بهرلې کې ګل نه خاندې خندان وځي — راغلی دې چمن ته وې پريشانه پر ... ن وځي
لمحې دي، که جبې دې دو خښتو چې تيرېږي — هداسې بوتر يله دونياته ياران وځي
اى عشقه ته به خپله جوړ مقصد زمادژوند شه — خواهش چې له دې منځه دوصال او هجران وځي
ښتون لرمان مې داغ دريدې ګلې شويه زړه کې — داچاوې چې وصال داشنا وشي ارمان وځي
بس بوشو تبسم، بهاز مادو ينو او ښکو — څه وايم له دې جنه چې ګران راشي ارزان وځي
عالم وآيينه د کوم يوې جهته ښکلې — حيران شي چې څوک راشي هم ترې بيرته حيران وځي
محفل کې يې حمزه د ښکلې مخ چې تذکره شي — تاييد کې مې دخولې ځني قسم د قرآن وځي

۱۹۷۵، فرورې ۲۵ ـ لوارګی.

(۷۲۴)

چې ستا دمخ نداره وکړي له کتابه وځي چې ستا دزلفو بندیوان شي له حسابه وځي
یام کوه یام، که محبت مې له حجابه وځي ستا دښکلاځه رنابه له نقابه وځي
له حسنه تېر مه شه، وصال به دې الفت کړي فنا تنده شي ماته دهغوچې له سرابه وځي
ای دمېن دزړه ګوهره چې برباد یې نه کړي دازړه رانښکونکي تجلي خوستاله آبه وځي
بې دعفت نه وایه چرته وې زهور دجمال څه پرې حوهردزړه رانښکون چې له شبابه وځي
دفراق سختې رانه یادې په وصال کې نه وي سینه چې شي ګډه سمندر، له اضطرابه وځي
خدای زده چې سترګو کې دتاڅه تاثروي اشنا چې مې قاصد دتاددرنه بې جوابه وځي
ژوندبه دنمراودسپوږمۍ نه رانه نورجوړ کړي دعمر خفل دی، څه که پښې مې له رکابه وځي
حمزه شوګیر دمحبت ته هدایت وکړه ستا به دې دپروانوپلویه څوک له خوابه وځي

۱۹۷۴ ستمبر ۹ پېښور.

حیف یې په ژوند، هغه چې ستاله ملاقاته وځي چرته چې لاړشي دهر چاله التفاته وځي
اوس په رانلوده په محفل کې هنګامه دمستي وایه زاهد ته چې بهر له خراباته وځي
دا سخاوت دی دساقي اوکه رندان دې شوي چې له محفل نه پیمانه، پیمانه ماته وځي
څو چې سبق له محبت نه، دوحدت زده نه کا نه شي کېدی چې دکثرت له اضافاته وځي
اېله به پوهه په رموز د ... اری شي دعشق چې به دې لاړ کې له ګناه اوله بیلا ته وځي
ښین هغه چې مینه ګروي دپښتو په محک څه شي که ښکلیه هغه ستا له عنایاته وځي
مانه چې وګوري نظر په بل طرف واړوي خدایه قیامت دی چې پښتون له مداراته وځي
پودرندی مینې ښندک وي رانه کم مه ګوره څه شي اشناکه مې له خولې خبره زیاته وځي
دبردې نصاب نه چې حمزه نه بې عطا کړي اشنا دا به څه کم وي چې زکات دې له زکاته وځي

۱۹۷۰ مئ ۸ پېښور

خدایزده چې واعظ نه مې دخولې نه سالي څه وځي ته ورته موسکی شه، لږه ماته یې چې خوله وځي
ښکاري چې ښکلا زمایه زهد کې پیدانه ده حسن ته چې وګورم له واکه زما زړه وځي
هر دپښتو هم رانه ستامینې رازده کړی دی هغه خای ته نه ځي چې تري بهرته پښتانه وځي

خې مې ارمانونه هم چې نشته تصوردیار　کورکې چې کوربه نه وي له کوره میلمانه وځي
دا　رانه ښکاري چه ښکلا دي دمحفل زه یم　کله چې دریهښ شم درلیب له مخه سره وځي
زرونه دوه مهن چې یوتریله کړې بدل سره　ورکې تولي لاړې شي له مینځه تله راتله وځي
خبرداغیارسنفې،خوستاستغې داغیاریه خوله　هغه مې اساني لـه زړه وځي خودانه وځي
مه خانده بیواکه درته لاړبه شي نکهت دراز　گله پیالـه واکه به دې خولـه راتولـیده وځي
پاڼشه دکاکل ورته حمزه که رسیده غواړي　چانه چې سفردلري یهښ دې به تیاره وځي

(۷۲۷)

ستا که هستي د حوادثو لـه ادرا　وخي　نه شي کیدی چې به حالات دناله راکه وخي
څرچې به دارد محبت دي نه شي هوش اوشعور　چرته باده؟ چې د خم خم زلفوله تاکه وځي
که الوده .　د دنیا داسې فطرت راکړه　لکه هیلي چې د اوبوله مینځه پاکه وځي
بس خو بوه د زړه دانه ده چې فنا نه منې　نیغ د بقا د جنګ به لاس اخلې له خاکه وځي
ستا دهست د کوتاهي اوناتواني نخښه ده　داچې نعري دې به دبر زور کې له افلاکه وځي
خاوري ابرې دي هغه زړه چې محبت نه لري　بیادې خه کاروي رابه،اورچې له خاشاکه وځي
به اشنایانو دې ازمینت د صداقت مه کوه　بیا بې خه خوند د تعلق چې تش نباکه وځي
هغه نمر مخې زړه نه راځي چې وحشت راځي　خکه رښا مې د گرهوان لـه هره چاکه وځي
دحمزه لور تـه د رندانو سترگې واورېدلې　سالې چې غږکړوله محفل نه دې کاواکه وځي

۱۹۷۰ می ۳ــ لوړ کې

اوس مې رنگین رنگین خیالونه له دماغه وخي　خې بلبلان دارمانونو لـه دې باغـه وخي
ستادفراق تیرې خورې شوې به ماحول زما　بوه رڼا ده چې زما د زړه لـه داغـه وخي
چې پتنگانوتسلسل به قرباني کې دکړو　لوگې نعرې داحتجاج دې لـه څراغـه وخي
زمابه سترگوکې ښکاره دې ستاجمال اشنا　مې که وتی نه شي خورنگ بې له اباغه وخي
یاد بې له ویښې نه شوتېرله خوبه هم ورتو　حمزه بهار دې د ژوندون لـه باغ ورالحه وخي

(۷۲۹)

دتاپه زبه کـه هرخوراتـه تراخـه پربوځي　له برندوسترگودې زمابه زړه خواږه پربوځي
سکلبه پوهیږې؟چې اعدازدې دخرام څنګه دی　چې کوم قدم پورته کوې زمابه زړه پربوځي

یون به مې خه ري چې زه ستا د "داما" نه لرم — څوکه همت لري، به لاړوکې رانده پرېوځي
ن دي حوزسم راته کتلې به محفل کې اشنا — په سمه لارچې قدمونه مې کاږه پرېوځي

هله خبر به کیفیت به د سجدې شي حمزه
که دي به عمر کې نندی دیار به پله پرېوځي

لوړ کی ـ ۱۸ اگست ۱۹۷۵، اگست ۱۸ ـ لوړ کی.

(۱) آر: اصلا.

سوسن دي غوټه پسرلیه د اخفا پرانیځي — ستا د دفتر به حلقه زړه د افشا پرانیځي
خومره فریب د پسرلي په تخیل کې دی — بوډن نهولي غوټې سترګې په خندا پرانیځي
په بربوکې کې مې د خاورو خه تاثیر خوشنه دی — خومره چې خفلې خومره غم ورته صحرا پرانیځي
زه چې عارف شوم، د دنیا یوه کونجې بې راکړه — چې راته ور هم به دنیا کې د عقبې پرانیځي
ځان ته موسکې ګله به غم کې د عدم به نه بې — ستا د وجود تکل به غوټې د غوغا پرانیځي
څوک بې د زلفو څوک د سترګو په جبین کې دي ګیر — دي بې خبره څوک به هغه، څوک به دا پرانیځي
سره د ضمیر په اتګو کې د وختونو نشته — بنکارې چې اوس به نوی باب د ابتلا پرانیځي
د بیلتون مې خه درمل د پریشانې کوي جوړ — وایې نسیم ته چې مې زلفې د لشنا پرانیځي
ه دروغ دي چې په بار کې د دنیا وي وفا — وي به جفا لره، که زړه به رښتیا پرانیځي

(۱) آر: پرانیزي

نامهربـــــانې ســــترګې د تـــــا دي — خوږېـــــه مـــــاګرانې ســــترګې دتـــــادي
په خیـر کنـر مـې نـه کجـه کـېږي — ســــــاده نادانې، ســــترګې دنـــــادي
چې نـه نېغېږي او نـه تيتېږي — دامـــــسلمانې، سترګې دتــــــادي
زلمې زلمې بـې خنګـه زاره کـړل — ظـــــالمې خوانې، ســــترګې دتـــــا دي
نـــــن دي کتلې، جوړ آیینـــــــــه ده — شکـــــه حیرانې، ســــترګې دتـــــا دي
چې لالـــانې مې، زمـــا غـــزل کـــړ — دا غزلانې، ســــترګې دتـــــا دي
کاتـه خـر کاتـدي خـر الـوتلې — خـــه استادانې، ســــترګې دتـــــا دي
چې نـه شـرمېږي، بیا وشـرمېږي — دا ماشومانې، ســــترګې دتـــــا دي

یون به مې څه ري چې زه ستا د لداسا"(۱) نه لرم — څوک همت لري، په لاروکې رانده پرېوځي
نن دي حوږسم راته کتلي په محفل کې اشنا — په سمه لارچې قدمونه مې کاږه پرېوځي

هله خبر په کیفیت به د سجدې شي حمزه
که دي په عمر کې ندي دپاره پله پرېوځي

لوړ ګی_۱۸ اګست ۱۹۷۵، اګست ۱۸_ لوړ ګی.

(۱) آر: ابصا.

سوسن دي غوټه په سرلبه د اخفا پرانیځي — ستا د دفتر په حلقه زېږه د افشا پرانیځي
خومره فریب د پسرلي په تخولو کې دی — یوون نیولي غوټي ستړګې په خندا پرانیځي
په بریوکی کې مې د خاوروڅه تاثیر خوشه دی — خومره چې خفلي خومره غېږ ورته صحرا پرانیځي
زه چې عارف شوم، د دنیا یوه کونجې بې راکړه — چې راته ورهم په دنیا کې د عقبې پرانیځي
ځان ته موسکې ګله په شم کې د عدم به ښه یې — ستا د وجود نکل په غوټې د غوغا پرانیځي
څوک یې د زلفو څوک د ستړګو په جهان کې دي ګېر — دې بې خبره څوک به هغه، څوک به دا پرانیځي
سره د ضمیر په اتنګو کې د وختونو نشته — بنکاري چې اوس به نوی باب د ابتلا پرانیځي
د بیلتون مې څه درمل د پرېشانی کوي جوړ — وایي نسیم ته چې مې زلفې د اشنا پرانیځي
ه دروغ دي چې په بار کې د دنیا وي وفا — وي به جفا لره، که زړه په رښتیا پرانیځي

(۱) آر: پرانیځي.

نامهربـــاني ســـتړګي د تـــا دي — خوږه مـــاګراني ســـتړګي د تـــا دي
په خیر کتـو مـې نـه کجـه کېـږي — ســـاده نادانی، ســـتړګي د نـــا دي
چـې نـه نیغـېږي او نـه تیرېـږي — دامـــسلماني، ستړګي د تـــا دي
زلمـې زلمـې بـې خنګـه زاره کـړل — ظـــالمې خواني، ســـتړګي د تـــا دي
نـــــن دي کتلي، جوړ آیینـــــه ده — څکـــه حیراني، ســـتړګي د تـــا دي
چـې لالـــاني مې، زمـــا غـــزل کـــر — دا غزالاني، ســـتړګي د تـــا دي
کاتـــه خـــر کاتـــدي خـــر الـــوتلي — څـــه استاداني، ســـتړګي د تـــا دي
چـــې نـــه شـــرمېږي، بیا وشـــرمېږي — دا ماشوماني، ســـتړګي د تـــا دي

دتاپه شانې، سترګې زما شوې — زما په شانې، سترګې د تا دي
ته چې موسهږې نو په لوستلو — ډېرې اسانې، سترګې د تا دي
چې ېرې بايللې حمزه خانې ده — هغه خوګرانې سترګې د تا دي

۱۹۵۶ مارچ ۱۹ـ د ټانګ نه د پېښور په لور بس کې

(۷۳۲)

حقيقت وي نه مجاز چې بې په لب وي — دنيا يسته د کوم کلام چې وي عجب وي
خپل ايثار به مې واصل کاکه خدای کاندي — که مولوفه نتيجه په خپل سبب وي
مېن غرق د عشق په سيند کې خولاز ونې — چې بې سترګې تل پرانستې لکه کب وي
خوبه پوهه کې قچروي نور څه نه وي — چې منکر له اهميته د نسب وي
که د ېنه نسب انسان ډېر ګنهګار وي — خو مظهر به د شرف اوادب وي
دروغ نه دي مرسې به د مخلوق شي — چې بنده څوک په رښتيا سره درب وي
حمزه عشق وي د هغو مهرنو برخه — ديارنوم بې چې په زړه وي، نه په لب وي

(۷۳۳)

ښکه بوږنېږې ستورې اوتر دي — چې څه وېلي ورته سحر دي
تورد بدن دي ورلره نه شو — داکه ککې وي اوس بې نظر دي
په خان بودنه دېار غلط شول — څه بې خبر دي داچې خبر دي
لکه سپندې په ګډ هدو کړل — مېن مشکوره ستاد نظر دي
څه بې خطر دي ددې خطرنه — څوک داشانه چې بې خطر دي
څوک دي په زړه کې څوک په لېموکې — پرېشان دتنه، حيران بهر دي
اظهار دمينې اشناته نه کا — څه نه هغه دي چې بې هنر دي
يادوصال دي يادبهار دي — هغه وختونه چې بې ثمر دي
هغه چې کور دي نه دي په کور دي — څوک چې بينا دي توکور په سر دي
حمزه چې اونکې دي پاتې نه شوې — تراوه دعشق له خونې بهر دي

۱۹۵۱ روسي نومبر ـ پېښور

مینه چې کچه وي په لمحه کول پکار دي — سوز لره خبرې اوس په زړه کول پکار دي
مارسل زاهده! میخانه په مخه راغله — وي چې بنه ده وایه نواوس څه کول پکار دي؟
فکر وکړه خان ته چې منشا د صانع څه وه — به بې چې پیدا کړې نو اوس به کول پکار دي
مه نیسوه سترګې خپل شول دي ساته حسن — ښکلیه درته خوې د ښښانه کول پکار دي
ورولې کړه لیندې ورته چې کوږ د چانظروي — داسې د کړوسره کاږه کول پکار دي
خبر دی که په خوله دې فریاد ونه اسویلې دي — څه چې دې یوه مینه په زړه کول پکار دي
ګرم چې په لمسه د رقیب شو حمزه ګرم شو — ګرموسره تاله ساړه کول پکار دي

[۷۳۵]

مقراضونه دستم دي دلبر د ښر دي — خو زما د الوتلو وزر د ښر دي
دنمر زیږپلوشو راته دا ووې — په سحر کې وښېدو نکو له زر د ښر دي
که ماره دې د دیدن هم پکې شمار کړم — غنم رنګه ستا د وصل نهر د ښر دي
نور بختې د رقیب تلې نه شي نمر مخیه — تور دا څونه په روښانه قمر د ښر دي
خوشبویې مې دلوګو رهینه نه ده — سوز که غواړې په بازار کې اګر د ښر دي
ګوښې به یم چې اخر به شمه ګوښې — که ملګرې مې هر څو د سفر د ښر دي
ساده لوح مې الهي لرې تر ژونده — فریبونه چې د یار د نظر د ښر دي
حمزه زړه او سترګې هم بې څه محفل دی — چې دننه پکې لمر او بهر د ښر دي

[۷۳۶]

را لره اوس نه اند ښېښې حمه اوږدې بس دي — ماته د زلفو د فکرونو سلسلې بس دي
د ښار په سترګو کې انداز د بې خیالۍ شو پیدا — د سترګو ست نه مې دا ګونګې اشارې بس دي
سترګې د ښار مې هام غلط په انتظار کې ساتي — د زړه پتنګه دغه دوه بلسې د ښرکې بس دي
د لیونې دا لاس اوږښې وهل عبث خو نه دي — روغه عالمه وشوه دومره زوګلې بس دي
اوس که حالاتو التفات بې ښاغې کړی حمزه — ماته بې بیا هم حقه تېرې ورځې شپې بس دي

۱۹۵۹ نومبر ۲۶ـ لوګرګی.

(۷۳۷)

دریاب که وایې زړه ته، طوفانونه یکې کوم دي
درزېږي دامنم، خوارمانونه یکې کوم دي

صحراکه دې پراخه دخاطرده په داخه شي
غولی دې برېوکې دي، کاروانونه یکې کوم دي

په زړه کې دې نه غم شته، نه الفت، نه پهرزوینه
داکورخولکه گوردی. سامانونه یکې کوم دي

سپرلی ددې چمن څه خنده رویه ستمگردی
بې شوکې پاتې شوې گرېوانونه یکې کوم دي

دښکلیو مینه چارې چې ښه نه ده خوداگوره
سپېڅلي بې علته دامانونه یکې کوم دي

دزوند دې افسانه دلېونوخبرې ښکارې
مفهوم دی یکې چرته، عنوانونه یکې کوم دي

لاتوریه هم قوې شي دحالاتو په پلکونو
زلمې خوشه، خوزرونه سندانونه یکې کوم دي

دانه دزړه دې چرته بې له اوښکوزرغونېږي
گلشن چې کړي سرسبزه بارانونه یکې کوم دي

حمزه شته مسجدونه خوچې زړونه رازوندي کا
اوس هغه تکبیرونه اذانونه یکې کوم دي

۱۹۷۴ مې ۲۴ ـ لوارگی

(۷۳۸)

## په زمان خبري کې د فاروق د دعوت په موقع

که جوهر د مصفارنمایان دي
آیینې غوندې خپل ځان وته حیران دي

دردمن چرته؟ چې بیا اوښکې ځنې بود کړي
سوز[۱] به پټ ساتې چې بوه[۲] په سوداوزیان دي

د خولو گوهر[۳] وېښته په پېچم شبندي
د فاروق سره راغلي شاعران دي

فلک خیر له کچکول د هلال راخیست
که نوري دې نالـصان، خوسرگردان دي

نه گوزار د ستم راکړه سوز مې گوره
په بکر کې مې د زړه چې څه پنهان دي

که طوطي مې د آمد په چغار نه دي
د آورد مې زرزبانه د بیان دي

لوار گیني د شاعرانو قدر نه کا
غور غولي بې لعلونه په دبېران دي

د خیبر له غرونو نسر د شعر وخوت
چې خوږي بې پلوشې تر هندوستان دي

حمزه قدر په خپل کور کې د چانه وي
دعربو خلک کم دي چې حاجیان دي

(۱) آر غو. (۲) آر: بوقه. (۳) آر: د غوږو هر.

(۷۳۹)

ښکلي د سینگار تیونیولي مرغېزن دي
نن تاوده نبضونه د دنیا دانجمن دي

رانه سالي دجام سره کړونظر داسې
خدای زده چې شراب هغه پخوا ورکه دا نن دي

خوک دي په معيار چې به د ښکليو وفا وکا — خوک چې دي رښتينې په دي کار کې دروغجن دي
سترګه د نرګس کړه د ګل په مقابل شوه — ښکليو چې سيالي د يار د سترګو کړه، لېچن دي
اوس راشه حمزه ته دادی وخت د مينې باره — د اميد يې څه بخرې په خوږلن دي

اوس مې ن له ياره و خپل خان وته روان دي — يوه په طليعت چې شو جانان وته روان دي
څه دي اشنا غواړه اوس د دهرو حجابونو — ګوزې مې لاشونه چې ګريوان وته روان دي
کمې جهرو د خاورو د مهتو پرېوکې شوې — څه روح الهوتي چې بيابان وته روان دي
نه کړل بنه نيولي، تداوي د زړه چاودون هم — خلک په سپرلي کې ګلستان وته روان دي
خام ګڼي خپل حسن چې تکل د آيني کا — ګوره څو حيران و ته حيران وته روان دي
فتح د سپوږمۍ څه عجيبه شوه چې دا خلک — تل له يو جهانه بل جهان وته روان دي
دا خونړي سترګې، دا تېره پنجې غابونه — دابنې آدم دي خراسان وته روان دي
ښکاري پښتانه لکه مهېږي غونډې د نيانه — دا په دبدبه کې سليمان وته روان دي
څې به تاترين نه دا چې حق ته مقابل دي — څوک حمزه څه نن اسمان وته روان دي

۱۹۶۹، اګست، ۲۶ـ کابل

(۷۴۱)

پسو کړت خوږې نيازه د کتو دي — مسېن زړونه که هرڅو د غرور څېدو دي
تصرف دا انتظار دی که څه چل دی — چې وختونه مې روان په دانګورو دي
خپل نازونه که شمېرلی شي خو په — چې زما په تنکي زړه داغونه څو دي؟
بس خوږې سپيه ناڅاپه پخلا شي — ښکلي نه به منتشر نه په زارو دي
چې په زړه د خاموشۍ کې يې هم شور دی — بس هم دلې خاموشي زما د شپو دي
چې زما د ورځو شوريمې دی نغر دلې — دلې دوې خاموشي زما د شپو دي
کيف يې سنا د مستو سترګو منتظر دی — ماتوشلي شرابونه په کاسو دي
برندبانه دی همېشه په ګراتي کې لوسه — کله ټيټ غشي نهسزي د ښېشتو دي
چې د روګروم ښېشتون نظر دي ټېټي — دالېوې خوده خندا د تو غلچکو دي
خدای دې د يې خوشحالي عيب کړه ښکليه — چې همرنه دي په ماباندې پهسند دي
په خندا خندا کې هم کله ليرهېږي — کوم وختونه طرر د زلزلو دي؟

بیاتـازه د زړه زخمونـه مـې سـپرلي کـړل
اوکـه سـترګې غړولـې مـې تویـو دي

تـرلي لاړي پـه بـوټون بـوټون شـي وړکـي
همـزه تللـې چـې د ښـکلي تـر وړشـودي

۱۹۲۸ مارچ ۳۰ ـ جلات کوټ

ځوان مې چې خیالونه ستادمخ په رنګینو دي
خدایږواچې سپرلي مې تښتېدلي له وړشودي

ستادزړه سنګر(۱) نه طوفاني پرغل پکاردی
اوښکې مې راغللې په ملاتړدا سیلو دي

ستاچې شوبانه سرمایه دار زمانه وینه
خپردي(۲) ښېښانه دي لـه درمن دمهلمنودي

بې لـه خـه مثالـه دي تفهیم د وجود نشته
دي چې هرخه هرخه ستادمخ لـه پلوشودي

ستادمخ ستاینه بې پـه ډول ډول وکـړه
زړونـه پـرې چـولي د اَزل نـه پـرلو دي

دالاخـه مقام دی چې مې ورکـه شوله ترخـه
نه شي تلی پـه وراندي عمري مره د بدرګودي

مینـه پـه جرګـو جـرې همزه نـه پیدا کیـږي
اونـه چرتـه ښـکلي پخلا شوي پـه جرګودي

(۱) ار: خندیګو. (۲) ار: سـکرو (۳) ار: صروی

۷۴۳

خه پـې روان که خه بې راوړل پـه سلګو دي
خرنګـه بادونـه د سحرپه نیندکودي

تتې تقاضې د طبیعت چې محبت کړي
اوس نوتقاضې مې د فطرت پـه خلیدو دي

نمربې دخواني ترنیمایي(۱) اسمانه راغی
اوس داتنګونه بې بخري پـه لوبېدو دي

پورته پرې فضامې دوجدان خلنده ښکاري
ښکـه له فراله مې که اوښکې په شپېږودي

بـه ده نـوم دي نـه اخلم، اقرار شـو تر قیامته
دارنګـه لوظونـه د شـډلو پښتنو دي

عقل مې کامل شو چې مې مینه شوه کامله
اوس نـوې ارخونـه د فطرت د تقاضـو دي

چـرل کسې د دنیـا د راحتونولېونیـو
ستاسـو امیدونه عبارت لـه بربوکو دي

سم کاته چې غواړي څوک د ښکلیو د بیتونه
پس هغه ختلي جوړپه تال دپلوشـو دي

ساز چې مې د زړه د نورو لاړو پـه لټون دی
تش د کیفیت نـه کالبوتونـه د نغمو دي

بس دی هغه غم چې مې یوخل و درتـه کړی
اوس زما دبـاره قضـاګانې پـه نـارو(۲) دي

ستاپه تصور چې همزه ستررو تـه کاتـه کړل
اوس چې ورتـه ګوري ترجمان دي دلبـودي

(۱) ار: نیمایه (۲) ار:

(۷۴۴)

هجـره سـتا دظلـم اجـاري پـه دوبيـدو دي — سـيند د مينـي چرشـو، كـناري پـه دوبيـدو دي

اوښكوچي دب نه شي دي پوڅوالدمه پاتي — خـي دهغـه ښـكلي اشـاري پـه دوبيـدو دي

لاري رنگينـي شـري د ځـواني د پسـرلي تـتي — ښكلي سـيل ته نه خي شـداري پـه دوبيـدو دي

لاره بربـوكي شـول ارمانونـه خيرېـي نشـته — لورشـو، خـو دا لـوري منـاري پـه دوبيـدو دي

جذبـه مهرنيـمه خبـر لـوخ كـبره افلونـه — اوس د نـاتواني نـه مـي نـاري پـه دوبيـدو دي

ستاپه لوپته كي مي پيرلي، پوره نه شوي — اوس لـه انفعالـه سـتاري پـه دوبيـدو دي

ځان نه ملـوي چي رابـكه زره د حمزه عشـقه — سـتاپه شـوركي هغـه بـلاري پـه دوبيـدو دي

۱۹۶۱ فروري ۲۵ ـ سوات.

(۷۴۵)

اى عشـقه پكي ستادتنداو نه سـواځه دي — په حسـن كي هم سـتاداتنگو نه سـواځه دي

دمينـي دوجود سره پوځاى څه مناسـب دي — داوښكوپه فطرت كي د تراوونه سـواځه دي

دپر زړونه په هوس اومحبت كي فرق نه كا — شبنم كي نور د تلونكو پلوشونه سـواځه دي

رقيب چي كاپه خلكو كي خبري ستادمهر — نوماځخـه اشنادا سـوپلو نـه سـواځه دي

خيالونه لـپوني مـي اسـتقبال دتصـور كـري — صحرا كي دبي صبره برپوكونه سـواځه دي

پـوه خبـره واوره چـي دي ژبـه راكولـه — سـاتنه كـي د ژبـي دپښتونه سـوا ځه دي

سالي ستادغري كه تصور دصراحي دى — رندانوكي دي پاتي دسلگونه سـواځه دي

وخشونه پومضراب لري دخيال دي لاري دپري — كه خبرنه شي هستي كي دنغمونه سـواځه دي

حمزه د اسـتغفار نـه د ديـدن نه وزگـارپري — لـپمرځخـه داوښكودنـپرنه سـواځه دي

۱۹۵۴ نومبر ۱۱ ـ پيځگى.

ژوندونه تقاضي دي پريشاني نه دي نورڅه دي — چي زړه شي په تاجمع ناداني نه دي نور ' د

راځـه عشـقه راځـه خوپـه جامـه دپښتانه كـي — سـتاخپل چي كوم لباس دى، عرياني نه دي نور ' د

منزل راته موسكى شو، خوچي لوږ زورمي لركرل — دالوپي كارنامي د رواني نه دي نور '

كوم ښكلي چي راوگوري نظر مي تري تېتېږي — دا واره تيندكونه دځواني نه دي نور '

عـارف دعغـه مـخ یم، پـه یوخیزنـه حیرانیم	دالوس چې کله راشي، حیراني نه دي نورخه دي
خواهش مې په خواني دی، خودیدن داشنانه کړم	ماشومه عشقه داپښماني نه دي نورخه دي
حمزه اوس یې بهاشوه دوه جهانـه سردپاسـه	داهم چې ستا په خیال کې ارزاني نه دي نورخه دي

(۷۴۷)

چې یـې ورک یې، بې رنګي واپه ملنګه خه وي؟	اخلي چې رنګ دبې رنګیه، له مې رنګه خه وي؟
دزره خلادې دهستي دی یوه ونیاسانه فریب	صوفي په دې د آیینو کې یې د زنګه خه وي؟
په عاشقي کې زره دخان سره ساتل بنه نه وي	په تعلق کې دپې مخبو یې له جنګه خه وي؟
دانه چې شمعې په خنداخنداکې ژاړي هسې	تاپه طواف کې به زده کړي له پتنګه خه وي؟
یوه سپرغۍ دجمال هم یې ښکاره شوې نه ده	ګنې حقه نه د حمزه د هستي پنګه خه وي؟

(۷۴۸)

دادفطـرت پـه انګـرکې خـه د	دزره رابنکل پـه تندارو کې خـه دي
دتـصـور لـه رنګینونـه سـوا	نور مې د سترګو په ورشوکې خه دي
لـه غفـه ګـل دې خـه پیغام راوړی	نـسیمـه ستاپه تیندکوکې خـه دي
هـره خنـدا" د ګریـبان څیـره ده	دیـرلو پـه موسیدوکې خـه دي
تـه خوبلـو لـه مخـه واخلـه اشنا	چې شي معلوم په پـرلوکې خه دي
رنـده سـلګی لکـه مینـازده کـره	بې اسویلونه پـه کاسوکې خـه دي
بنـه ده د پـښـو یـې نـتراتې کـوې	حمزه نور اوښکو پښتنوکې خه دي

۱۹۵۲ ء هروري ۱۹ ــ پېښور.	(۱) ار: خنده.

(۷۴۹)

راغی مرده پس چې دجانان په زره کې خه دي؟	زره کې زماخه دي داسمان په زره کې خه دي
مانـه ده کـښتني دګـودر لورتـه ګرخـولې	خنګه راپیداشو، دطوفان په زره کې خه دي؟
ګل یو خندنی اسویلي دګرو سرېې تیت کړ	زه شوم په دې یوه چې دیرېشان په زره کې خه دي
خـه لـه آیینې کـړې دخپـل حسـن تپوسـونه	ومې ګوره مخ چې دحیران په زره کې خه دي
ګل کړوګرېوان خیرې دنکهت په خوله یې ووې	یې د دې نه نور دیرېشان په زره کې خه دي

خوند دلبو تروب دی په بې واکه خندېدو کې
لاس خوکړه وروتېر چې دګرېوان په زړه کې څه دي

لې خوندې پوېل ښکلې ته ته التفات وکړه
د به شې حمزه چې دجانان په زړه کې څه دي

۱۹۵۲ فروري ۴ _ پېښور.

(۷۵۰)

عالم دتعین دی چې څه بد دي او څه ښه دي
احساس دبېلتانه دی چې ترڅه او ... اره دي

ادراک دی د وجود او نور سواچې دی عدم دی
داڅه چې مونږه وینو هم هغه دي نور څه سه دي

حالت چې دوصال دی په خوبو ماندي موسوم شي
وارد چې شي دهجرنه حالت هغه ترخه دي

محسوس په حقیقت کې دی هغه چې تفهیم نه شي
په پټو سترګو ګوره چې داوینې دا لیده دي

عالم متغیر دی په لحظه لحظه کې ګوره
دزړه نه نیوس وکړه چې پکې څه و اوس څه دي

(۷۵۱)

که ګورې دازمادو ښو ښو نخښې ښکاره دي
لېمو کې داښادشو ګېرو نخښې ښکاره دي

بادونه بربو کی لـه آبادی راپیـسې راغلـل
شاید چې په صحرا دچا دپلو نخښې ښکاره دي

مېلمه خو رلیب نه وچې لاړ نه ګورې ومانه
تراوسه دي لېمو کې دهېښونو نخښې ښکاره دي

یم خیر دلبو تروب د حقیقت هرې کرې نه
چې پېښوکې مې ترخو دزولو نخښې ښکاره دي

الغزې هم راته ګران دي چې بېلتون په ماالسان کا
که نښته پـر لـې، دپـرلو نخښې ښکاره دي

واعظ چې اوس دمیو کرې غندنه لېمه تیت کا
رندانو جاره بویه دتوبو نخښې ښکاره دي

اوس هره مرحله خو خوږنې نه ده بې هڅه
حمزه دهغه ښکلې دورشو نخښې ښکاره دي

۱۹۶۱ مې ۲۱ _ لوېرګی.

(۷۵۲)

وخترنه ددې خلند انتظار څنګه خرابه دي
شاید چې دې کېدونکې هرهغه چې مې په زړه دي

دا ګوابې یې څه غضب شو زما جذبه میرنیه
لم راپې وله خولې ته اسوېلې په پرېواته دي

بانه یې بې قرار دي څو که سم نه ګورې ماته
که سترګې یې رنګی لرې بانه یې ښتانه دي

بس دا مې راثر د اسوېلو د تمام عمر
کاڼه چې کله کله راته هم کوې، ساره دي

چې برندې ښتنې سترګې دې نه کړې اسوېلو ته
بېواکه بېنوا دې دعاګې په مېلمانسه دي

زه ستاله التفاته اجازه غوښتلې نه شم
زما په زړه چې څه وو راغله ټول زما په خوله دي

٥ اوس دې خوانی شوې د سخن نه مرورې
جامه ور کوه نوې که خیالونه دې زاړه دي

۱۹۵۷ اکتوبر ۲۶ _ لوېرګی. (د آر پرتو

(۱۷۵۳)

خوښ دي مېن ستا په عطا، د پرښه دي　　داچې دي شپه ورځ په ژړا د پرښه دي

ستا د بنو څنګه صفت وکړمه　　جار دي د لمونځه بلا د پرښه دي

یوې موسهدل دي شرمهدل یې بل　　دا بیه دي شک نشته، خو داد پرښه دي

عقله چې کوم تاکړه رسا هیڅ نه شو　　عشقه چې کوم تاکړه خطا، د پرښه دي

بد دي چې زاهد ورته بد وایي تل　　کړل چې د چاستر ګوروا، د پرښه دي

نن راته کم ګوري چې یاران دي کم　　خلق یې په محفل کې سبا د پرښه دي

څوک چې وي مخلص د دوه لېمو په څېر　　تل یې نظر یو وي جدا د پرښه دي

ستا شوخي او ستا ناز و انداز همه　　یو د تغافل نه سوا، د پرښه دي

خیر که حمزه وړکي د خیبر دي بد　　ویاړي د حیدر په ولا د پرښه دي

۱۹۶۳ لړوریځه پېښور.

زړانتګي مې بد دي که ښه دي　　خوښا د حسن په مخ کې سره دي

لږې دي پرې پرده د الوپې چارې　　ارمانونه زما واره دي

چې ستا په زړه وي زما به خوله شي　　چې مې په زړه دي د تا به خوله دي

د ښکلیو زده وي بهاد او ښکو　　د مرغلرې اصل اوبه دي

خو چې ژوندي وي کوم ما با مونه　　تل چراغونه، د مقبره دي

په خبر کړچې، کله کجه شي　　لېمه د ښکلي، بلا پاخه دي

اوس چې ناجانه غونډي کاته کا　　هغه لېمې دي که نه دانه دي؟

سترګې هندکي دي کله شي تېښي　　یانه دي ښځ وي چې پښتانه دي

د نظر و نو خاطر مې وکړه　　ته پښتنه یې دا ملمانه دي

مینه بخبرې، خوبه دوه رنګه　　یا صبر بده دي، یا ښیروانه دي

چې ژوندي پاتې، د یار کوڅه کې　　څه همتونه زما د پله دي

ؤ په خوب کې، هم را ویښ نه شول　　چې څوک د مینې په خوب ورده دي

چې "نه" هم "نه" یې اوزه هم "زه" یم ... نو لږ مې پوه کړه چې "څه" نوځه دي
هغه وختونه چې د ېر تراخه وو ... اوس چې تېر شوي، ولې خواږه دي؟
اخر به هم نه گوېنې شي پاتې ... خو حمزه بنه دي، ملگري بنه دي

۱۹۶۴، جوري ۷ ـ مو

(۷۵۵)

چې زما په تش نظر پېر ته ستانه دي ... داشنا هغه لمحه چې وو، دانه دي
ته که سپک وایې اخباره وایه وایه ... زه یې نه اورم غرورونه مې درانه دي
گل سحر د بېلتانه ورته پېښېږي ... خندېدل چې د مېن د گرېوانه دي
ارتقاد ماراتو حامي نه ده ... تل به وي چې څوک پسونه څوک شپانه دي
چې سرلوړي په غرور لکه فلک وو ... اوس یې وگوره چې سر په زنگانه دي
زه به خان ته د مېلمه په سترگو گورم ... چې تر څو مې ستا غمونه مېلمانه دي
چې ورېځ د اسوېلو مې هم رنگې شوه ... ورک شررونه د ژړا د بارانه دي
٭ خیر که سترگې تېښې کاهند کې شي ... تیغ ولاړ دي چې بانه یې پښتانه دي

۱۹۷۲ جوري ۲ ـ لواړگي.

(۷۵۶)

ستا په جور مې چې لېمه په شپېو نه دي ... جور لېمه مې اشنا ستا په لېمو نه دي
شرابي ورېځې راغلې برسات مات شو ... ساقي منع ماتول د توبو نه دي
حسرتونه مې خون خوري او بنکې زړاتېږي ... پرېږه لېمو بنکاره، بل په خولو نه دي
بونه نه یې چې په سیل د گلو خوښ یې ... دا بهانې د چا د بام د ختو نه دي
د منزل ستړیه بېنې ابله سکون بنه دی ... چې زخمونه دي ماره په اغزو نه دي
خود څراغ چې د امید زما ژوندی دی ... ارمانونه زما، لا په سلگو نه دي
چې حمزه د عشق په سیند کې دي ورک شوي ... لا سرونه یې راوېستي څپو نه دي

(۷۵۷)

ستا یادونه هره لحظه نوي الهامونه دي ... نوي کیفیت، نوې صهبا، نوي جامونه دي
دومره قدم تېز کړه چې د اور سره خرې کا ... څه که پیا په لاړکې دي پرکې دي که دامونه دي
ستا په التفات مې ارمانونو د یوې بلې کړي ... شپې مې موسکې موسکې دي، روښانه مابنامونه دي

بس بوه هوا ده، د بري نه وي چې خبر شومه — بوته بې بويام دى، كه د بوټـكلي د بريامونه دي

مینه چې ترې لرې شي بترشي له حيوانه هم — وا مې په انسان باندي رښتيني الزامونه دي

۱۹۲۷ نومبر ۳۰_لوارگی

(۷۵۸)

لريږي بې طرفه، چې بهواكه مې گامونه دي — دا د خه نشه ده كه مې غرند مرامونه دي

نشه هغه ستر گې تصور به خه خلاركا — سته، د مستى نه كاكه پيالى دي كه جامونه دي

مره به خلا جواب كوي، كوه وو سره خه چې كري — تا چې د ژوندون بري لگولي الزامونـه دي

زه چې له خيالي جهانه والوتمه پورته شوم — د تله خو بيو زه بيم نه دانه شته نه دامونه دي

لوس به په لټون يم د پښتون چې رلېدا رېي كرم — ورک زما لـه مخي د انسان واره قامونه دي

رازيي په كثرت كې د وحدت، له بوه كيف ومونډ — بس بوه هوا ده بې شماره بې بامونه دي

كرم خوا ته چې لازم هغه تور د محبت بمه — خلقو راته تـل كري لـه ورايـه سلامونه دي

رلنه كه مې سر درنه تيت نه شي پښتون هو ولري — ستر گو كې مې جمع درته د بر احترامونه دي

ستا په هر انداز كې حمزه راز د ژوندون ومونډو — ستا په هر يو ناز كې نوي نوي الهامونه دي

۱۹۲۸ اگست ۳۰_كابل — ۵ آرستـه

(۷۵۹)

د بر مې ساقي نوش كره خو هيڅ يكې نشې نه دي — ستر گې دي راوارو، ستر گې مې لاسري نه دي

بوخو بې لوظي كري، نـيغ كاتـه د پاسـه بري — ستر گې خو دي ښكلي دي، خه چې ښتني نه دي

ستا د وظيفې اثـر، لا وده زاهـده دى — ويـنه ميخانـه نـه ده، لا بلې د بوي نـه دي

راغلې زما ستر گوته، گوره چې بر ښنا كوي — ستر گې دي بينا زما، اوښكې مې رندي نه دي

خه واعظه ستون شه نه دا خو مينوشان دي ثول — راغلي ورېسې چې تـه هغـه خـو دلې نـه دي

(۷۶۰)

اوښكې مې لاړي خو نابـادي نـه دي — دا خـو پـه دي چې ادم زادي نـه دي

هـري سـندري رايـاد بري ولـې؟ — تبـري قـصې خـو راتـه يـادي نـه دي

ستر گې كه واردي چې جام شته زمـا — مر مې ارمان ستر گې مې مراوي نه دي

دا حوصلې پـه محبـت كـې زمـا — خـواني دي خـواني خـو ازادي نـه دي

داخو هوښیارې وې ساده شوې ولې　　ښکارې چې سترګې دې صیادې نه دې
تېرې خو ورځې د خوانۍ شوې حمزه　　تېرې به خود وې چې برېادې نه دې

۱۹۵۵، جون، ۲۰_لواړګی

(۷۲۱)

چې وایم لونکې مې په سترګو کې اوس پاتې نه دې　　وا　دروغ دې چې داسترګې دې لاسپینې نه دې
زه به فرقت کې چې ژړا له د پېره درده کوم　　وایې اثر چې برېهوده اوښکې دې لاوینې نه دې
چې وایم تېر به به تا له مال و سره ختې　　وایې جامې دې په تهمت کې لارنګینې نه دې
زه ترېنه سوال په وېره وېره د بوسې چې وکړم　　وایې چې سم دې دواړه لبې مې شیرینې نه دې
وایم پتنګ یم مخ دې شمع وایې دروغ مه وایه　　چې سوخته نه یې معلومېږې چې دامینې نه دې
چې ورته وایمه ژړګی مې کړو سوخته غمونو　　وایې طایفې کوم دې د عاشقو چې غمګینې نه دې
وایم چې ستا مینې الفت کړمه شاعر زه حمزه　　وایې مصرې خو دې څه دلسې بهترینې نه دې

(۱)پاړ:ونه کړې چرې.

نن چې زما یادې حفه غارې صراحي دې　　خوب مې اسویلي کړې رالیدراې مې سلګی دې
زړه مې ښښتو بیو ته لوبې دې ورکړی　　تیغ ورځه نظره څوکه زلفې غلچکی دې
زده به زړه چاودون ګلستاد حسن په سېرلې کې　　زروته لاد خان په تداره لکه ګلی دې
اوښکې ښښتې مې راغلې ستا به ترواتې　　څه به کړې ښښتوده د رقیب سره سیالی دې
وخت نه چرته خې اوته راځې نه یې وجودشته　　دادتغیر څه ناتاروته په نړی دې
مانه دوه ښکار یې نه، چې شې جوړه جوړه دې　　ایږود نسبت له اتحکله مې سترګی دې
دانظر د چادې. بیاپه چاباندې برېرخې؟　　زه چې په وجود کې دا اشیاګورم ککی دې
سوریوکې دزلفو یې د ښکلیو سترګوترځه　　ښکارې به ورشوکې غورځنګونه دهوسی دې
غاردې ر حمزه دستادزلفو له ستمه　　هم ورته لمسون دلبوتروب کا. هم کړی دې

(۱)آر حثهګو

(۷۲۳)

ستا په انتظار چې تېرې شوی زماني دې　　لاخو په نظر کې رماحفه ورځې شپې دې
لامشت وګرېوان یې دفناسره دې پلونه　　تېرې به دې لاره دجاخوانۍ حوصلې دې
ګوانې د برمدوسترګو دې له ضبطه پرې وېستلی　　تامې به سلګیو چوړګومان، کړو چې رندې دې

ای د باسان له بریوکیو وپرېدونکیه — داخوا سوېلي دکومې تپسري قاتلي دي
گوره په ساده کتوبې غلط نه شې! — پټ بکې اجل دی دواړه سترګې يې خزې دي
بنه دي دفطرت نه بېلوی شمه عادته — ستا به تقاضو کې تو دوخې نشته ببنې دي
پرېوت به مغرب کې دحمزه د زړه نمر مخې — خکه يې دسترګو دافق لمنې سرې دي

۱۹۶۰/۶/۱۱ ـ خصوصت هراره. (۱) آر: گمان.

(۷۲۴)

ورنه عطاکه دفطرت نه دالحزوزې دي — دوفابوی کې لکه ګل دېښتنوزې دي
دزړه شبنم مې چې رنګ رنګ کړي دحکمت خبري — دادنمر مخې دبنودپلوشو زې دي
بنکلیه منمه، چې بوره دېښتنوزېه وي — خوراته وایه چې دتابه خوله کې خوزې دي
خوکه بستې وي اوریدل يې په هرلوري کېږي — کلکې به لوظ اوبه اقرار دمېرنوزې دي
دابه قسمت وچې منزل ته رسېدل ونه شو — خومې زده شوې دالفت دمرحلوزې دي
خدایه چې پوخ مې لېوتوب شوکه په خودشومه زه — خکه خاموشه نن زما دزولنوزې دي
بنکلیه کوریه، چې راته ست کوې په دې پوهېږې — چې دلته بندې له حیاد مېلمنوزې دي
په سلیمان مې دزړه چرته وسوسې کړې اثر — چې راته پاتې له هرونګه دمهوزې دي
پوته دګل دي اروې بل "نه دالحزویه ژبه — حمزه بدلې بوموسم کې دسپرلوزې دي

۱۹۷۴،اګست۱۹ ـ لوارګی. (۱) آر: پلې.

(۷۲۵)

ماد زماني نه پورته کړې چې پردې دي — شپې ورځې زما چې وې اوس ورځې دې نه شپې دي
مینه شوه کامله که کامله شوه فناشوه — اوس پېرې نه پوهېږوکه وبله اشارې دي
اوبنکې مې په زړه کې چې نه وې کورنې دي — نه چې راغلې هله شوم خبرچې مېلمنې دي
خلم لکه ستوری چې په برخه مې تیارې شوې — خکه غوره کړې مې رڼالره تیارې دي
زه چې دکثرت نه حمزه راغلمه وحدت نه — دلته پاتې شوی نه زنار او نه تسبې دي

(۷۲۶)

خوکه په زړه يې تراخه پاتې دي — لاېې په سترګو کې خواږه پاتې دي
دمېلمه قدرپښتنانه پېژني — نن چې له ګوانه دي بانه پاتې دي
دتندې ګونجې دې خوږې کړه اشنا — يو خوخبرې مې په زړه پاتې دي

خمکې[1] تـه وګـوره چـې مـخ شوسـره — نورنو زموږ په مینځ کې څه پاتې دي؟
کلـه راغلـی دي کـوڅې تـه ومـه — دا تـښتاني دچادپلــه پــاتې دي
ستاپه دیـدن بـسـې قنایـمـه زه — یو په بدن کـې مـې لبـمـه پاتې دي
لـک نکهـت مـې دوحـشت نـه ګلـه — لاد جـامې خپنـې واتـه پـاتې دي
بس دهـشي په خوب کې خوب ویني تول — څوک دي وینې شوي څوک اوده پاتې دي
خـواره پښتو په یـې پرونـې نـه شـي — لاځـه پکـړي دپښتانه پـاتې دي
وکړه تپوس یې دحـمـزه لـه سـترګو — هغه خبرې چې په خولـه پاتې دي

۱۹۶۱ اپریل ۲۷ـ لولړګې — (۱) اوږمږګي.

(۷۲۷)

لامـې پیکـارلره زلمـې پـاتې دي — هجره لاپټ مې څه زیړګې پاتې دي
څه چې رو عشقه تول مې جارکړه له تا — بس یوڅوسترې اسویلي پاتې دي
بـه دې چـې اوس راتـه ګـلان یـادوي — عمر یې دېرشـه چـې اغزې پـاتې دي
دارتینـو خبرې پرېـږده اشـنا — وایه چې کوم ځای کې سرې پاتې دي
لابـه دې نـورې جفاګـانې زغمـې — څـه ارمانونـه پښتنې پـاتې دي
لاد امید پـه تـصور کې زمـا — یوڅوروبـانه مابـامې پـاتې دي
لږ به تلوتلـوکې راتـه غـوږ کېده — یوځـوخبرې سرسرې پـاتې دي
ستاپه محفل کې چې یورنګ نه راځي — څـه پکې روغ څه لیونې پاتې دي
حمزه لیتون کړه درنګ رنګ ګلونو — لاځوځوږخې دسبرلې پـاتې دي

لولړګې

لاڅـوتنې دګرهوانـه پـاتې دي — وحشته ستاپه زړه کې څه پاتې دي
داخوتـه ولولـه چې سترګوکې دي — نورې خبرې مې په زړه پاتې دي
ستامې ښکلا، زمادې زړه واخیستو — تاسره څه، ماسره څه پاتې دي؟
سوال خومې اورې، خوجواب نه کوې — لابـه خوږوکې دې تراخـه پاتې دي

اوښکې هوښیارې شوې بهرنه راځي — جونه شوې پېغلې په کاله پاتې دي
ستا د اهند کې بانه که نبغ وي څه شي — لاځه شملې د ښبتانه پاتې دي
چې په یو وخت فلک پیماو هغه — مینه کې سره زنګانه پاتې دي
ورلې خواني دې زما څه کړه اشنا — تله دې په خاې، لادې راتله پاتې دي
په خلاص بد وشوه دزړه وینه حمزه — لا د پرغونه مېلمانه پاتې دي

۱۹۶۳ اپریل ۷_لوړګی

نه ولولې نه وسوسې پاتې دي — بس هغه یاد او هغه شپې پاتې دي
ماته له مانه هم د لوی اشنا — وړې خبرې یو دوه درې پاتې دي
ښن یې زما د حال تپوس کړی دی — دا د غمونو سلسلې پاتې دي
تپوس د نوو، د زړو څه کوې؟ — بس خوشه نوې او زړې پاتې دي
حمزه چې تېرې په موسکا ونه خورې — لاخو څه د ېرې مرحلې پاتې دي

دوران مجله/۵ ۲۰۰۵ اکتوبر، ستمبر

[۷۷۰]

لامې خمار له لبې پاتې دي — ځو تندرونه د نورې پاتې دي
د مینې ژوند وې په منزل کې منزل — تل په دې لار کې قافلې پاتې دي
نور به مې څه په بې خودۍ کې وې یاد — بس هغه ښکلې سترګې سرې پاتې دي
مرې که دېوې د انتظار شي، څه شي — لاحوصلې زما د شپې پاتې دي
ترڅو چې رانه شي حصاره به وي — لا دسلګۍ منې حوصلې پاتې دي
ستا ملاقات له ساتلې دې مسا — اوښکې هم ځومره خو دوه درې پاتې دي
نظر مې تکنده غرمې اوبه کړې — چې په بار خو یې لاځولې پاتې دي
د ښېښو نوالې څه پوښتنې کړې — نه ښېښانه نه پښتنې پاتې دي
خور چې وربل د ښېښتې نه وي لا — څه تنواتې څه جرګې پاتې دي
حمزه په عشق کې هم فریب وخو — چې یې تراوسه وسوسې پاتې دي

۱۹۷۰ اګست ۱۱_لوړګی

(۷۷۱)

عقله چې خودې سلسلې پاتې دي — هومره زنځیر او زولنې پاتې دي
ستا التفات چې ورته ست ونه کړ — چرته دي اوښکې پښتنې پاتې دي
لېمه مې تېت خو مضطرب غوندې دي — لا د دیدن مې حوصلې پاتې دي
دکې مې سترګې شوې لا غرېو پاتې دی — بس له بارانه زلزلې پاتې دي
حمزه اشنا به خامخا راشي — نوې سپوږمۍ ته خو لا شپې پاتې دي

(۷۷۲)

ماوې سپرلی شو دوصال دارزانی ورځې دي — وې، خبر نه یې نن سبا خو دګرانی ورځې دي
زلفې کړې جوړې که وراني دخوانی ورځې دي — جوړه خنداکې لکه ګل، دپریشانی ورځې دي
نن چې اشارا ته موسکې دی له امیده خلاف — ښکلې چې بیا راستنې شوې پخوانی ورځې دي
خدایه عطادې هم خالي له استحصاله نه ده — سپرلیه پوه شه چې بوخودې دخانی ورځې دي
ګله زمانوې غزل کې به دېبوې بلې شي — راووره دېدن دطبیعت دروانی ورځې دي
ښبنمې ګل جوړ آیینه دی دخندا اوژړا — داپه اضدادو کې وحدت دحیرانی ورځې دي
زلفې دې ښکلیه په هوادلوبو سره دي — جوړ دخلوت او دوصلت شبستانی ورځې دي
چې هندوبار دهفوستر ګوروته خم لیده شي — زړګیه سخ دې شه ځه ښکلې "درانی" ورځې دي
حمزه خرد کړې اشارې دګلستان په طرف — مینه اصرار کوې چې نن خو صحرانی ورځې دي

۱۹۷۲ مارچ ۲۰ـ لاهور.

(۷۷۳)

ستاکه غمونه مرجونا غوندې دي — اوښکې زما هم بې بها غوندې دي
واعظه وشوه ښې مې داورېدلې — خدایه خبرې دې اشنا غوندې دي
ګله بنوته کله ستر ګوته شي — تاته مې اوښکې وار خطا غوندې دي
لږ خور او ګوره چې پوه شه زه — نن زما سترګې دبل چا غوندې دي
خدایه الفت او که نفرت دی دا — رقیب او یار سره جدا غوندې دي
چې مې رشته دانتظار غوڅوي — ستا موسبده دسپین سبا غوندې دي
جار دې له زلفو لږ تپوس خو کوه — شپې دحمزه توري بلا غوندې دي

(۷۷۴)

اشنا غم جبې چې وي اوس تهري غونډي دي / وعدې خوږې خوږې دي له ماهېرې غونډي دي
لاړ پر شراب مې خپل چې به توبې کړي ډېرې ما / اوس کم شوخو توبې مې هسې ډېرې غونډي دي
نن هم مې زړه داده کړ ستا په "بیا" چې راته تلې / سلګی مې به دې دام کې چې راګیرې غونډي دي
راتــک دې و ناڅاپــه خفــه کیــږه مــه اشــنا / دا اوښکې به کرم توی چې رابرسېرې غونډي دي
دا تــورلې بلاګـــانې ســـتا د زلفو، دلبـــر / قربان چې له حمزه نه راچاپېرې غونډي دي

۱۹۵۳ جنوري ۵ ــ پېښور

(۷۷۵)

بس بې له خپل ځان د بلې مرستې نه منکرې دي / ګوره مسلمانې حوصلې مې قلندرې دي
وورځې دې رابېکه شوې بنوته یې ځه ووېل / ښکارې چې کړلې دې زما سمې خبرې دي
زه چې عاشقي وکوم مقام ته رسولی یم / هلته عقل ځه، چې دالوت سوې وزرې دي
سترګې پښتې به مې وې برندې خو چې پایمه / ځه که د حالاتو راته تل ووروځې ببرې دي
خپلې بورنګی داسې فضا ته رسولی یم / ساز دې اسوېلې دلته سلګی همه سندرې دي
مانه د فطرت که هرېوشي وښکلې تووره ده / روغ به بمه ماچې د وحدت اغوستې زغرې دي
دېرشته داسې لرې چې حمزه وته نژدې وي تل / ډېر داسې نژدې شته چې لاډېر ورځې لرې دي

۱۹۲۷ جولای ۱۲ ــ لوارګی

ســترګې دېې مخیــو چــې ســرشــارې دي / ښکارې خومیخوارې خوخونخوارې دي
دالکــه نــرګس چــې کاپــه تــرخ کتــل / ښـــې دي بلاښـــې دي خوبیمـــارې دي
برندچې کتل زده کړې ایله سترګې شي / اوس غــشــې وېــشــتولره تیـــارې دي
ســترګې دي دســترګوته شــرمېږي نــه / وایــه چــې ښاپوهې کـه هوښـیارې دي؟
پوهه دي کړې سترګې، دزړه سترګې شوې / اوښکې مې واپس شوې حیادارې دي
نــوی بـــرلی دی دخـــوانی ایلـــه / لاپــې د دیــدن ورځـــې بـــبارې دي
وصـــل حمـــزه کېږې خـــوبې لاړې شـــه / لاړې دخوبـــــانوچې بـــــې لاړې دي

(۷۷۷)

د مينې لارې درته څه وايم چې څه لارې دي — بس خو چې څوک دې پکې ورک هغه به نه لارې دي
ښاد لدم نخښې مې بس دي که ته باتې نه شوې — ښدې هر چاته پس له دې زما د زړه لارې دي
ستا د کاکل د کږ ليچونو د گرځندو سوا — تيرې هر لورې ته په سمه هم په غره لارې دي
هغه هم وخت و چې زمانه به پې مخ پټوو — دغه هم وخت دی چې نن ماته په کاته لارې دي
مهر(۱) چې ماتړې په کږې "وليدو گل" دې اوسې — دی چې پرې يون کوې هم دا د ښښانه لارې دي
تنگ و غيرت نه دې خلاف د مينې څه وکړمه — ښکليه خفه مه شه هم دا د ژوندانه لارې دي
لکه سراب وې وچې کلکې چه ورتلمه پرې زه — اوس چې په بېرته پرې راځم اوبه لوبه لارې دي
هام چې په مينه کې بې لارې بې گودره نه شې — چې ډېرې ډېرې د پې مخبو د کاته لارې دي
په پښتو نواله به تبندک چرې ونه خورې حمزه — په پښتو سترگو پرې تېرېږه د کاله لارې دي

۱۹۴۶ اپريل ۱۶ _ پېښه، افغانستان. (۱) مهرگل حاکم شينوار، کړی افغانستان.

(۷۷۸)

ره ستا زلفان پرېشان سوري دي — ستا د مخ د نمر نه لړزان سوري دي
اې چې دې پرتو د تن هم ستا رنا — ستا رنا هم ستا په ارمان سوري دي
آينه مکان په کې پرتو شي عکس — سوري عکس، او عکس حيران سوري دي
ستا چې چاته مخ شي عصيان چرته دی — نمر په مخ کې تل گرېزان سوري دي
ستا لمن اشنا که دا اسمان نه دی — کوم طرف غايب د اسمان سوري دي
ستا دې شملې همايوني نه خار(۱) — ستا د مېږو پر سليمان سوري دي
سر د حمزه ستا له سوريو خار(۲) دی — ستا د سر نه څو که قربان سوري دي

(۱) ار زو. (۲) آر زو.

(۷۷۹)

بل د تيرو نښته اثر سوري دي — داد رنا گانو ثمر سوري دي
دی په وجهد و مې چې ماشوم د زړه — دا څو گله ستا د نظر سوری دي
نښته حقيقت کې تيرې نښته دی — گوره د هر تن نه بهر سوري دي
اوس به د بېلتون لوغړن خوب وکا — راغله په خندا د سحر سوري دي

زلفې دې راتاو شوې د سپین مخ په تاو  نمرنه په لړزان په خطر سوري دي
هم خ نښته پرتوې په آیین کې دی  سیوري بشر. گوره بشر سوري دي
خغل، چې شو حمزه دلطافت په لور  ستا په کثافت کې هنرسوري دي

۱) ارزغل

سترگې دې پیالې نه دې میخواري دي  ښکاري خه ساده سادہ مې چوري دي
سترگې د اشنا بدلې ښکارې نن  خیر دې دې نن تورې په مانورې دي
خنم خو گردش دفلک لاته دی  خم خه شو؟ پیالې ولې نسکورې دي؟
نن چې پردې ښکارې، پرون خنگه وې  دادې هغه سترگې؟ که دانورې دي؟
یو رمه رفعت ته دکاکل خیال  پرې به وخم سترگې په مانورې دي
اوښکې استقبال ته خې، سلگې زما  خولې وته راتلی نه شي کمزورې دي
خار، دهغه قهر له تا وایه اوس  ستا که د حمزه خبرې سپورې دي

[۷۸۱]

وایې اشنا د شگیانو خبرې شورې دي  پوره شه د الفت د لیونو خبرې شورې دي
دا لره قصه زما د غم وه چې دې واوریده  مه کره بیره، ودربېږه بیو شو خبرې نورې دي
ولې یکې ستا هغه خواږه لوزونه نه ښکاري  نن خو دې دسترگویښتنو خبرې نورې دي
بې نه د الفت لکه نینه هسې په تیښته یې  ما خوړ نه دې د سوځیدو خبرې نورې دي
راز د مینې زده کره نرې چې سوځې او گډیږې هم  دادې اوکه نه ؟ د سپیلنو خبرې نورې دي
پرېږده یې لوتې واعظه وخت دی دبلبل اوگل  بیا به اورو نن د اوریدو خبرې نورې دي
موسک ر د رقیب سره په تریو تندې مې پوهه شو  وې چې په تاباندې مې یېرزو خبرې نورې دي
خه یې وې قاصده، وې چې ماته جواب وروسید؟  و ... ه بس د تلو او نه راتلو خبرې نورې دي
بنه دې ستا نازونه، خولالیه زور استاذ یمه  مه تېرباسه مادتېروېستو خبرې نورې دي
خه به د پرومیو چې سالې راته راگورې نه  ستا دپیمانو او دلېمو خبرې نورې دي
گوره حمزه خوله په خوله چې نه شې د رقیب سره  تا نه دې ښکاره چې د سرو خبرې نورې دي

(۷۸۲)

ستاکه په تندي کې سجدې د پیرې دي — هر خواته قبله شته کعبې د پیرې دي
سوی د زړګي، نم د سترګو، زېږ بشر — ما سره ستا دانخښې دري د پیرې دي
ستا دغم همدم مې اوس ختمیږي جوړ — نم شو کم د سترګو چې سرې د پیرې دي
زغم د زنځیر بویه پښتون جذبه ته — وګنې چې کښېنه ګجرې د پیرې دي
وار د تروږمې دی سپوږمۍ مخیه لا — غم نشته راتلو لره شپې د پیرې دي
سوال درنه اشنا د لیو تسوب کوم — سوال د میرو پر پرده میرې د پیرې دي
هېڅ به مې خواهش د ژوندون کم نه شي — تا سره د درو غو نیتې د پیرې دي
ګران به حمزه خو مره و منزل د عشق — تاکړې د سترو پېښې د پیرې دي

۱۹۶۳ اکتوبر ۲۰ ــ دوره اسماعیل خان.

(۷۸۳)

چرته خې شکمن شومه، ربیاره په ماتېږي دي — دغه مرحلې خو په خو واره په ماتېږي دي
زه یې منتظر د واپسۍ یم خو واپس نه شوې — د پرې لسافلې په دغې لاره په ماتېږي دي
زه د ژوندانه په کشالو کې څه شا پوه نه یم — وېوښته په عشق کې چه هو ښیاره په ماتېږي دي
وسوم لو ځرن شومه چې ستا پرده ساتله ما — دا پټې لمبې خو ستا د یاره په ماتېږي دي
بې د یار د ذکره په ګوښه کې مې بل کار نه و — شېې ور ځې واعظه څه بېکاره په ماتېږي دي
خانده چې خو خاندې! خو ملګریه ته خبر څه یې — ستا یرې څه که تېرې دي خو یاره په چاتېږي دي
خدای دې زما سرې لوښکې لرې که په هر خای یمه — نه ده چې شپې ور ځې بې بهاره په ماتېږي دي
وایې چې تېرېږي وار په وار سره لمحې د ژوند — جار له خپله جذبه چې بې واره په ماتېږي دي
نولې رسوایې د زمانې په ما حمزه باندې — بودتسا د بهاره ده داره په ماتېږي دي

(۷۸۴)

ای عشقه مختاره، چې تاراله چشمان راکړي دي — خو د خاک د خپل قدم بښکلې جانان راکړي دي
اشنا دې بې نیاز وي د نا بست په هوا مست — پاک رب چې اسوېلې لکه طوفان راکړي دي
هر کانې د تهمت راته ګوهر دی د مراد — دا ګران غمونه یار څنګه ارزان راکړي دي
ستا بو دبهدن و نورو رنګینو ته کرمه کور — کاته یې د تصویر غوندې حیران راکړي دي
حمزه د بهار بشر مې اوسه ګل پیغمبري — دا غمونه چې یې ما له د هجران راکړي دي

(ا) از رلو.

(۷۸۵)

ستا په مینه کې چې تېرې خوامحې دي
هم هغه مې د ژوند خلندې لمحې دي

پر کالي د ژوند به څه پوښتې هغه مه
عبارت ترینه پر دوه خوږې جونې دي

کم لیچونه هم د حسن ترجمان وي
چې د ښکلیو د وربل لازې کږې دي

جوراحساس مې داضدادوناپوهې وه
ستاخوږې ترخې، همه ترخې خوږې دي

اشناستادمه رانګ او تنګ له فکره
څه بیداري څه پر کالي زمانې دي

نن وسواس راسره مل کړو ستا خبرو
دومره دېرې خوږې لګي چې ترخې دي

د وصال او انتظار تر مینځ پر حال دی
چې مې شپې یکې نه لنډې نه اوږدې دي

چې همت مې بوم نهېده له اوږدې لارې
په تلسیم پې ماښاکلې مرحلې دي

دا رښا د ستاوون ده که بیار راغی
حمزه ګوره دېرې بلې دي که مړې دي؟

(۷۸۲)

څو چې ساده دي، دومره پخې دي
نه کچه کیږي، سترګې یې غلې دي

چې تصور شته د هغو سترګو
لاسحرنه دی، بلې دیوې دي

زاړه یادونه، دي تل ژوندي وي
چې دمینو پرې خواني شپې دي

نن چې سالي دی د پر مهربانه
دبې باکیومې دا صلې دي

خسب مې د سترګو انتظار یو ور
هم مې خوبونه، هم شوګیرې دي

ښکلاپې ژونده، ژوند پې ښکلانه
عبث خبرې، خوشې لیکې دي

د عشق محل کې، د تراو څه کار؟
پرېږده چې اوښکې، بهېږي ښې دي

زړو یادونو، لړخوراپیښ شي
زمانه هېرې د ځواني شپې دي

کړې دې مړې سترګې ژوندي ستونه
پښتني سترګې زمامړې دي

سالي دی، جام دی او میخانه ده
مطلب یې یو دی خبرې درې دي

دعا مې کړې، د تا د ژوند وه
هغه نېرې دي لارا پې دي

له خانه تللیه که خان ته راغلې
بیا نه منزل شته نه فاصلې دي

زړې مې بهرته، جوړ نوې کیږي
کاته یې نوې، سترګې زړې دي

د دنیا ښکلې، ماپېژندلې
بس تشبیهات او استعارې دي

به هغه سترګو چې غلط نه شي — دیداري نه، دکې نشي دي
هومره سوا دي، په لنډیارۍ کې — چې ښکلي زلفې، څومره اوږدې دي
حمزه بدل شو، جهان بدل شو — خو هغه سترګې، هم هغسې دي

**(۷۸۷)**

زاهده ته به دې خفه وې چې برقعې ورکې دي — اوس خویه دې شه لږ خوشحال چې لوټې ورکې دي
چې وې زمري په هوس سترګو، په لټون بې یمه — پوښتنې ډېرې بې کوم خوښتنې ورکې دي
چې زما شبو بیدارولې په صد کور دزلفو — اوس هغه خوانې خوبولې شوګیرې ورکې دي
چرته به اور کې دشرابو سرخیدلې نه وې؟ — ځیرمه کوم ورپسې ډېره خوتوبې ورکې دي
یم په تلاش بې چې جنون مې کجه پاتې نه شي — ورک مې اشناګروچې زمانه زولنې ورکې دي
چې دهوس په لسه تلل، په مرحلو کې شو ورک — چې عاشقان وو په هغو کې مرحلې ورکې دي
عمرونه تېر شي دهشې په نور لوسپین نه شي پوا — دچانه ورځې ورکې شوې له چاشپې ورکې دي
دمیخانې په عطانن زاهدان پوه شول ایله — چانه شانه، چانه مسواک، چانه تسبې ورکې دي
عشقه، پوه اندېښنه ته هم بې دعقل په خبر — نه بې بیاهم چې خودې تولې اندېښنې ورکې دي
سالې داستاد نمکې مخ دی اثر که شه دي — چې دم په دم په خوله راتلې هغه توبې ورکې دي
اوس مې ایله سترګې راډکې شي چې تاووینم — مینه شوه خوانه دباران هسې شپې ورکې دي
په نورد نظر به دحمزه، چې ستار خار کړي پیدا — وایه اشناولې دي اوس هغه خولې ورکې دي

**(۷۸۸)**

امکان مې والعې کړو واقعات راته موسکې دي — ماځال کړو هسې جورچې محالات راته موسکې دي
ناسېر دي حقایق چې دخېل ذات راته موسکې دي — آیین دمستقبل کې خپل صفات راته موسکې دي
تسخیر دکاینات چې مقدرزما په شوم و — رازونه داجزاء دکاینات راته موسکې دي
خالق په حقیقت کې دمکان اوزمان زه یم — ناطې راته بربښنا کوي، لمحات راته موسکې دي
پیکر مې دجور د محبت په تاو کړو ویلې — فطرت مې چاکرې کوي حالات راته موسکې دي
بنا هست مې په ورو ورو په پورتنې عالم خورېږي — بروږنېږي خوملک دسمارات راته موسکې دي
لبکرې دکثرت راته تسلیم شوې چې "زه" زه شوم — توحید چې خلاوکړه اضافات راته موسکې دي
حمزه چې په خپل خان کې زه دخان په تماشه یم — مضمر حقیقتونه دخپل ذات راته موسکې دي

(۷۸۹)

لوړې ژورې مې په سترګو کې دي — کندې کپرې مې په سترګو کې دي
سترګې مې سترګو ته راپورته خو کړه — د زړه خبرې مې په سترګو کې دي
لورې د حسن دې روزې شه اشنا — د عشق ژورې مې په سترګو کې دي
دا د ځواني څه روستني سلګۍ — راغلې سندرې مې په سترګو کې دي
ستا د نظر هرې ادا ته رسي — داسې وزرې مې په سترګو کې دي
عشقه فطرت دې د نکهت راکړي — ګنې کمرې مې په سترګو کې دي
پاس چې اغیار راته کتلی نه شي — جوړې بمبرې مې په سترګو کې دي
وایم په زړه کې وونړدي به شمه — څه لرې لرې مې په سترګو کې دي
حمزه په طمع تیتې نه شوې چرې — چې سترې سترې مې په سترګو کې دي

۱۹۲۷ اپریل ۳۰ ـ لوارګی.

(۷۹۰)

ښتنې سترګې یو دتا سترګې دي — ګنې محفل کې خو بلا سترګې دي
وار مې خطا و چې مې سوال ونه که — دا وار خطا ولې د تا سترګې دي
وواېه ته څوک یې او څوک یمه زه — چې زما ستا او ستا زما سترګې دي
ځان نه به ګورمه دتا په نظر — دتا په سترګو کې زما سترګې دي
اوس چې ناجانه غوندې ګورې راته — هغه وې نورې او که دا سترګې دي
دا نمر د صبح په شپه د چا ښکاره شو — چې همه سترګې د سبا سترګې دي
چې په وقار سره یا نه کړې ښکته — بس دغه سترګې بې بها سترګې دي
وار د کتو دې نه کتو راکړی — ګنې زما خو وار خطا سترګې دي
ما په جفا مجبوروولی نه شې — ستا که څو ښکلیه بې وفا سترګې دي
حمزه هر دم دی تجدد هستی — هغه جداوې، دا جدا سترګې دي

۱۹۶۶ جون ۷ ـ لوارګی

مالیـدلي خـدای زده دچاسـترگې دي — نن چې زماسـترگې زماسـترگې دي
سترگې خو یو سترگې همه سترگی دی — سترگې د اشنا مې جدا سترگی دی
خیر کـه زما ،وایـه خطاســترگې دي — چرته خطا؟ ستاچې رماسترگې دي
گـوره بـلا حـسن داشنا شـوډېر — څنگـه بلا ،زلفـې بلاسـترگې دي
گـوزه دشبگیر وهلـې سـترگې هـم — تالیـــدلي یودسباســـترگې دي
اوس یکې ښکاربږي نه اقرار ،نه لوظ — وایه چې داسـا ،که دچاسـترگې دي؟
سـبرې بـه شـې سـتاپه دیـدن دا ولـې — سبرې په کوم وخت د گداسترگې دي
نـور کـه شـو درپـورې دچادی قصـور — یور مې چې ای ښکلیه په تاسترگې دي
ماوتـه موسـکی چـې دتاسـترگې دي — بـس نـو دتاسـترگې زماسـترگې دي
ماتـه هـر یوشـې دنـرې سـترگې کـا — څنگـه دې دوه سـترگې بلاسـترگې دي
سـترگویې چـې سـتالیدلي سـترگې دي — خدایږو چې حمزه ته عطاسـترگې دي

خدای چې درکړې عتابې سترگې دي — په هرحالت کې عقابې سترگې دي
چې دزړه وینې یې نشه ماتوي — هغه دښکلیو شرابې سترگې دي
سترگې مې ستاله تصوره اشنا — دتادسـترگوجوابې سـترگې دي
زمادزړه غمونه تول وشمېري — څه بې حسابه حسابې سترگې دي
عجیبه داچې یې کاته وې د. — که په ظاهر کې مرغابې سترگې دي
دزړه تارونه په شهباز دېنـر — وهي بې دریغه ربابې سترگې دي
حمزه چې هېڅ یکې لوستی نه شمه — داسې دښکلیو کتابې سترگې دي

۱۹۷۱،اپریل ۲٦_لواړگی.

**(۷۹۳)**

خوی دهند کبانزخه په کارچې پښتنې سترګې دي    چې اشنا نه شوي لاتراوسه مېلمنې سترګې دي

د سوال جواب دی پکې بیا نه مونده زما نظره    چې نه ربهږي، نه ترټیهږي پښتنې سترګې دي

ای د مجلس ملګرو، یو دوه چې خطا دي زما    چې تري داشعې هم شرمهږي هغه دري سترګې دي

زه د فطرت لـه حېثـه وږی زړه پـه‌دلی نـه یم    درته چا وې چې په دیدن زما مرې سترګې دي

جورخه پخې شوي چې پېغام پکې دروغښته اوس    اوګټې اوس هم کچه کېږي هغه مرې سترګې دي

په ډک محفل کې چې په مینه راکتلي وو تا    لـه هغه رخته د یارانو راپسې سترګو دي

ماکره ولجه د تورو شیو خنې کجل د تبارو    اوس تصور ته د اشنا زما وږې سترګې دي

نوی انداز یې هم په ما اوس څه اثر نه کوي    ورسره نـه پـه بلـد هغـه زرې سترګې دي

حمزه چې یار یې یو خل ولید بیا ونه غوښتي    خومره بینا لوخومره بېې دغه رندې سترګې دي

۱۹۶٦، نومبر۵ ـ پېښور.

جـې پـه محاسـته د ســلف تلـي دي    نـه خـوري تېـنـدک چې کـوم طـرف تلـي دي

ښن دبنو لاندې مې نـه کسې اشنا    غـشي پـه لـور د کـوم هـدف تلـي دي

جنـګ دالفـت نـه ملاترلـي حـواس    څـه پـه مرانـه صـف پـه صـف تلـي دي

داخولـــت دی چاپـه عـمر وکرو دیـد    څـوک ورلـه پورتـه پـه رف رف تلـي دي

حمـزه پـه سـترګو یـې تلـي ښـکلوه    څـوک چـې ګلـشن نـه دنجـف تلـي دي

**(۷۹۵)**

دا څنګه خوږ یې سوی دی، څه خوږې لوندې لیمې دي    ستا اور د اتکو د مینې تکندې غرمې دي

طوفان شي چې د ورزرونه یو مقصدو ته روان شي    داګر چې درته ښکارې دا وږې وږې ذرې دي

بو ونهږې اوس چې تود مې دککو چرته وانخلي    شاید چې ستا د حسن پېغلې شوې بلوشې دي

سوداکې ستا د زلفو چې زه شپو به وم اخیستی    اوس مایه سراخیستي هغه توري ورځې شپې دي

ښکالوشې په تیاروکې د ارمان چې شي ساه لنډه    بس د      څوک وایې چې ستا شپې ولې اوږدې دي؟

یو اورېمه د مینې په خاطرکې په دې ځای شم    اوریه د اور قاتلې هم په اور باندې تودې دي

ستا نمرد تصور مې په فضا د زړه کې نښته    داځکه خوزما د اوښکو ستوري وو بوې سرې دي

... کې مېند د عشق که وهرخوخولي ته رانغلی    ګرداب شوي په بهیر کې چه مې اوښکې پښتنې دي

دستا په ښکلاچې دا د ژوند یله نامه ده    بې دي نه بل تعریف د وږي خبرې د وږي خولې دي

(۷۹۶)

تل به کړي الوت چې دي وزرې حوصلې دي — فتح به وي ستا چې دي لښکرې حوصلې دي
خمکه يې رنښتيا وي چې په بله وارولـه — چاوتـه عطـا چـې غابـورې حوصـلې دي
پام کوه چې خان دې به ورو کیږو کې شمارنه کړې — ستر به شي ورو کيه که دي سترې حوصلې دي
ســاز د کاينـات يـې منتظـر د غـولــو — پټې ستا به زره کې چې سندرې حوصلې دي
ايه چې نامه به وي د ښخوېرې چا ايښې — زه چې وتـه ګورمـه خـو نـرې حوصـلې دي
ښـتي مـې لـه مخـې بلاګـانې د حـالاتو — ګـوره بدرګـه مـې سـرېرې حوصـلې دي
نفـرتي د دنيـا او د عقبـى شـوې بـې اثـره — ماسـره ملګـرې قلنـدرې حوصـلې دي
وي دي حوادث په توره برېښ کې به دې خه شي — لم به مخ په وراندې چې مې زغرې حوصلې دي
سولې به همزه که وي د بېرې د بېرې غمونه — مانـه عطـا شـوې اور د سـرې حوصـلې دي

۱۹۷۰ اکتوبر ۱۰ _ کابل

(۷۹۷)

دا ستا د يـو ديـدن پـه ارمـانو راغلي دي — دا واره منفعـل پـه بـدو کـړو راغلـي دي
زما پـه ډکو سترګو کـې کـم ليچ تـه د نظـر — ستا در کې موسکې غشې د جلوو راغلي دي
اې درېغـه کـه وي يـو يـکې مسلم خراسـانې — ښولې کـه درتـه ډېر ډېـښتو راغلـې دي
اوس بېرتـه وړنـه بويـه داسـرار او د روازې — درشل پورې چې ستا د دروازو راغلي دي
زړګيه ديدن غوارې خويه شمبر کې يې؛ دچا؟ — لږ شمېر کړه پتنګان د ديدن، څو راغلي دي
دنيا شوه د هغو هم يې برزخ هم يې جنت — زمکـه پـه هـوا کـه پـه اوبـو راغلي دي
ناپوهـه غرېوه، نښـه دلتـه کـار د زلزلـو — وارونه اوس د نياز او لـوېلو راغلـي دي
وختونه سرګردان مې په مطلب کې د رڼا — دې شپو تـه تـوانې پـه جرګـو راغلـي دي
همزه خومره به به وي په دې درجې شي قربان — دا اوښکې دي که ډُرجې په شپو راغلي دي

۱۹۲۹ مارچ ۳ _ دربار آنحضرت ﷺ مدينه منوره

(۷۹۸)

نـوري قـصې وايـه چـې اسـانې دي — پرهـوده دالفـت خبـرې ګرانـې دي
رامې شي لمونه د ديدن په وخت — اوښـکې څـه ناپوهـه رقيبـانې دي
خدايږو چې کافر خومې صهبا نه کا — لاخوزما اوښـکې مـسلمانې دي

ستر گي مي لوستی شي دفطرت کتاب    مـخ تـه داشـناچي شي اميـاني دي
ستادجلب شوق يې وي راپېښې شي    دامي کـه سـلګی دي خومهماني دي
ګران شوهـسې ستادوصل مې ولي    تـل چې دعاشـق ويني ارزانـي دي
غـم دهجريــو رتلي يـل جـواب    داسـې مـرض داسـې دوايـاني دي
بـکاري چې حمزه پـه زرېدو يې اوس    لادي چې جذبې لـه پخـوا خـواني دي

۱۹۵۱اپريل ۱۰ پېښور.

## (۷۹۹)

جنـګ د پيمانو د ده نوشـر ترانـې دي    لرزند چې هوشونه وي ورداني ميخاني دي
شـمع ده ګـل شـوي خـو فريـب دحسـن ګـوره    لـري لاسـحر دی ورتـه جمـع پروانـې دي
نمرد شباب لاز پـه غـر غـره شـو کـه بې لـولي    باتې مې لـمو کې څـه يې نـوره افسانې دي
پوهه دي کره هوش چې خبردار وي لـه تيندکـه    دلتـه پـه هر ګـام کې صـراحي او پيمانې دي
غـم د ماسـوی خـو بـو د ميـو پـه اور سـوځي    مينـې جوړي کړي څـنګـه پـاکې بهانې دي
دومره خـو راوګـوره چې تاتـه شـي معلومـه    سـاروميې نظر چې پـه ماکړي څـه کانې دي
ولار دي شـر خطـا پـه خولـه دي راغلـه قسـونه    دلتـه څـو خبـرې د دروغـو نـښانې دي
پـه شـرلـه معبـاردي دبنايـست چې مکـمل شـو    کې دي بـوه باخـه خالونـه باتې مې داني دي
زه حمزه چې پورنه کـتی نـه شم خورند سـر يم    دلتـه پـه قـدم قـدم دبـکليو آسـتانې دي

دپلار:دی.

خدای زده پيداشوي چې دجاپه دعاجای دي    خبلـه يومرض اوهـم بخبلـه دوا چـای دي
لري صـبوحي کره چې نن مانه قضاچای دي    راوره سالي.اصل کې خمارنه عطاچای دي
زماتـه کـه نشـه يې ده لـه پويلـه زاهـده خـو    بيـاهم ناروا شـول تماکوا ورواچـای دي
وايي چې دوه دري صدی چې عمردکارغانووي    داخوهم پـه دي چې ددې تولو غـذاچای دي
بنې دي چنی.خوره يې:خوږوسکي يې ساته مدام    ګرانې پـه وطن کې دهرې نن اوسـاچای دي
لاز چې شي بازار ته نوريه هيڅ په نظر درنه شي    هرخواته چې ګورې حقـه چای دي اوداچای دي
هرڅـه رانـه هيروويـه سـحرکې بې دچايوتـه    ځيـلي پـه روژه کې ياره مابه خطاچای دي

بدنه دي نـوارهم، چي تيري دفکرماتي تـا — يـاددي دپاسـه هـم دذهـن رناچـاى دي
پټي دبني ادم کله خفه کله خوشحالي کا — څه شعبده بـازي سـحرگري بلاچـاى دي

ترمي پري دهن دخماراوسه په کوښنوکي
تېزي په تاثيرکي له کوښنوسوا چاى دي

[۸۰۱]

څوک چه مې غم په انتها ښکاري — لاړي کـرم پـه ابتـدا ښـکاري
چين په جبين شي چي دي ستايمه زه — پـه هـر انـداز کـي دي رياښـکاري
چي په خنـدا کـوي کـلام راسـره — لامـې دوران د ابـتلا ښـکاري
ښندي راوشوي چي مېن شوم په تا — وهمـي دنيـا راتـه رښتيا ښـکاري
دُرچـي د اوښـکو راوباسـې د زړه — غـم د پـي مخومرجوناښـکاري
سترګي لـه يـويلې پناه بنـي دي — يـو دي مـېن کـه دوه جدا ښـکاري
کـم بـنـه وادي خلـم د سـترګو بـلا — د پـري اودي يکـي بـلا ښـکاري
نـم مـې د زړه نـه شـو لپمـو تـه روان — راز دي پـه لاړه د افـشا ښـکاري
دانتظـار دي خنکـدن شـو حمـزه — ديـوه سـلګى کـوي سـبا ښـکاري

[۸۰۲]

جانه مېن لکه تصويريه بي بصرښکاري — مانـه هـمـه نظرنظر، بصربـصـرښکاري
هريـوبلري شـولـبه زمـادزړه دفـضا — تانـه اشـناتوانايي دخپـل نظرښـکاري
له خپله حسنه مې پرده چي دنسبت کره[۱] لري — اوس نوزمايـه انتظـارکي منتظرښـکاري
زاهده دومره دباطن به دنياګى کي شوي ورک — چي اوس عـالم درتـه دخانـه نـه بهرښکاري
منمـه تانـه داجهـان بـه رهګفرښـکاري — مانـه خومـسته اشـاره ديونظرښـکاري
دسپرلي نه بي خبره ر· وبوى کي ورکه — جوړي خرد دي د وجدان کوه پـه سرښکاري
رامخامخ چي شي لـه شرمه ليلوواخلي — لاتکميـل پـه مرحلـوکي دالمرښـکاري
عجيبه داچي نن مې تنده دشوګيرده سوا — جوړدماضي نه راستون شوى کوم سحرښکاري
دسـرولدويهرزونه وي تـل ښنـده حمـزه — دتوقـع ونـه دي تولـه بـې ثمرسـکاري

[۱] ار: کړه.

[۸۰۳]

خوکه مې خپر دزړه په ښکار هغه صنم ښکاري — دخدای کرم دی چې مې لا په زړه کې دم ښکاري
ستا تغافل زما په زړه کې التفات وګرځي — په آیینه کې اپوته لیکلی سم ښکاري
ژوند د هغه به داضداد وپه تیرو کې دي تل — چې د وجود په مقابل ورته عدم ښکاري
ستا په کوڅه چې اشنا نخښې دخپل پل ویني — هر یو مهن ته همه دادخپل قدم ښکاري
د پردي سنم شه چې له جذبه مې کړ لیچ وخي — راته سم وګوره چې سوزمې دزړه کم ښکاري
ښ درلیب په خوله اشنا خان ته پللی یمه — زړ ګیه پوه شه چې بې دانوی کرم ښکاري
همدمه داچې دسحر په ګلو پرخه وینې — دا دحمزه غونډي مهن دستر ګونم ښکاري

۱۹۷۲ دسمبر ۱ پېښور.

وي به که تاته دا جهان ښکاري — ماتــه خوپرهغــه اوخــان ښکاري
دزړه تخلیـــق دي جهانونـــه همـــه — دزړه نقشه کې هرجهان ښکاري
چرتـه کمـی چې وي دپـاکې مینې — هلتـه دحـسن امتحـان ښکاري
تـه چې صـورت دآیینې تـه یې خیر — کلـه بـه تاتـه پکې خـان ښکاري
خـار دي اشنـاله رنګارنـګ خوبونـو — ماتـه هـم داجهـان روان ښکاري
ستا دوصـال خبـره ګرانـه نـه ده — سـرچې شنـدل راتـه اسـان ښکاري
خــه دی عالم؟ خوستا دزلفو اشنـا — یومـلـــل ښـکلی جهـان ښکاري
ښـکلیـه نـه ترهـه نـه بـورنـد،لـري تـه — داخـو خوبونـه دافغـان ښکاري
حمـزه چې شـه کـوي رضـا یمـه پـري — هـره ادایـې امتحـان ښکاري

() ار: مولی.

[۸۰۵]

ګران ورته خان چې لـه جهان ښکاري — ماته خو تول عمر په "خان" ښکاري
منم غـرور بـه دي پـه خـای وي اشنـا — خوتـل بـه ګوینـی درتـه خان ښکاري
زمـا د مینـې ورې ســترګې جذبـه — داسې ژوندون خو راته ګران ښکاري

هر یو انداز یې څو ارخونه لري ‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌ هره ادا یې امتحان ښکاري
داسې ښکاره نه وي خاوند د نشان ‌‌‌‌‌‌‌‌‌ لکه ښکاره چې بې نشان ښکاري
زه یې کرم خبلې زړبودی نه خبر ‌‌‌‌‌‌‌‌‌ دا پسرلی خو راته خوان ښکاري
دتللي غم به څه سایه پاتې وي ‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌ کور چې د زړه راته ودان ښکاري
دا به مېن وي بل به هېڅوک نه وي ‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌ ار چې په خان نه په جهان راشي
حمزه پخپله به بهر راشي ‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌ بس پسرلی خو را روان ښکاري

۱۹۶۵،جنوري۱۷ـ ارگی

په پښتنې وینه زرغون ښکاري ‌‌‌‌‌‌‌‌ چې په دې بن کې زړه رابڼکون ښکاري
د پښتونخوا په زړه کې ناست یمه زه ‌‌‌‌‌‌‌‌ چې په رگ رگ کې مې ژوندون ښکاري
"تن" د پښتون نوې لهجه کړه پیدا ‌‌‌‌‌‌‌‌ ورته "سبا" او هم "پرون" ښکاري
د ملیت جنونه خمار دې شمه ‌‌‌‌‌‌‌‌‌‌ چې هر افغان دې افلاطون ښکاري
جوړ به ماحول یې کړي موسکا د گلو ‌‌‌‌‌‌‌‌ دا برکت د زړه چاودون ښکاري
د پښتنې فضا د ژوند نبضونه ‌‌‌‌‌‌‌‌ تونده اوتاوده لکه پښتون ښکاري
لاس یې وروا چرو گریوان ته د وخت ‌‌‌‌‌‌‌‌ څومره هوښیار د غمه مجنون ښکاري
راغلي له ستوریو نه موسکا شو کوي ‌‌‌‌‌‌‌‌ خبر زما اوښکې په شبخون ښکاري
"تن" لکه "سن" چې دی، بخوابه نه و ‌‌‌‌‌‌‌‌ یکې "سبا" او هم "پرون" ښکاري
غم د جرس رانږدې کېږي حمزه ‌‌‌‌‌‌‌‌ زمونږ کاروان بېرته راستون ښکاري

۱۹۵۷،اگست،۲۱ـ کابل.

چې اضطراب مې دلبمو ښکاري ‌‌‌‌‌‌‌‌ زړه یکې ستا په درز هدو ښکاري
نخبه د زړه دماتېدو خو نه ده؟ ‌‌‌‌‌‌‌‌ چې مې زېږگې په کمېدو ښکاري
آیینه گوري اسویلي مه کوه ‌‌‌‌‌‌‌‌ چې یې جوهر په ژړېدو ښکاري
چې بربوکی ورته کاروان لېده شي ‌‌‌‌‌‌‌‌ داسې خرد دلبونو ښکاري

سپیني مې مرې شولې دتندې په یاد ــ دک چې سراب دیربوکوښکاري
دښښتنې حسن به خوښ شمه اوس ــ په هرانداز کې مې ښښتوښکاري
سعالي چې سترګې ختې وارولې ــ خیرشه چې ډک جامونه څوښکاري
هره څپره کې ده څپره دظهیر(۱) ــ نن چې څپرې دخیروښکاري
زلمي ستونه کړي زلمي وختونه ــ چې مستقبل په موسهدوښکاري
حمزه بهار لا د خیر نه نه ځي ــ ډېرې غوټۍ په غوړېدوښکاري

۱۲مي ۱۹۶۰ع. جمرود. (۱) دظهیر د ودې په موقع.

(۸۰۸)

ستاچې ککې په موسهدو ښکاري ــ داغ مې دزړه په خلېدو ښکاري
سپرلي لمدې بې خوده شپې راوړي ــ اوښکې زما په وچېدوښکاري
اوښکې په سترګوکې راوب شوې زما ــ ستا اشاري په دوبېدوښکاري
اوس به دزړه وینه ګیلې نه کوي ــ اوښکې زما په کمېدوښکاري
بیاکه موسکې شې دمرهم نه دې خار(۱) ــ دزړه پرهر په رغېدوښکاري
شوې زرغونې داسوېلو وربخې ــ یادونه ستا په وریدوښکاري
په زنګدن(۱)، کې تېرېدلې سلګې ــ نوم ته د یار په رسېدوښکاري
چې سره مخ شې سترګې اوړې ولې ــ څه به کوشش دپټېدوښکاري
ښښتنې سترګې دښایست په قدم ــ مه شه رندې په ټپنېدوښکاري
اوس چې همت یې په خوانۍ راغلو ــ خیرکه حمزه په زړېدوښکاري

۱۹۵۲ مارچ ۲ سېخکي.

چې پسرلی په موسهدوښکاري ــ ښکلې خوانۍ په ویښېدوښکاري
پیاله په سرګلونه بیاراغلل ــ دزړه دفتر په خورېدوښکاري
پیاله دګل شوه دَ شبنم نه ډکه ــ داغ دلاله په دوبېدوښکاري

دنرگسي سترګو په ست مې قسم — پیالــه لــه ما پــه کړې دو بنــکاري
زور د ګلانوشوا شنارا شــــــــــــه — ســترګې زما پــه مړې دو بنــکاري
پیالــه زما شــوه دنګهت نــه ډکــه — نــشه زما پــه کمې دو بنــکاري
خریدار کم شو حمزه د ټرشو ګلان — پــه دوړې دو، پــه رژې دو بنــکاري

۱۹۵۵ فروري ۲۴ ـ پېښور

بــه چې زاهد تــه هغــه نــه ښــکاري — نور پــه وجــود کې ورتــه څــه ښــکاري
زلفې هنــد کې دي کړلېچونــه لــري — بانــه دي نــیغ دي پــښتانه ښــکاري
دښــکليو خوی دښــا پېرو غوندې وي — اوس به ښکار یې، اوس به نه ښکاري
نــن د محفــل شــمع ســلګې کانــدي — څــه خــو پراس دچاپــه زړه ښــکاري
زبــه چې نــه ســاتې پــښتون، بده ده — چې ســاتې زبــه، څومره ښــه ښــکاري
ورې مــــن کــــه د دیـــدن و د یـــار — دتغافــل نــه یــې مــاره ښــکاري
وار د ککوشوا وښــکې خلاصې شولې — ما تــه جهــان اوبــه اوبــه ښــکاري
دابــه تــه ســم راتــه نظــر نــه کــوې — ما تــه چې زړه همــه لیمــه ښــکاري
زما پــه زړه کــې دي لېمــې دي اشــنا — ســتا په لیمــو کې ماتــه زړه ښــکاري
ته چې په مخکې درلیب یې کوې — هغــه خــواږه راتــه تراخــه ښــکاري
وچــه لرګــی مــې دنظــر شــوه ژبــه — لېمــه حیــرت وهلــې خولــه ښــکاري
مینــې رازده کــره منتونــه نــوې — تېرشــوې تــول ورتــه زاړه ښــکاري
حمزه بنا بــست بې محافظــه نــه وي — بانــه یــې ویښ، اشــنا ویده ښــکاري

(۸۱۱)

عشق چې هونیارشي نوبه نه ښکاري — عقل چې مست شي هله به ښکاري
لــه کــم نظــرو څــه ګیلــه ده پکــار — ســتوري دلــرې نــه واړه ښــکاري
خواهــشه ســتاله اضــطراره امــان — شــګې چې هــم راتــه اوبــه ښــکاري

داني ګړ تياده ده ستي که څه ده — چې هر يخرى راته خوله ښکاري

داسې خبرې هم رازده کړې مينې — چې نه په خوله اونه په زړه ښکاري

دااثر به ستو يردى غوندې وي — تېرچې له زړه شي په لبمه ښکاري

مينې داغونه دي غوټۍ شوپه زړه — ستا پسرلى جوړې په تله ښکاري

يادونه لاړل ارمانونه نه ځي — خدايږو (۱) چې داخوږښتانه ښکاري

داسوېلو کړدي په سرشوي حمزه — د زړه نغرې ساره ساره ښکاري

(۱) ار: حمهګو.

(۸۱۲)

څوکه رانه تللي دى خفه ښکاري — لاهم د پښخوانه راسره ښکاري

ستاستم که راوسته،ستنه ښکاري — خدايږو چې سلګى مې پښتنه ښکاري

رازدهستي ماته ستاككوودي — اصل ده نقطه خودائره ښکاري

پرېږده چې زړې ورته برسېره كړم — نن چې زماخوانه حوصله ښکاري

مورد ي لادسترګوپه ديدن نه يم — كښېنه په ماګرانه،لاخوشپه ښکاري

زه ورته بدرنګ ولې ښكاربږمه — ماته چې اى خدايه ښايسته ښکاري

اور دى دمېن داسوېلي دنيا — هسې په زړه روغوته سره ښکاري

جس دتهرېدونكي جهان،څه وايم — ماته زړه رانښكونكې وسوسه ښکاري

خانده چې حمزه درته ژړا كوي — ښه ده اشنابښه،چې تاته ښه ښکاري

(۸۱۳)

څوچې هغه ښکلى مېلمه نه ښکاري — څه شي که دنيامې مېلمنه ښکاري

ستاپه تغافل چې په ستنه ښكاري — ماته هغه اوښکه پښتنه ښکاري

زه خوهم هغه يم څه بدل نه يم — نن دې په بارخورولې خوله ښکاري

تاته مې دكړوخبرې دېرې دي — تولې چې راجمع كړم يوه ښکاري

ورک دي دککوبه دایره کې یم — ماته چې امکان یوه نقطه ښکاري
دېرڅې راسره وي دېر جدا بریښي — خومره چې جداوي راسره ښکاري
ورک چې شو نور هرڅه، پاتې زه شومه — اوس را زمان یوه لمحه ښکاري
ستاله بې نیازۍ چې زړه ته جاروته — ماته هغه اوښکه پښتنه ښکاري
ګوره یې خواني، څومره استاذه ده — اوس چې راته مخ شي سنجیده ښکاري
خوله مې نه جوړېږي خو مجبور یمه — نن دي په بار خو ولې خوله ښکاري
تاته یقیني دي حمزه داجهان — ماته دا یقین هم وسوسه ښکاري

۱۹۷۲ نومبر ۳ پېښور.

ښکلیه چې خبره دې ترخه ښکاري — راته دې وخت کې خوږه ښکاري
خوله چې در لیب داسې پسته ښکاري — نن خوځه جدا غوندې قصه ښکاري
زه واعظه ترک د مینې بد ګڼم — ستا ورنامنم چې دېره ښه ښکاري
نیت چې شي ښتون څه عجیبه ښکاري — لاهسکه غرې خوتساتره ښکاري
سره یې شي بار خویه خبر کتو زما — شات او که غوري دي خوږه ښکاري
داچې په کردار کې یې پښتونه وي — وایي چې پښتو څه عجیبه ښکاري
وي بلبلم، راغلمه، شرمېږي اوس — واخله په خپل کور کې مېلمنه ښکاري
تاچې کړله نوي په موسکا موسکا — داوعده دې هم هغه زړه ښکاري
مینې ته حمزه چې فکر وکړو ما — داهم د ښکلا یوه جبه ښکاري

۱۹۷۳ مارچ ۱۹ ـ جلال آباد.

که مې پکې له دېره غمه زخمي زړه ښکاري — خو په لېمو کې مې د زړه خبرې نه ښکاري
تانه هغه ښکلې اشناچې چرته نه ښکاري — مېنه وایه، نورجهان کې درته څه ښکاري
ستا د مروستر ګو یداری ته منتظر ومه زه — چې ارمانونه مې تراوسه لا وده ښکاري
که دې بانه کړه حیا ښکته هم او چت ګوري — خوی دهند کې که کوې هم خوښتانه ښکاري

سپرلیه بیادارنګینی له کومه راوړي وایه ستاد کاروان چې دغه خپل ګلونه غله ښکاري
لکه چې زه لېونې سبې یمه دارلی اشنا رقیب چې تاسره وي مل ماته اومه ښکاري
چې بادشاهي لرې دحسن. ګدایان لرې دپېر (۱) پرچې ښمن وي نوخوده پرې مېلمانه ښکاري
لېږي "داګونجې دتندي خودرخېږي"(۲) ګره اشنا خبرې نورې هم یوخوزماپه زړه ښکاري
خاى دغرورنه دى حمزه. دېښوادي نظر دسخن سیال دي چې په سمه نه په غره ښکاري

۱۹۷۲ پرومبی کوټی_مشهدشریف. (۱) آر: لرې. (۲) آر: دخېږي.

(۸۱۲)

مانه یې هرشی لکه دزره ښکاري تانه داجهان زاهده څه ښکاري؟
ګوره اتـهاد تـصورته مـې ګورم مخامخ ورتـه خونـه ښکاري
جذبه بده نه ده، نورمې مه چېړه خومره چې غوسه شې هومره ښه ښکاري
واګـې دسـتم دي ګلـه راکاږه اوس مې څه دخولې نه په واته ښکاري
خومره په الفت زاره زلمي شوستا
خومره دي زلمي دي چې زاره ښکاري

۱۹۷۳ نومبر ۲۴_پېښور.

(۸۱۷)

ده منم چې مونږ ته څه ښکاري هغـه هـم ومنـه چـې نـه ښـکاري
بیا هغو نورو تـه خوید مـه وایـه ستا په نظرکې چې څه ښه ښکاري
پـام چې فریب د تمنا ونه خوري سراب خـو تـږي تـه اوبـه ښکاري
"راتله" ایجاد ګڼه د ژوند د ارمان ګنې که خیرشې همه "تله" ښکاري
چې چرته تنګ چرته راتنګ وښیي(۱) دا نـښاني د چـا د پلـه ښـکاري
چې بیداري شي ترحد تېره د چا هغـه پوهـانو تـه وده ښـکاري
مونږ چې لېمه د پو او بل شو حمزه اوس زه هغـه او هغـه زه ښـکاري

۱۹۲۸ ستمبر ۱۲_سنګان (۱) آر

[٨١٨]

باتې شو الفت که دنیا کـل بدلـه ښکاري　　یارمې شو بدل، که یې منګول(١) بدلـه ښکاري

پوه مې شوې په مینه که مې خوساتله پته　　ستا هغه حیا یـه تغافـل بدلـه ښکاري

څه دې وې رقیبـه! چې الفت پرېشاني ده؟　　ستا دغه خبره خویـه ګـل بدلـه ښکاري

دې ګرمو نارو!(٢)نه غوټۍ غوړېږه داده خوله شوه　　ستن خـو دا نـوا څـه دبلبـل بدلـه ښکاري

ستا نظر خو زړه ته دحمزه ښکاري خواخوږی　　تن غوسـه پښتون ته دمعمل بدلـه ښکاري

(١) ار. منګل.　　(٢) ار. نعرو.

ماکـه خطـاوکړه خطانـه ښکاري　　شـبخه ولـې تاتـه روانـه ښکاري

پوهـه چې دژوندپـه حقیقت شـومه　　دلتـه قـضاهم اوفنانـه ښکاري

ورځ دفراق جنو، خطـــالاره کـــړه　　تېره که ده شپه خوسبانه ښکاري

ورکه شي سپوږمۍ په مسلــل کتـو　　دېره چې ښکلاشي ښکلانه ښکاري

پورخ مې جوړ حمزه شو تصور دیار　　ماته چې لـه خانه جدانه ښکاري

[٨٢٠]

خیـال اودزلفـو سلـسلي ښـکاري　　څه مهربانه غونډې شپې ښکاري(١)

ستا انتظار شـو دنمابنـامه سره　　سترګې زمـابلې دیـوې ښکاري

رقیـب چـې زلفـې داشنایادوي　　جوړیه قسمت کې یې تیرې ښکاري

ستادېنوغـشي پـه زړه کـې زمـا　　څـه تـښتوونکي پلوشـې ښکاري

نن دواعـظ خبرې کیـف راولـي　　ژبه تتې سترګې یې سرې ښکاري

تاتـه اسـانه بـې لـوظي ده، وي دي　　راتـه خـوګراني شـوګیرې ښکاري

لـوبې خبـې کـړې مـېن دوصـال　　داهـې خـولې ماتـه ورې ښکاري

پـه ترلـي مـې شـوجنون کـه څـه دي　　بدې مـې پښوکې زولنې ښکاري

اوس یـې مـدام زلفـې خورې وینمـه　　دغـه څـه نورې سلسلې ښکاري

چې مخامخ شي، سترګې بیاشي ټیټې — دا د کـوم ښیز تبـادلې ښکـاري
پـروت یــې پــه ښواوســه زمــانظره — پورتــه څــه ګرانــي مرحلې ښکاري
حمـــزه د تنــدي انتهــایې ګټــه — سترګې د ښکلیو چې مرې ښکاري

۱۹۵۱ نومبر ۱۳_ مشن کالج پېښور.

(۱) دا مشن کالج په مشاعره کې ماوروولې وه، په دې مشاعره کې یوځلې حبکې هم وې، چېکوابه چې مشن کالج له موټر ورځلوتو ده حال نه و مزمله دې حلقه وروسپه، حقای زده چې لس شل کاله پس به څه حال وي او ښځود نسل به څه حال ته رسي (حمزه).

سترګې د واعظ چې هـــې سرې ښکاري — خدایه وچې خمـاري د تـوبې ښـکاري
خیال کې چې د زلفو سلسلې ښکاري — هلته پرېشانۍ اوشوګیرې ښکاري
خومره چې تراخه تراخه کتل کوي — سترګې راته سـاهومره خوږې ښکاري
اوس چې مخامخ شي سترګې وا روي — خدایه ود چا سترګې راپسې ښکاري
ستاله یخه خوږه به څه وایمه — شپې داورې هم راته اوږدې ښکاري
ښکنه شــي زما پــه خیر کتــوولې — ما ته خودا سترګې پښتنې ښکاري
نــوی تغافــل یکـې پیداشـونن — سترګې داشنا هغه زرې ښـکاري
پـام کـوه خبروکـې افـت وي پـټ — لویې ترې پیداشي که ورې ښکاري
خلنده ککونـه دي حمــزه شـه خـار — لایـې د قســمت بلـې دیـوې ښـکاري

(۸۲۲)

وعده د ښکلې یارمې نږدې شوې غوندې ښکاري — ښکالو د احساساتو چې سندرې غوندې ښکاري
زاره شـول امید ونه که ایفـا یې د وعدې ده — داشې ورځې اوس ماته هسې نوې غوندې ښکاري
زه لـرې د مـودو وم، که دی لـرې د مودو و؟ — اوس ماته چې نږدې شو هسې لرې غوندې ښکاري
ماوې چې زه اشنا ته به دا خیرې ګرېوان ښایم — چې راغلو هره خیره یې ګنډلې غوندې ښکاري
راخبرې څه نرې نرې لوګی یې له محفله — که خوانه حوصله د مېنې سوې غوندې ښکاري
هره اوس به د جانه اوښکې پورکړې په دا وخت کې — داستانونه اوښکې وسې زرې غوندې ښکاري

(۸۲۳)

قاصد مې نن تازه تازه راغلی ځوندي ښکاري | اسمان راته په بېرته چورلېدلی ځوندي ښکاري
شاهد چې تودو خې د محبت مې اسوېلي شوه | کالبوت چې د ارمان مې ننښتلی ځوندي ښکاري
معیار د انتظار چې ایله نن مې مکمل کړ | رفتار د وخت خوګوره دربدلی ځوندي ښکاري
الفت مې اشنایي د بې نیازۍ سره کړه جوړه | نن څکه تصور مې بورنبدلی ځوندي ښکاري
راځوندي ګهرچاپېر چې تري اسري او وسیلې دي | همت مې څکه داسې ښوېدلی ځوندي ښکاري
سندان ځوندي چې سخت و حوادثوته مې زړه شو | اوس مخ د بد وور ځوګر ځېدلی ځوندي ښکاري
داڅکه کیفیت دی هرڅه چې مې اشنا شو | اوس ماته ولې داسې پېژندلی ځوندي ښکاري
داڅکه زمازړه د عشق په بټ کې قرار ومومند | چې ګل ځوندي موسکی او ځوړېدلی ځوندي ښکاري
حمزه په ښتانه نظر دي څه وشول پوهېږي | چې نن له هندوزلفو مومنېدلی ځوندي ښکاري

(۸۲۴)

دنیا د تخیل مې ګل وریښه ځوندي ښکاري | خداچې ستا په سرو شونډو رېښمینه ځوندي ښکاري
ناګاپه راپه یاد شي چې راپاد شي نو راپاد شي | پخوا خو داسې نه و دا خوږینه ځوندي ښکاري
راتلل دي د ربار سره په توره شپه خوښ نه دي | اشنا نن دي خبره راته سپینه ځوندي ښکاري
چې ستا په تصور کې په بار بار ګورم اسمان ته | ځېره د نیمې شپې سحرجینه ځوندي ښکاري
فرهاد نه ویکا چې دا یې نه وي تېشه کېږده | فرهاده دا فرهاد خودي شیرینه ځوندي ښکاري
حمزه جوړ تماشادي د اشنا مهر لیدلی | زر زر مرورېږي څه نیازینه ځوندي ښکاري

(۸۲۵)

داچې ودان پېرې بانډې کلي ښکاري | ستاد مېنورانه ځلي ښکاري
که وې هرڅوپه بدرنګی تېرشوي | خوهغه تېروخت نه ښکلي ښکاري
زړه مې د نمر نه پلوشې شوکوي | چې دي بانه تېرې نه وتلي ښکاري
څوکه کتسل راته ناجانه کوي | ماته لیمه یې څه لیدلې ښکاري
غمونه راشي خوموسکي ځوندي وي | اوس د پخوا نه پوهېدلي ښکاري
په پښتنو بهو دي څه شوي دي | نن چې یې واکه بورنبدلي (۱) ښکاري
حمزه طوفان وکه وصال د اشنا | چې اسوېلي مې دم ختلي ښکاري

(۱) ار. بوګېدلي.

(۸۲۶)

نن چې هغه سترګې ښتنې بدلې ښکاري    نه راځي داوښکو بدرګې بدلې ښکاري
ستاپه تصور همه خبرې بدلې ښکاري    زه شوم تماشا ، که تماشې بدلې ښکاري؟
کله په خود شوی وم ،له خانه خبرنه یم؟    نن را- داخپلې زولنې بدلې ښکاري
اوس دې جوړ ارمانه ښتنه خودي اشناکړه    نه ګوري اشناته دې لیمې بدلې ښکاري
په نوکه ریبارمې نن رقیب نه وي زړګیه    ولې مانه دا لارې کوڅې بدلې ښکاري
نن یې التفات سره لښکردیښوستون کړ    نمرشو نمردزمې پلوشې بدلې ښکاري
اوس به نو حمزه باور په چاڅرنګه وکړي    غم دې دقاصد ګاوه جرګې بدلې ښکاري

(۸۲۷)

چې اطمینان وي دناښکلې ښکاري    نـوژرا هـم ورتـه بـدلې ښـکاري
داسې سلګی. هم په بیلتون کې راشي    چې وتـې نـه وي خـوږلې ښـکاري
جوړ رسوا شوی ده دسترګو یه تـور    داتمنـامې خکـه ښـکلې ښـکاري
نـن یـې دعواونـاجواب رانـه کـړ    خـدایږوخبره مـې منلـې ښـکاري
:ازمانـــه پـــه تـــصوردا شنا    حمـزه نـه تللې نـه راغلې ښـکاري

(۸۲۸)

نـرروتـه هغـه لیـونی ښـکاري    مـات چې کـوم سـري سـري ښـکاري
چې یې وجـود دی د اشیاوو اصـل    څکه په هر شي کې هر شي ښکاري
مـشاهده د بیلتانـــه نخـښه ده    کـه پـه هـر څـه کې راتـه دي ښـکاري
په دې تیروتـې یـوري خانـدي ګـلان    چې رنګینـې ورتـه سپرلي ښـکاري
هغـه ارمـان چې وي بیلتـون څپلـي    چې کلـه وګـوري زلمـی ښـکاري
د یـري چوپتیالـه څانـه وری یمـه    نن چې خپل غم راتـه پردی ښـکاري
شو سنجیده څوندي زما په لیدو    زړګیـه دا یـې هـر کلـی ښـکاري
دیوه کړه بلـه کـه څـه وي کـه نـه وي    د ماښـامونو مخرونــې ښـــکاري
وران شـو دخاپې غوندي، پورتـه نـه شـو    حمـزه ارمـان دي مـړنـی ښـکاري

۱۹۲۷می ۱۴ ـ د فاروق کلی

۸۲۹

نن اختلاط چې د دلبر سره غمازلري    خکه دلبر مې دقاتل هرېوانداز لري
جبې د غم به تل تر تله وي په زړه د عاشق    په کمان ورو خوجې بانه غشي دراز لري
په زیر شرکې منعکس دی ستا جمال زما    سوزنه حیران یم چې نغښه خان کې دسازلري
رندان خراب او ناتوان شي په خمار دمیو    بیاهم مجبور دي دعادت نه حرص وآزلري
زاهده طعن څه په کار په مې خوشاتونه دي    پرحقیقت دحقیقت هر یو مجـازلري
راځي سجدو لره سجدې په دپرنیاز وآداب    دجاجبین لره جبین چې د نیازلري
درکې پرانه دبیتواچې دارندان دي حمزه    مې د الست به پیمانه کې دحجاز لري

۸۳۰

رقیبان مینه دبې زړه عاشق وزل نه لري    که لاس یې پرېـه شي مو زبه خو کنځل نه لري
د دنیا کونده به زلمي په نکاح نه کړي چرې    چې ورسره غاره غړي وي هوس بل نه لري
پخپله هم شي تار په تار چې عاشقان کړ دي    نا پنه لصد اول د ناوې نور وربل نه لري
غشي دشوق چې څومره یخ وي هومره تېزې ګیه    ملا شي د پېرلکه لېنده خومینه جل نه لري
ستا د کاکل توري مستي د بېنو دم ترلی    لیونی زړه په توره شپه مینه څنګل نه لري
د جاهلانو خوی رخمه ترینه کار اخله حمزه    عاقلان حیال د باري خردنو کښې زل نه لري

۸۳۱

څوک چې عاشق وي په ریښتیا په زړه کې خار نه لري    د رقیبانو په غوغا هډو څه کار نه لري
راځي خکه خریدار زما د بهار د خیال    چې بې له غمه مې سودا د زړه بازار نه لري
زړه یې زما دی خوافسوس چې د رقیب له غمه    کور نه زما به تله راتله، خو اختیار نه لري
د آیینې له زړه نه بار د بېو وهېښته وپوښته    زما په زړه که ګړ د غم ګېدې نو بار نه لري
زه په څنګل کې د عشق باز یم چرچنګ نه یمه    چې د تنزرې کوې ښکار په دانه کار نه لري
که محبت وي د ذلت سره نو مرګ په ښه وي    د سرکوزي وصف صفت خو کوهسار نه لري
بار به د عشق دباره پر ېږدم خوشریک نه منم    اور سلامت چرې د خان سره یو نار نه لري

په برکت د بو تراب سر د حمزه په فلک
څه شو په دا که سجاده خرله دستار نه لري

(۸۳۲)

دا کوم طرف ته اوري زما سترګي لوري لوري — اشناچي ليدی نه شي چرته ګوري، څه ته ګوري
نرمخی یار چي لاړ زما دخیال له دنیا ووت — نور واره مهرويان و راته برېښي لکه سټوري
نسبت دميني ورک شوچي خپل خان نه په کاته شوم — غایبه آیینه شي چي خوک خپل عکس نه ګوري
بیا سترګي زما دکي دکي کېږي پسرلی شو — وریخي دکي دکي دصحرا دپاسه ښوري
اشناچي راته مخ کړو . کدي واخیستي غمونو — پاتمر شو راخرګند په پټيد وشو واره سټوري
اشنا خمار دسترګو دي چي خوک توبه ګار کړي — ملګري د زاهد شو دشرابو نه ځان ژغوري
دایخ بخ اسوېلي په حمزه ته کوي تر کومه — باران دبېلتانه به تل ترتله په تا اوري

(۸۳۳)

خنکه دډېوي ختي ځرګند شولرزان سوري — ښکاري چي به تلو کي شوله پاره قربان سوري
څرګه ناامیده ووت ستاله التفاته — لامبي په انګن کي شته دزړه دارمان سوري
کله پلوشو غوندي رنګين وي لکه غشي — شته چي دنظر دپاسه ستا دمژګان سوري
نمر دالتفات بي چي رو رو په غر غره شو — لاړه د کالبوت نه مي د ژوند شو روان سوري
ستا په آیینه کي چي عالم وګوري ځان ته — پوهه به په دي شي چي داټول دي حيران سوري
لور شوم په معنی چي ستالمن زما په سرشوه — ورک مي داوجود شو لکه ورک داسمان سوري

زه حمزه مضطر لکه د سوري ستاله غمه
ورک دي ستا دحسن دجلوو په ارمان سوري

(۸۳۴)

یاره چي اسمان ته دي بانه ګوري — سترګي دي زما په مخ کي څه ګوري؟
ښکلي نظر ستاچي بس لساره دی — زړه تر ېنه ورک شوی دی که زړه ګوري
شوندي دي خواږه خواږه ستونه کړي — سترګي دا شناولي تراخه ګوري
سترګي چي دسترګو په لاړ زړونه وړي — خوک دتوري شپي به چرته غله ګوري
غل دمحبت غلطېدی نه شي — خوک چي په محفل کي چاته نه ګوري
ښکلي چي ارمان مي چيني سترګي کړي — لاړ دزړه به تل کي مي اوبه ګوري
زه حمزه به زړه هم ورکتی نه شم — څه بري که اشنامي به لمبه ګوري

(۸۳۵)

خیـردې کـه حـالات راتـه تراخـه ګـوري — سـترګې داشـنارانه خـواږه ګـوري
وګـوره سـتم.چې رقیبانوتـه — مانـه شـکایت.خومانه نـه ګـوري
بـه وسـالي شـوم دسـخاوت پـه خـای — کیـف دمیوچرتـه چې تـراوه ګـوري
مـاوې چې اسمان تـه یې بانـه ګـوري — بیابـه نوزمابـه زړه کـې خـه ګـوري
پـاتې راخـې عقلـه.انتخاب دتـا — تـه یې کتـی نـه شې چې یې زړه ګـوري
زړه دې کـه حجـره دپـښتنوزما — خـومره چې دپرېـږې میلمانـه ګـوري
سـم دزګـسې سـترګوکتل نـه وې — زړه خوهلـه یوسـې چې کـاږه ګـوري
پـل بـه بـې پـه تـوره چې واهـه زمـا — اوس مـې نـښانې ولـې دېلـه ګـوري

دپـرې دپـرې مـرې دحمـزه زړه کـې شـوې
ګرخـې پـه زونـدوکې پـښتانه ګـوري

۱۹۷۴،جوري۹ـ لوګر.

داخوبس غروردی دښکلاچې چاته نه ګوري — یوخل یې الوتی نظرواچوې بیانه ګوري
پوهه یم پرې بـه چې بـه دروغـه مرورشولاړ — ګوره خوهوښیاراشنانه بېرته په شانه ګوري
داسې خآی مې کښېنوه رهبره چې اشناز ما — ګورم په محفل کې که ماګوري که مانه ګوري
مینـه تـصوردښکلاپورته لـه دختونوکړې — ورکه په یو ۱ن ُکې دې بېګااوسبانه ګوري
ښکلیه دحمزه په خیرکتوچې ته خفه شولې
بـه نورو ـ داسـې نظروکړه چې بیانـه ګـوري

۱۹۷۶،اګست۵ـ کابل.

(۸۳۷)

د الفـت مینـه د صـبر سـتنه غـوازې — دې یکـار د انتظـار ورلـره لاړې
دتهمـت لوخـرالی بـه دی نـه پنـدوتـه — خـه یکـار د عـشق جامـه د عقـل غـارې
د عاشـق لـه جذبـه څوک زده عاشـقان زده — وي وینـا یـې عقلمـن تـه شـارې شـارې
معشرقې چې لـه ازلـه بې پـروا دي — عاشـقان زده کـه خـدا کوې.کـه ژارې

اور د عشق وته وانبه د هستي څه دي — د همت خس به دي اخور شو زاري
رقیب لوبي کاني وکړي بیا منکر وي — لک څوک چي اوبن له باره سره نغاري
د خرد سخوندره وخت د بهرلي شو — راشه واردي شو، که خوري دعشق غوباري
حمزه خوند لاد وصال اخیستی نه وي — رقیب راشي د بهلتون به لاس څوباري؛

آرزوبلوي.

که کیفیت څوک د وجود غواري — وجود هغه دی چې نمود غواري
د هر وجود ونه وي ممتاز وبله — هر یو صفات او څه حدود غواري
وي تصادم به یې په وخت د نمود — داسې حالت چې هست وبود غواري
د هر وجود ونه یو صفت او یو رنګ — هغه د هر نه دي یو وجود غواري
وجود خو یو دی ناممکن یې کثرت — خو یې کثرت کې خپل نمود غواري
دود وي له اوره که د هر څیز وي — څوک به ګند هر او څوک په عود غواري

(۸۳۹)

د مینې غم مې له زړه نه غواري — زړه یې سوا، سترګې یې کم غواري
له هوسې سترګو یې دې څه وایمه — زړه مې بې واکه شولو رم غواري
څه عجیبه مطالبه ده د عشق — چې یې عرب او نه عجم غواري
خالي تر څو یې مې کعبه وي د زړه — چې له هر رنګ وي یو صنم غواري
خدای زده دا کومه مرحله ده د عشق — چې اوس ستم او نه کرم غواري
زړه دي چې یوړه اوس به یون څه کوم — دا مرحلې خو د زړه دم غواري
داګـــدا ګردی عجیبه لبوني — خیر هم چې بنکلیه ستا به چم غواري
تبرشه له هر شه هم، چې تبرشوې له سر — مینه د تانه یو قدم غواري
حمزه "موجود" به جوړ وجود نه لري — څوک چې پخوا تر هغه عدم غواري

۱۹۷۲ حوت ۱۶۵ ـ کابل

(۸۴۰)

د ښېښو د ناوې زلفې، ګډې وډې مضمون غواړي ای پرېشانه زړه په خای شه مزولې خو جنون غواړي

عالمونه په ګردش دې، ساکنان يې سکون غواړي د لټون له حيثه لټ دې، خو حاصل د لټون غواړي

د سپېڅلي پاکې مينې، ای ساده باده پروته خفه نه شي نن وختونه رانه نوی مضمون غواړي

په تازه رنجودې لېکې د سرو سترګو نه پېښېږي دا زما د ويښو تهې، جوړې نوی شبخون غواړي

څه هونبهارې غلجکې دې زړونه پوسې داده نه وي دلغند کيانې سترګې څه دې، برغ نظر دېښتون غواړي

د ښا "مهلمه په اوس نه مساد" نن "صورت اختيار کړي ستاپه مينه دخاطر کې رنګ وبوی د "پرون" غواړي

حليقت د مينې دا دی که حمزه رانه تپوس کړي بس خوخان په فنا شمار کړه نه علوم نه فنون غواړي

(۸۴۱)

دا يو حليلت دی چې ښايست له مينې زړه غواړي مينه پښتنه ورته تياره ده، خو خوله غواړي

ودرپېږه دزړه سره چې لږ مصلحت وکړمه ماته يې معلومه شوله څه دي چې بانه غواړي

راغلي راځه، خو دا سلګی هم په ماګرانه ده باده دلشاکه يې پخلا کړي، رانه تله غواړي

سالره فلک دمندو ترړو په تکل کې دی مينې ته خوګوره چې مې سريه زنګانه غواړي

باتې حليقت نه شي اشناچې حليقت شي کوم داسې حليقت له سره نشته چې يې زړه غواړي

وخت وچې په ژبه به دستوريويوهېدمه زه وخت دی چې لوس ستوزې مې په ژبه بوهېده غواړي

اوښکې مې دې خلاصې کنې ای دانتظارنيرو ستورې مې دعمرهمدمان دې موسېده غواړي

مخه دلشاله سپينه مخه کړمه زلفوته سترګې دلبجنورنانه غواړي تياره غواړي

ستاسره به باده داشناخانونه خاورې کا بس خو ستاوجودمې ارمانونه پېښانه غواړي

غوارم سوځېدونکی زړه، په کار مې آيينه نه ده مينه نه نظر اوښداره اونه لېمه غواړي

عشقله دحمزه دزړګي اورپه سرېدوشولو تودېې چې محفل شي اسوېلې ساره ساره غواړي

(۱) ار: سکل

(۸۴۲)

زړه مې خبرنه يم چې په نه غوښتوکې څه غواړي دلسې رانه ښکارې چې دا هيڅ نه غواړي زړه اړي

مينه له ښايسته نه خواړه اونه تراخه غواړي بس هغه جذبه، چې دجاموخنې واته غواړي

ښکليونه غروردزړه غوښتو عجيبه چل ښيي ګورې يې بانه په بره، ګوياچې څه نه غواړي

راته اشنا داسې په کوم نظر کتلي دي زړه مې چې دخان سره بېواکه موسېده اړي

ستاپه تبسم چې مې داوبنکومحرومې وشوه — بیرته دبنوپه لاره زړه تـه سـتنبده غـواري
پرېږدې کورپه سرو لمبونو.له کوره څه غواړې — تاسره پوهېږې چې کورونه میلمانه غواړي
خپله حیرانې مې په زړه اوري هوش به څهٔ کرمه — ښکلیه آیینـه مې دصیقل هغه بانه غواري
مادې تصورته هم رنګ رنګ نازونه وښودل — ستاغوندې انکارکري دراتلونه چې راتله غواري

اوردانګومې چې زیاتیږي همزه دم په دم
څکه خوخوانې لکه داوبنکوڅڅېده غوري

(۸۴۳)

اوس له د پرو د پرو پوه پاتې ده چې زړه غواړي — سخته تقاضاده خو حال نه وایې چې څه غواري
مینه پټېدی نه شي که څومره پټېده غواري — حسن کې رابنکته بې پناده چې کاته غواري
زړه هغه ماشوم دی چې ترعمره هم خوانېږي نه — کله کله هغه رانه غواري چې بې نه غواري
اوبنکې ته زما دې عجیبه غوندې نظر وکړو — اوس نه دې بانه نه په سنته څې،نه لوېده غواري
نوربنکلې مې هم که زړه ته راغلي اشناڅه وشول — پوه خو یې حجره د بستر خو میلمانه غواري
تت کانه یې ورک کړه،برندې سترګې دې ورواړوه — ښکلیه آیینـه زمـا د زړه درنـه بانـه غـواري
بس چې مېن زړه مې دایره د مینې جوړه کا — ستا ددې ککیو د نقطې نه چورلېده غواري
نن د سحر سترګې را" راز د مینې وښودو — زړه مې په ژرا ژرا کې څکه موسېده غواري

عکس د اشنا دې همزه زړه ته رښا را"
اوس چې ترې تصویر تیار دې لېره"۔

۱۹۲۸اپریل۲۹۔لوارګی

ملادهمت چې پل په پل وتري — ترندهوسی به دمنزل وتري
پرې دژوند دبل په لاس مه غوره — ستامستقبل به ول په ول وتري
دخپل ژوندون دتیروغم دې نه کا — هغه،چې ژوندون په وربل وتري
زه یم دهغوآزادیو"غلام — چې دابدسره ازل وتري
چې دې زمان اوله مکانه بهر — بندبه یې وایه څه اجل وتري

بیایې حرمت دسریتوب دی محال     زړه چې په تاج اوپه محل وترړي

زیات چې دحدنه کړي پرواز دشعر     خیال چې تړي همه مهمل وتړي

ستاله شوکمارساده نظره توبه[2]     لاس به نوڅوک دداسې غل وتړي

تاردې دژوند لکه حمزه کړي په لاس     چې گلدسته پرې دغزل وتړي

۱۹۷۱،اگست ۱۵ـ لواړگي.    (۱)آر:آرتو.    (۲)آر:نظرتوبه.

(۸۴۵)

بلبل پوه په عالبت دگل ژړا کړي     گل پې پوه نه دی په ژبه چې خندا کړي

د سپرلي په تله راتله کې فکر به وي     چې طلب د رنگ اوبوی کړي خطا کړي

له خپل نفس سره د پرجنگ مه کړه عاقل شه     هسې نه چې چرته صلحه پرې بنا کړي

له شیخانو لرې گرځه که راز غواړې     په رندان دي چې رښتیا صفا صفا کړي

گل له خار سره پوځای راخي بهار شو     عاشقان به په تش ست صنم پخلا کړي

زه سپوږمۍ د بهار له نوره پم خبر شه     چې له نمر نه گواهان غواړي خطا کړي

زاهد په کرامت مست وې نو وې دي     خوتر کومه به دبام په سر گدا کړي

د وصال له بېخودی نه به شه واېم     چې په دوو ښنو کور لکه بیدیا کړي

ځان د ځان په آیینه کې گوره پاځه     ځوک چې ورک شي په حیرت کې تماشا کړي

عاشقان به ولې زهرې گوټې نه وي     دنیابست میاندې چې سره بچې پیدا کړي

چې د درد په اوبو عقل اودس وکا     سهوه نشته که بیا مونځ د عشق ادا کړي

میلمستیا د زړه د غوټو کرم بخروته     کړي اغزي رنگین اودس، دگل ثنا کړي

زه حمزه د چا د سوې زړه لوگی پم     چې فنا مې منزلونه تر بقا کړي

(۸۴۶)

حق به ادا نن د غزل نه کړي     پل چې هرڅوک زما په پل نه کړي

عشقه چې مور یې په نفردلو نه شي     دا حوادث دي چې بدل نه کړي

سم به د زلفو کړلیچونه نه شي     ځو دي چې عقل په خلل نه کړي

د زلفو ولونه تېزنده و غوټندي دي     لاس مې د فکر چرته شل نه کړي

مینې پرېـږده يې، خپلـه لاره وهـه پرېږده چې عقـل توکـل نـه کـړي
ورتـه پراتـه چې بـدلول يې وي بيـا زرونـه دې خـوک سـره بـدل نـه کـړي
درتـه خير نـه گـورم بې لوظـه اشـنا چې پښتونواله دې خجـل نـه کـړي
نـورو تـه گـوري ماتـه هـم گـوره دانـه كتـل دې چرتـه غـل نـه کـړي
مينې بهر لـه شش جهت كـړو حمـزه د فلـك ژرنـده بـه يې دل نـه کـړي

۱۹۶۵ مارچ ۲۵ ــ لواړگی.

ستاد کاکل کړی اشنا غوټی دزړه پرانيزي نوري بـه خوک دازادی لاري لاځـه پرانيزي
دتاسـتم کـه خوزمازبـه پسـنه کـړه اشـنا خوبه دي يوه شه چې گرېوان به زما خوله پرانيزي
چې په تدبير دشبرينوبې رانه هېر كه چمن اوس نوصيادمې دقفس دروازه څه پرانيزي
دادلجـويي دي لاسـتم دتبسـم سـره دي لږشه حصاردزړه زخمونه مې لبـه پرانيزي
گرانه ده خوک چې پکې رازکړي دهستی پيدا گوره فطرت وته څه پرانيزي څه نه پرانيزي
اوس چې دخط په حاشيوېې مزين شورانه كتاب دحسن به اشاراته اوس بـه پرانيزي
حمـزه دعشق بـه تـاثرکې وي بلاوحـدت عشق ودېږي، هـې ښكاري چې بانه پرانيزي

۱۹۷۴ ۳۱ ــ لواړگی.

سـوز وژرامـې حجابونـه ددلبرپرانيـزي غوټـــه دمهراودکـــرم زمـــااثرپرانيزي
طبيبه رو رو مې دواکړه دمرض كـه نـه وي جوش دلذت كې به مې دردخوله دپرهرپرانيزي
پرېږده په زړه مې چې بې واره گوزارونه كوي كاركې دلاس وي دكرم كـان دگوهرپرانيزي
ده تـاريكې دزړه رڼـا ،دزړه ظلمت دی ر ٔ شبه دوصلت ،درد فراق لاس دسحرپرانيزي
پرمحبت ،درقيبانود بسـتنی دي هـــزار سبې ورته عاپې چې كوم دردوېزه گرپرانيزي
دژوندون لره خوپې قبره سكون نشته دی ستري ستومانه مـــافرملابه بســترپرانيزي

غوټې هزاربه دحكمت واكړي سحردی حمزه
شانه به لاس كې اشنازلفې معنبرپرانيزي

(۸۴۹)

څه که په ښلتون کې اندامونه مې زرېږي　　　　مینه مې بخلې مومې همت زما خوانېږي

مخې ته مې مه راځه چې لاړ به شي ختنه　　　　پرېږده په خپل حال باندې چې فکر مې پېېږي

کرم به د وختونو نه ولجې دخوشبختيو　　　　لاړه بې په ساده په کوم لوري به تېرېږي

کیف د تصور بې دراتلو به شپه دې همې　　　　نه ښکاري رښتيا چې که ډيوې راته بلېږي

پام کوه لمن دې راته مه خلاصوه ګله　　　　نه ښايي چې لاس مې دې ګرېوان ته ورسېږي

ستوري بې د نه راتلو او تلو ترجماني کا　　　　ګوره ګله تت شي ګله بېرته وځلېږي

راز د زړه چاودون خو هغه ګل به خوله ونه وي　　　　بس ساره ساره کړې اسوېلي او هم موسېږي

بل علاج بې نشته خو بيو تندر د موسکا دي　　　　ښکلبه وړې سترګې دښمن ګله مرېږي

عقل بې کامل شو که ساده دې لا تراوسه

خير ورته حمزه چې نظر وکړې نه شرمېږي

۱۹۷۱، جون ۲۹۵ پېښور.

(۸۵۰)

داسې جنون راجې لېونې ورته پسخېږي　　　　جنګ له طبيعت چې فلسفې ورته پسخېږي

دې دژوند لدرونه مې موسکې د مستقبل نه　　　　حال مې چې پرې خندشي، ماضي ورته پسخېږي

عشق چې پکې نه وي حيواني شعور مې بس دی　　　　هيڅ دی هغه عقل چې سړې ورته پسخېږي

راکښم رنګينې د نکهتو نو به زنځير کې　　　　وري رانه دماغ چې پسرلې ورته پسخېږي

سور د مينې اور شو به نشايې مجبورونه کرم　　　　دادی نسکنت چې سپېلنې ورته پسخېږي

جار شم له هغو چې له زمرېو خراج اخلي　　　　سترګې ښتښې چې غرځنې ورته پسخېږي

صايې د ککويه پادساتلي دي په زړه کې　　　　دې پوځو ډېوې چې ماښامي ورته پسخېږي

واکه خلې نقاب د ظاهري حسن د نيعونو　　　　پټ يکې زرښت دي چې زلمي ورته پسخېږي

ما حمزه تخليق هسې سپوږمۍ کړه په خاطر کې

شپې د خوارلسې اوپتخلسې ورته پسخېږي

بیا هم هغه تېرې ورځې راپیادېږي | زړه دلې ماڼۍ بیرته اباديږي
پنډې پنډې خفګان بورته کړه زړګیه | چې اشنا دې تل ترتله خوشحالېږي
د اشنا کوڅې ته باده چې راشي | خو چې خاورې مې په سرپاندې بادېږي
دی که وایي خوروخم به بې محفل ته | خدای دې نه کړي چې احسان مې پرې زیاتېږي
ای د بهار خیاله لاړ شه اباد اوسې | د حمزه د مینې خونه بربادېږي

(۸۵۲)

تېرو ختونه بدوواو که بیه راته یادېږي | ستا هغه تراخه او که خواږه راته یادېږي
ما چې حاصل کړي وو علوم وو که فنون وو | نه چې راته یادشي هغه نه راته یادېږي
ستا هغه په بونظر دستر ګو یدلېدنه | هغه نظرونه لکه غلې راته یادېږي
پرپرده دازاره نازونه نوې راپیدا کړه | نه دې هغه نوې نه زاړه راته یادېږي
کله چې تاوړینه پوره یې په درزاشم | ستا سره جوړراشي تللي زړه راته یادېږي
هغه چې شملوې دفلک سره سیالي کړه | خدایږو هغه ښکلې ښتانه راته یادېږي
کله سپک مېږونه کتي شول رقیبانو | هغه مهرویان ښکلي درانه راته یادېږي
تاچې نن مېلمه ته بوټ تندي ښتنې ونیوه | خوچې زه ژوندې یم نوره څه راته یادېږي
داسې مرحله هم په الفت کې حمزه راغله | دلته دچابد ،نه دچابنه راته یادېږي

۱۹۷۲ مې ۲۲ ـ لوړګی.

(۸۵۳)

چې په ضمیر ددې جهان تېرېږي | هغه همه زمانه خان تېرېږي
وختونو ستانه تغافل زده کړې | رانه ځنګیزدناپه شان تېرېږي
ستا دیاد ونو دستم څه وایم | څه مې په زړه ،څه په ګرېوان تېرېږي
نسیم خوشحاله په ګلشن راشي | خو چې تېرېږي پرېشان تېرېږي
له آیینه زړونو حمزه څه وایي | حیران راغلي دي حیران تېرېږي

۲ ـ لوړګی

(۸۵۴)

عالم د حوادثو شور و شر دی چې تېرېږي    د سیند غوندې بوتلونکی رهګذر دی چې تېرېږي

رڼا د خوشحالۍ شته خو د غم په تاریکۍ کې    روڼا مه په شپه ستوري کاندې سحر دی چې تېرېږي

ګرېوان خیرې کړل د خوشحالۍ وې د خندانه    چور د ېره رڼا یې شوله سحر دی چې تېرېږي

بس کورمې دی دزره او مېلمانه دې ارمانونه    یو ور غلی وتنه بل بهر دی چې تېرېږي

ساکي ښکارې په دې چې تماشه ده واحساس ته    جهان لکه د سیند هسې منظر دی چې تېرېږي

د ژوند د مرغلرو څولۍ دکې ورې وختونه    هر څیز د کاېنات څکه مضطر دی چې تېرېږي

قبا د دېن دنیا کړې تعلق د دنیا چوره    رفتار د بخۍ ستني په اسر دی چې تېرېږي

مومن د تعلق صراط کړې جور د مراد جنت ته    مذهب ورته نبودلی دا هنر دی چې تېرېږي

ر ۰ ه د ابتلا چې په حمزه راغلې نه وه    بې کیفه بې سروره بې اختر دی چې تېرېږي

(۸۵۵)

که په برخه مې د مستو سترګو مینه ورسېږي    توجذبه به مې مطلب ته رنګینه ورسېږي

نه موسکې سترګې به سترګې چې بار خودې جباسره کړل    چې زما مروني ارمان ته، تازه وینه ورسېږي

ستا د ورخو بنو زلفو، علم کله زده کېدی شي    که له هند او له تاتاره، ان ترچینه ورسېږي

که فرهاد شې په معنی کې د تېشې کارول زده کړه    کړه باور چې ستا په برخه، به شېرینه ورسېږي

حمزه کم به یې دوستان وي، هم به تور پېرې وابه کېږي

چې خبره به فطرت کې د چا سینه ورسېږي

(۸۵۶)

ماریبل چې په منت به رضا کېږي    خبر نه وم چې په خپله بخلا کېږي

چې غوسه د معشوقو وي د دروغو    څکه تمسه د مینو سوا کېږي

نه که سپین د محبت شوې ای زړګیه    خفه مه شه نخښه نه ترې خطا کېږي

زه د هسې کلبې نه مستثنی یم    څوک چې د ېر د ېر واصلېږي جدا کېږي

د مینو عجیبه غوندې مرض وي    چې کثرت یې د دردمنو دوا کېږي

څوک چې اوبنکې تویوي ګنه به وکړي    ترېو خوبې به محبت کې فنا کېږي

په دا بنکلیو مستو سترګو غلط مه شه    حمزه دا د سترګو رپ کې بلا کېږي

(۸۵۷)

مالګه ورځ په ورځ دساقي مخ کې سوا کېږي — نور واعظه وايه چې مې خندګه روا کېږي
مم دتصوريې و. کافي چې ماشومان وو — خوان شول ارمانونه اوس به دې نه رضا کېږي
وخت مې اشنا ستا په تصور کې فنا کړی — کېږي به. په چاکه بېګاه کېږي سبا کېږي
غم دبېلتانه نه سوا. غم درسوايې دی — هغه که زما دی ګله. دا دچا کېږي؟
زور چې دخوانۍ شو. حسن ووت له حجابه — دغه حرارت په انتها کې رنا کېږي
نن په انتظار کې څه خوږه بې قراري ده — داسې راته ښکاري چې وعده بې وفا کېږي
هغه ښکلی خدايږو حمزه هرچاته موسکی دی — هېڅ ويلی نه شم خدای خبر چې دچا کېږي

(۸۵۸)

خندګه چې غوټو نه له ګوزاره پيدا کېږي — دغسې وختونه مې له کاره پيدا کېږي
وايه چا به کړې وې ګيله له جېله ياره — چاوې چې ګيله له خپله ياره پيدا کېږي
پرېږده دا احساس دکمترۍ پښتونه عشقه — پام کوه چې دا له انتظاره پيدا کېږي
هغه تبسم چې دمحفل شمعې بې ګل کړې — ګله ګله دا د چا دپاره پيدا کېږي
شته څه چا پېرچل دمحبت په تعين کې — خلق خو دا وايي چې له واره پيدا کېږي

زړه مې شو داغونه چې هغه زلمی مې وليد
خود حمزه ګلان له نوبهاره پيدا کېږي

(۸۵۹)

اوس دوخت په سترګو کې عتاب نه پيدا کېږي — ځکه چې زمانللی شباب نه پيدا کېږي
چاويل چې جزو د خپل کل به خلاف نه ځي — ولې تو له سينه ځنې ګرداب نه پيدا کېږي
ستا خلا د حسن نه جوهر هم وار خطلشي — هېڅ په آيينه کې ستا جواب نه پيدا کېږي
څوکه ستا لېمه هسې شراب نه پيدا کېږي — خدايږو ز زړه غوټۍ کباب نه پيدا کېږي
ښکلبه چې قامت دي له قيامت نه بې خبر کړم — سوال د هېڅ حساب او دکتاب نه پيدا کېږي
چرته خار جسې او ناصبي او بيار دعلم — ور وولړه بې له بوتراب نه پيدا کېږي

څه کړمه حمزه خپله ښکلا راته بلا شوه
ځکه مې نظر د انتخاب نه پيدا کېږي

(۸۲۰)

اشناله د ږړه رشکه عنادونه پیدا کېږي
ـ اچې یو عناد شي فسادونه پیدا کېږي

هر څوک به یادوم دې هېروي مې هومره هومره
ناڅوکه هېروم نزې نه یادونه پیدا کېږي

الفت مې نوی ژوند وموښی ستاله هره عاره
څوستا لـه بهانو کـه میعادونه پیدا کېږي

ناڅاپه چې ښایست په کوم عمل کې جلوه ګرشي
اختیار د زړه نه پورته شي دادونه پیدا کېږي

ګرمی د یهلنانه مې غم افزون کړ لـوبلې کړم
وریځ د اورې رالشي نزې بادونه پیدا کېږي

پیارې لکـه د د . . ده یکښې لاز دعقـل نـشـتـه
دعقـل او ځـرد نـه الحادونـه پیدا کېږي

خاموش یمه خو چرته مې قابو دعشق په زړه
خولې چې خاورې کېږي رودادونه پیدا کېږي

جذبه دشهادت لـه ربـه غـوارم کـه یې راکه
کثرت همه کافر دی جهادونه پیدا کېږي

ه. دخاموشۍ سره نسبت د یار دخوی دی
دشپې په خاموشۍ کې فریادونه پیدا کېږي

(۸۲۱)

د ږړ چې په کوم وزړه کې امیدونه پیدا کېږي
د ږړ یکښې غمونه هم وهمونه پیدا کېږي

حیف دی چې مازره دونه پیش کش کړناوانه خپست
نـن سـبا نېروتـبه چرتـه زړونـه پیدا کېږي

نـه خـو د الـوت وزوې خـان لـره پیدا کـړه
هم د ږړې دانې شـنه، هم دامونه پیدا کېږي

لاخو فلـک پېړیـه بلـه خـوا خـوړلی نـه دی
یار کـه د رندانو شي جامونه پیدا کېږي

ښکلیو نه چې کړې د خپلې مینې پرده پورته
پـوه شـه هـم ددې نـه جنجالونه پیدا کېږي

لاز د محبت کـې پیدا کېږي کـه سـیندونه
لاددې پـه هوونـه سـرابونه پیدا کېږي

سوال دې ورته وکړو دجواب طمع یې مه کړه
تـل یې د چوپتیانـه جوابونه پیدا کېږي

زه بـه خپـل جنون نـه خپلـه خونه بیابان کړم
روغـو لـره بـه وي کـه د ښتونه پیدا کېږي

څو کـه زمانې کړه کار څـه خوبـه ښتونواله
تـل بـه پـه دې بن کې څه بازونه پیدا کېږي

وخت به درته خپله پیدا کېږي چې ته کار کړې
ورچې کـړې ضـربونه اوازونه پیدا کېږي

ګرد غونډې حمزه زما نیلې نه کهکشان دی
لاپـه مخکې مخکې میدانونه پیدا کېږي

۱۹۶۷، مارچ ۲ـ کراچي

(۸۲۲)

سالې، خردمندان دمیخانې نـه پیداکېږي
عرفان دهستی ستا دپیمانې نه پیداکېږي

وحدت که په کثرت کې هم څرګندوي خو وحدت دی
دانـه کـه شي بیاونـه، ددانې نـه پیداکېږي

داواره مرتبې دلوی شعوردي چې یې وینې
حالات چې دروا- زمانې نـه پیداکېږي

ربیار کړه غیرت چې اشنایي دماسوی کړي — غیبت لـه خانـه هم، دیارانې نـه پیـدا کېږي
روداوي دادجادسوي زړه چې پـه سحر کې — یو غړیو چې شمعې ستادپروانې نه پیدا کېږي
داخنګـه رېنـدي دی دعـالم پـه هرپـوخیز کې — داژونـد دجادغږدترانې نـه پیـدا کېږي
حمـزه دا انګـازه چې دروبـانه شمعې اوري — غوغـاده دخاموشـه پروانـې نـه پیـدا کېږي

۱۹۶۳ اپریل ۲۱ ـ لوارګی.

نـه چې هغه وایې، تروږمې کې به راتله کېږي — نـه نورادبره چې سپوږمې شي بیابه څه کېږي
وېره موده کېږي لاړ دمینې مې پرې ایښې ده — بیـا مې کلـه کلـه ژړېدوتـه ولـې زړه کېږي
مایې په غوسه[1] کې دبار خوکرمې لیدلې ده — څه پوښتې هغه مه خوتراوسه مې ساره کېږي
ګوره ورته کېږي دهرخوانه سلامونه دي — ځکه نوتوهین دخپل سلام خوله مانه کېږي
وایې چې بدي درته خواهش راپیدا کړي ده — څه چې دقدرت لـه وډي کېږي ولړه بـه کېږي
هله به اوحت شي چې عروج کړي دین دنیاسره — ورګوره مارغه، بـه دوه ځانګونوالوانـه کېږي
خپل هست دي خوان لره نکل کې دوصال اوسه — پرې پې پرده حالاتوته چې کېږي اوکه نه کېږي؟
ته زما دزړه نه به هیڅ ډول چې وتی نه شې — ښکلیـه په تاهم به وي چې څه زمابه زړه کېږي
خیر دپیښوردې وي، که غم وي په خیبر حمزه — سې به خنداکړي هغه واوري چې به غره کېږي

۱۹۷۲ اګست ۱۲ ـ کابل. (۱) آر: غصه.

(۸۲۴)

سپرلی شو د ګلزخو تماشا نه مې زړه کېږي — هرڅوک مې غوږن یم خوخندا نه مې زړه کېږي
توبـه بـه پسرلي کې لـه رنګینـه لبوتوبـه — باغ پرې دمه دبوی غوندې صحرا نه مې زړه کېږي
شبنم وي د فطرت په کار زړا نه مې زړه کېږي — ربدي پیاله په لاس کړه چې صهبا نه مې زړه کېږي
وارنګ په رنګ ګلونه چې حال نه وایې بس خاندي — وره چاودو راشې چې افشا نه مې زړه کېږي
سنبل کړه تښتنه د یار د زلفو د خیال جوړه — په هوش یم خبردم دي چې سودا نه مې زړه کېږي
ورانېږي مې هستي په ودانۍ کې بربوکي یم — وحشته پیچ و تاب مې کړه صحرا نه مې زړه کېږي
اغزي هم ځنګ ترځنګه شو دګل سره ملګري — خالقه د سپرلي ښکلي اشنا نه مې زړه کېږي
راغلی چې فریاد یې د جرس و په خواب کې — نن بیا هغې چیغې نا رسا نه مې زړه کېږي
حمزه دعشق په ګل کې مې هستي لکه نکهت شوه — روان یم نه پوهېږم چې کوم خوا نه مې زړه کېږي

(۸۲۵)

سېرلی شو، دګل مخېو تماشاته مې زړه کېږي  —  بې کور لکه نکهت شومه بېدیاته مې زړه کېږي

ظالمه اضطرابه یو کرم خو پسه ماو کړه  —  پس دومره مې خبر کړه چې کوم خواته مې زړه کېږي

چې زده د بربو کونه دوحشت نوی سبق کړم  —  ورځه هوشه رخصت یې چې صحراته مې زړه کېږي

لمسون د نکهتونو چې مستي د مېور اوږه  —  اشناسترګې راواړوه افشاته مې زړه کېږي

شاید چې لېونی شوم د بېلتون له ډېره غمه  —  ګرېوان ته مې لاسونه خي خنداته مې زړه کېږي

شاید چې دی هدل مې د منظر ددې نه پورته  —  دنیاته مې زړه کېږي، نه عقبی ته مې زړه کېږي

توبې مې د چلسترګي دي لېدلي چې تېرېږي  —  جامونه راته ست کوي صهباته مې زړه کېږي

هو نېاره اشنا ګونجې د تندي دې کړه اواري  —  خه ډېره مرده وشوه، خه وېناته مې زړه کېږي

حمزه ملتفت نه دی په ظاهر خو ملتفت دی

داځکه خو اظهار د مدعاته مې زړه کېږي

۱۹۷۶، اکتوبر ۳۱ سپتمبر ۱۴

بې مخې د هرچانه خپل اشناګڼلی کېږي  —  هرڅوک ه قتلول کا مسیحا ګڼلی کېږي

جولۍ کې د سېرلي د پرېشانونه سوا څه دي  —  ګرېوان چې ګلان څیري کړي خنداګڼلی کېږي

اخر به یار از روکړي چغلي د رقیبانو  —  دروغ چې مسلسل شي نو رشتیا ګڼلی کېږي

نن دلسي پټ الوتي چې شاید بیا به راته شي  —  نامه یې ده موجوده خو عنقا ګڼلی کېږي

مرې غنې نوري سترګې، لوی بانه، درازې زلفې  —  بس داسې یو پیکر چې وي زیبا ګڼلی کېږي

داځه عجیبه راز دی چې د هېچا اشنانه وي  —  خو بیا هم هغه بېګلی د هرچا ګڼلی کېږي

تعریف د یار د شرنو په مشرب د عاشقانو  —  زاهده هم ثواب او هم خرما ګڼلی کېږي

کثرت نه وي کاروان د لبو متوب کې د جنونو  —  وحدت یکې د خیال وي چې سودا ګڼلی کېږي

حمزه ستا د فطري دې سادګۍ سره حیران یم

ستا شعر په هرځای کې معما ګڼلی کېږي

(۸۲۷)

داغزل مې د زلمو د پوهې دامتحان دپاره په ادبي ځونډه کې مهمل ليکلى وړاندې کړى ؤ مـ ۱۹۶۱ء کې او نن سبا د اردو د ترقي پسندو شاعرانو مهملات هم دغه شان دي.

نيضونه دژوندون چې دارمان په مخ ځلېږي     نمرونه د وحشت مې دګرېوان په مخ ځلېږي
ماڼګې اوښکې چېر دغرېوله مخه شوې اوترې     طوفان دا سوېلو د اطمينان په مخ ځلېږي
داځنګه اسوېلې دپېماني په ست حلال شول     زېبرګې دصراحۍ چې دمېزبان په مخ ځلېږي
اغزي چې مخ په پورته اشارې کړي بربوکوته     بوکيف او مسرت دبيابان په مخ ځلېږي
داځاځکې دبقاچې مدح خوان يې دي ګلونه     استازې دفناد ګلستان په مخ ځلېږي
کړې کوم دسباستوري په قصه کې غزونې     مرګوديلتانه چې دعنوان په مخ ځلېږي
داځنګه انفعال وچې يې مينه کړه پرکوته     حمزه دانوي رنګ چې دجانان په مخ ځلېږي

(۸۲۸)

پښتون اشنانه اوښکې پښتنې ولې بوږنېږي     دې فکر کې حيران يم چې جرګې ولې بوږنېږي
بل هيڅ دا سې مقام زما وجود زغملى نه شي     منزل خو مې خپل ځان دى مرحلې ولې بوږنېږي
جوړ خاوره د مينې دجرس په غم ژوندي شوه     دا هغه پرېوکې دي قافلې ولې بوږنېږي

مطلع ثاني

لېاڼې انتظار دى زما شپې ولې بوږنېږي     وعده يې لاپه ځاى ده شوګيرې ولې بوږنېږي
تت شوې پکې نه دي او زما پخواني پلوشه     پوه نه وم چې تر اوسه ستا کوڅې ولې بوږنېږي
معلومه شوه چې نن به دراتلو وعده پوره کړي     که نه نو سپېږمي څه شوله ډيوې ولې بوږنېږي
ستاسترګې څه اوترکوې کاته يواځې راغلې     کورسه خووار خطا شو مېلمنې ولې بوږنېږي
اشنا مې راروان دى که نسيم د سحر راغى     بېدار ناسوري شوه بوې ولې بوږنېږي
سبرلي نه لاړ ږغې په ژړا دراتلو خواست کا     حمزه شو لاړ اوس نه مې توبې ولې بوږنېږي

۱۹۶۳ جنوري ۶ پيښور.

هغه څه ليکم چې په بيان کې نه ځايږي     هغه افسانه چې په عنوان کې نه ځايږي
څرک چې مجرد له تعلق شي دهرچا شي     ګوره چې نکهت په ګلستان کې نه ځايږي
وينم بې تنګي دې خوباور زما پرې نه شي     دا بېده جذبه خو په افغان کې نه ځايږي

زه دهغو سترګو ښتو په تصور یم | نور مې دوه جهانه په چشمان کې نه ځایږي
وصله دا شنا د مخ دېره دې واخله دروسه | دا دارمان په شبستان کې نه ځایږي
یو دی مېن زړه ورسره څو داوېنکو ځاځکي | داسې ښرا وستوري په اسمان کې نه ځایږي
درمن دې سبال کړه ته چې خېرېږې په جېرلو | تندر د ورېځو په دامان کې نه ځایږي
خاوره د حمزه د یار له دره چرته مه وړئ | شوره که بربوکې، په بیابان کې نه ځایږي

۸۷۰

اوس مې هوش ته پښه نیولې نفس رسي | چې تت غږ د لرې وتې جرس رسي
د حریص دوستي اخلاق ته بد هضمي ده | زهرناک دی که شکر ته مګس رسي
هیروه مې چې ترڅو د ریاد بدي شم | یادوم دې چې ترکومه مې وس رسي
رسېدل د شیطان عرش ته ممکن نه دي | کله زړه ته د مهنو هموس رسي
د ضمیر غږ دې ضامن د عمل نه دی | حمزه وایه چرته چرته عسس رسي

۸۷۱

چې مې دیوې د انتظا ته سپین سحر ورسي | د اطمینان سره بستر ته منتظر ورسي
د هنرمند و د غرور کړه دا سزا قدرت | چې بلندي د اقتدار ته بې هنر ورسي
هېڅ د بلانشنه نزول چې وي الفت ناقص | راشي بري تدرج تکمیل ته روڼ لمر ورسي
همته هلته معلومېږي به مېړانه د تا | چې بې حاصله انتها ته لوی سفر ورسي
په تصور کې مې تل تل لره اسپند د ککو | زه به رند یم مه که تا ته بد نظر ورسي
هغه دې پوهه شي چې وار د لوی خطر راځي | څوک چې مېنار د ناموری ته بې خطر ورسي
کاش د رحمت له بې خبرو خلقو پټ په پټه | حمزه محشر ته د ګناه پېټي په سر ورسي

۱۹۴۸، اګست ۷ _ لوړګی.

څوک چې د عقل انتها ته رسي | هغه د مینې ابتدا ته رسي
سناپه ککو کې التفات لټوم | څوک چې مقصود غواړي بلا ته رسي
اوښکې مې راغلې ستا د مخ په لیدو | نن ارمانونه مدعا ته رسي

لکـه دیـوه پـه انتظـار کـې د یـار — تش اسوېلي مې سپين سبانه رسي
خوچې اشياء په پورته تګ پرې نه ږدي — خوک څه مطلب دار تقا تـه رسي
حيف چې ګردابه زړه دې سترګه نه دی — زور دې لـه غرېـوه مرجوناتـه رسي
رانښتېدی نـه ودرېـدی شـې حمـزه — څـه کـه نعرې دې ناخـدا تـه رسي

(۸۷۳)

چې له عالم سره صحبت نه کړې جاهل نه رسي — چې بې په حق نه وي نظر هغه باطل نه رسي
چې دې په مخ د غم چپې واخلي مراد به مومي — مرجونه تلل دسيند په مخ کوي ساحل نه رسي
هغه قطره شه چې قرار دې بې له بحره نه وي — چې د ناقص نه کړې صحبت هغه کامل نه رسي
خوب د حمزد کله پرېږدي بانګ د عمل د جرس — (۱) لله تېره شي ګردونه بې غافل نه رسي
په لېونوېوري خندا د عقلمند ده عبث — څه زده هغوی چې تېر له سرنه شي څه دل نه رسي
د ناتوانی نه پسې شوې په چپا کې چغې — قيس له جرس نه بې خبر وايي محمل نه رسي
پل، که غبار، بانګ د جرس، که کاروان دی همه — ډېر عاشق لـه منزلونونـه منـزل نـه رسي
ګوره حمزه لا پوره نه وې چې هوس شي پوره — خيني ترې کور نه دې وا، خيني منزل نه رسي

(۸۷۴)

سترګو تـه ستا زمـا نظرنـه رسي — دا شـنا ور دومـره ژور نـه رسي
زړه به مې خوان شي ستا د مخ په رڼا — بې لـه سپوږمۍ نـه هيڅ ثمر نه رسي
دا بـه د تـا نـه بـې خبر ىـه زه — تا تـه چې هيڅ زمـا خبر نـه رسي
چې بـې همـت وې انتهابـه منـې — خواتـهـا تـه دا سـفر نـه رسي
عـشقه هنر تـه دې حيـران دی خـرد — دا شـنا درتـه بـې هنـر نـه رسي
مينـې عجبـه جـوارې ده د تـا — خوک ترېنه کور ته سر په سر نه رسي
درپغه لوګی مې درته زړه شوی اشنا — حيف چې محفل ته دا اګر نه رسي
مـه راکـوه داسـې غمونـه اشـنا — چې څـه د زړه، څـه د ځيګر نـه رسي
حمـزه خطـر د محبـت بـې ګنـه — دې کې چې تا تـه کوم خطر نـه رسي

۱۹۶۷، فروری ۲۲_کراچی

(۸۷۵)

مهربـان چې پـه هرچابانـدې مـولی شـي — نواختــــه دیاردزلفویــــه سوداشــــي
پــــه فنـــاکې دبقاخوندونــــه اخلـــم — چې فنالــه حـده تیره شـي بقاشـــي
حسن اوعشق لکه فتحه اوکسره شمارکړه — چې بهرشـي تـرې الف،الـف پیداشـي
خپل محل چې کړي مرض لکه دخان خپل — چې دسم سره لحیگرسم شـي دواشـي
پــه وفــاکې کــه وفــاغواړې جفــاده — معلومتیــادتعلق هــم پــه جفاشـي
ماگیلــه کــره سراســرمې غلطـــي وه — بېنوالـه چې څـوک ورشي بې نواشـي
دي زمـــاابوتراب،ثبوت بــــې داشـــو — چې شـامل دحرف الي سره حمزه، شي

(۸۷۶)

کلـه پـه دروغـو چې بـاور زمـا پيدا شـي — لـوز بـه د ښـکلي پـس دهغـه نـه رښتيا شـي
پټ د غیریت شي همـه سوري پـه وجود کې — خط د لستوا بانـدې چې نـور د مینې راشـي
حسن په ترخو کې هم خواږه لري که پوه يې — عشـقه مـه نیرېږه کلـه هغـه، کلـه داشـي
سـتا لـه التفاتـه بې خبرچې وې اشـنا وې — ښـکلي چې ددې نـه باخبر شـي نا اشـنا شـي
مړ کله ژوندی چې شي په مینه کې څو خله — بـس نوپـه هغـه بانـدې اطلاق د مسیحا شـي
زړه خو دې زما دی خوله سترګو دې وېرېږم — دالـي خای کې ګرځم چې اخفا شي نه انشا شي
پوه په راز د مینې شوم د مینې په لوړتیا کې — هلتـه مجـرده شـي هستي،مینه عنقا شـي
نه چې یکې تنګ شوې دازاهده وحدت نه دی — خبر د زره مرآت کره چې پیدا د "ما" "نه" "تا" یې

نه وایې دروغ ور خو حمزه نه رښتیا ښکاري
بلـه د دروغـو وعـده وکـره چې رښتیا شـي

(۸۷۷)

ستا په مخ که ښکلیه دموسکا زمه چپه راشي — بیرتـه راستنه بـه زماخوانـه زمانـه راشـي
ستادسروې قدسره سودادزلفوځه واېم — سـمه کـه خبره وې پـه خولـه زماکړه راشـي
زړه مې احترام کادهرښکلي چې خفه نه شي — څه به کړي ښتون چې بې حجرې ته مبلمه راشي
وې به څه سبب یې،څوزه هیڅ برې نه پوهېږمه — ماتـه دمحفل سترګي راواوړي چې هغه راشـي

ولې نریوتندی دي دمېن اوښکونه ونیوو بویه هر کلي ورته چې کورته بې جرګه راشي
ورځې خماري،بې خوده شپې دېسرلي ګوره خه وایم واعظ نه خویه زبه مې توبه راشي
بېکاري خه ګردونه،خوحمزه وبلې هیڅ نه شم ٥ دلیلې شوه که به دلته قافله راشي

۱۹۷۵ اپریل ۱۹ ـ لوړ ګی.

چرته ډک له جوشه چې کوم خوان په مخه راشي مانه نا پوره دی ارمان به محه راشي
پوکه نه پوره اونه،چې زه دي تصورکرم ولې مونیا ماونه خپل خان په مخه راشي
مانه شي صحیح،داې ملصده لرتقاهم پس به هر قدم چې امتحان به مخه راشي
لاه میخانه کې چې رندان په مخه راشي ګویا مابلده اشنایان به مخه راشي
را۱۰ رانه کیف دپښتونخوا په هندوستان کې کله حمزه علته چې افغان په محه راشي

۱۸۷۹

اختیار کرم کومه لاره چې صنم به مخه راشي پرسان به تري کومه که حرم به مخه راشي
احساس دغم مې نه وچې طالب دخوښی نه وم اوس زه دم چې هر قدم رانه یوغم به مخه راشي
دابېکاري چې زه بیا به تېروشو لاروسم یم چې ګوردم خپلې نخښې دقدم به مخه راشي
مانجام دفلک هم دتاله ستر ګو صدقه کړم پروا به بېړې ونه ګرمه که جم به مخه راشي
غیر چرته د "وجود" داحاطې نه بې خبره ستا خیال به منم هله،که عدم به مخه راشي
کربلېږ بې دخپل خوی لکه دخپلو زلفو نه خې ای دربغه که یو خل خوچرته سم به مخه راشي
ستا جم نه بې راغلی خوستاچه خویو جهان دی اوس خنګه به دي جم کې به ستا جم به مخه راشي
شاید چې علجکی شعور مې هم به نامېن دی ستا تېر یادونه خیال نه دم به دم به مخه راشي
حمزه داشنا وروځې شوي برهمې ستا په شعر انجام بې خه؟ چې توري نه قلم به مخه راشي

۱۸۸۰

ده چې به ښادا سوېلونه کېله راشي زره چاود به ګله مانه دسېرلونه کېله راشي
رنګ به رنګ دمرحلونه کېله راشي نیروخې ګام به ګام دقافلونه کېله راشي
لوطونه کوي ولې چې بیا سکته نښکته ګوزي اشنا دتا دسترګو سېتونه کېله راشي
محروم له ګل چې ستون شم دلمن نه مې رانیسي چې خاندي به ماپوري داغزونه کېله راشي
حوله خپله،بیاخبري به بردي زبه داولي دغرهوه سوزه دکه دزلمونه کېله راشي

کړي هغه هغه لورته چي پري تخنيږي دکاروان شي — خودمانه دصحرا دبربوکونه ګيله راشي
په غنوغنوګوري ماته ګوري خونه ګوري — داسترګي که ستاسترګي دي ددونه ګيله راشي
پښتوکه رانه پهاني ده پښتوخوده راپهاني — تل ماته په پښتودپښتونه ګيله راشي
مهلمه رانه خان ښکاري په خيل کورکي چي نه راشي — کوريه دتادسترګومهلمنونه ګيله راشي

بلبل چي دپښتو يې لاګونه کړيه سندرو
حمزه ستادغزل درنګينونه ګيله راشي

۲۰_لوړګي.

چي په سپرلي زاره ګلونه راشي — زمايه زړه نوي داغونه راشي
که شي لاهودزماني په چپر — په نوي رنګ مي ارمانونه راشي
زمادتن غولي بي ورانه نه کړه — که پري له غرمي بارانونه راشي
هيڅ دفلک له خويه نه زده دچا — کله طوفان کله جامونه راشي
دزړه نهال دی چي فنانه لري — غوڅ چي شي نورنوي ښاخونه راشي
دزړه په وينوکړي زلمي سوالونه — چي ورته ښکلي جوابونه راشي
چي توجه وي همه خان ته دچا — څه تعجب که الحادونه راشي
اوس انتظاردپسرلي به کوم — چي بيابان ته پيغلي جونه راشي
نوي نازونه چي اشناکړي حمزه — خرلي ته زمانوي سوالونه راشي

۱۹۷۶ مارچ ۲ _ پېښور.

(۸۸۲)

چي ګونجه په تندي مي دتقصيرنه مخکي راشي — تدبيريه هرڅه بوه وي دتدبيرنه مخکي راشي
واعظه دبهوا که زړه مقصودمي وايه څه دی — جذبه دمي نوشي چي دضميرنه مخکي راشي
بود بيد دنوروزلفولپوتوب راوبخښلو — داجاوي چي وحشت خودزنځيرنه مخکي راشي

مطلع ثاني

برداسي کيفيت مي دتقريرنه مخکي راشي — لذت چي دتاثيريې دتاثيرنه مخکي راشي
اى عشقه نه ښکارځي ته دښکلاولي ظاهرشه — اندازچي دنخچيريې دنخچيرنه مخکي راشي

کانه ورته لاځه کړې چې تکل بې هم مشکل وي — طوفان دنتداري بې دتصويرنه مخکې راشي
الفاظ ويله نيشي ستاصفت نه چې رادرومې — غويل دمعاني مې دتحريرنه مخکې راشي
اې عشقه ستا په خوب کې وينم زه هسې خوبونه — مصداق يې په بوآن کې دتعبيرنه مخکې راشي

شامل دې چې پيلتون شي حمزه دوصل وروستي دي
تحريک دتخريبونو دتعميرنه مخکې راشي

۱۹۶۳ اپريل ۲۰ - اوړ ګي. (۱) اړ پسکاور.

(۸۸۳)

چې يو بېنوونکي پـدې شـهر راشـي — دا يـه الفـت کـې ورځـې بـې راشـي
شـراب د حسـن دې نـشـه کـري سـوا — چې د صبح مالګـه دې پکـې راشـي
لـبم خوزمـا د زړه دپـوه شـه اشـنا — چې مخروني د شـرګيرې راشـي
ورشـه، خوږا په ورتـه هيـڅ مې نـه وي — قاصـده ګـوره کـه پـه دې راشـي
تـه اداګـاني نـوي نـوي کـوه — ماتـه پـه نـوري ولـولې راشـي
په بيونت نـدي مې اسـويلي کړه سـوا — ګـوره کـه اوښـکې وروسـې راشـي
نـوي سـوالونـه درتـه نـن کـومـه — کـه دې پـه خولـه هغـه زړې راشـي
راتـه محفـل کـې التفـات مـه کـوه — خيـر دې کـه ماتـه وسوسـې راشـي
پښتون اشنـاچې نـنواتې غـواړي — سترګو ته اوښکي پښتنې راشـي
خـودچې دزلفوپـه طلـب دې روان — لاړې دلاري تـه کـږې راشـي
چې اشګوتـه دې خيـر وګورمـه — ورتـه دحسـن قـافلې راشـي
نـوم چې دعقـل راتـه واخلـې حمـزه — بيـامې پـه خيـال کـې زولنـې راشـي

(۸۸۴)

چې لـه نـورو سـره هـم لـه تـانـه داشـي — کـه پـوازې دې پـه مـاپورې خنـدا شـي
چې هـمـه ګنـاه ګنـاه شـوم ګنـاه جـرتـه — خنګـه سوري بـه لـه سوري نـه پيدا شي
فراق اوږد شي چې بند بې د بند يز کړي — چې تيـاره نـه کـوي بـون کلـه رڼـا شـي
زه ښايسته وو يم په سترګو کې اخيستي — دچينـولي چـې يـو خـاي شي دريـاشـي
و حمـزه تـه ستمګر تـروه را واخلي — چې صـادره لـه رقيـب خنـي خطـا شـي

(۸۸۵)

درته ګورم ستا په مخ خو په نقاب شي ... که هر څو زالره خپل نظر حجاب شي
چې ستا مخ ته څوک په ډېر هوس ترګوري ... خو دغه به لکه زلفې پېچ و تاب شي
په تو په تو په سوې لا اختیار ستوا وي ... دغه شونډې چې کباب او هم شراب شي
زه په هغه چې زاره په دېر زلمي کړي ... د طفلي بې قراري ښکلي شباب شي
چې څه رنګ د افسانه لري عشق نه دی ... دا اخفاده چې پیدا تري اضطراب شي
په دا خیال ومه غافل چې وفادار یې ... چې کوم خیال په زړه کې ځای ونیسي خواب شي
چې مې پس له وعدې ورنې مخ ستون کړي ... ستا حمزه ته دې هم دا ادا جواب شي

(۸۸۶)

الفت به زما له ښکلي یاره څرګند شي ... اغیار چې کله ونې زما تویې کړي خرسند شي
چې سپین وینه ویاسي لاپې نور به عذر راشي ... واعظه تور ویاسه چې د سپینو راتله بند شي
نزاځه د بېلتانه چې څورنه شکې هند مه ... نرخولې به دنا کله دا شاد شونډې وخوند شي
ښکلاد ښورو لود اشناکې اجل پست وي ... څه زوند به وي چې عشو او نېغو نو سره ژوند شي
واعظه څه خبر یې د خو په منو یتو ورونو ... بیا به یې حقیقت چې دالفت درته څرګند شي
بیا وخت د بېلتانه به دې یاد یې درته وایم ... زړګیه که حاصل درته د یارد وصل خوند شي
غم څه چې حوادثو د الفت او به او یه کړم ... هر څو که ګوزارونه خورمه زخم مې پیوند شي
کړه وره دا جنبي د هغه ښکلي سره بویه ... ظاهر دي که الفت شو ورته، بند به وند روند شي
اشنا خو دا اغیار سره بیوا که ازادي کا ... لیکن چې زه ورمخ شم هسې دروند لکه الوند شي
حمزه دې شو ګیرو دې هیڅ اثر اپیدا نه کړ ... ای دریغه که دې خوب د هغه ښکلي په مړوند شي

پېښور، ۱۶ جولای، ۱۹۷۷

(۸۸۷)

چې د عشق حیران اباد وته څوک ورشي ... ورک یې عکس د آیینې نه د خطر شي
د نظر په غشو وله زما ستر ګې ... ستا کتو ته به هم دا زما نظر شي
څپور په مخ دې تور نقاب لره چې راغلې ... هسې نه چې په دا توره شپه سحر شي
خبردار د عشق وهغه وته وایه ... چې د عشق له دېره زوره بې خبر شي

زه په سمه لاره ورک د محبت یم — څه که خضر مې دلاري همسفر شي
کاینات د زړه، هم دا یو اسویلی دی — څه به پاتې شي که داخنې بهر شي
خوخوخل پرې زما پوهه تېر یدلې — له ساده ساده مخونو دې حذر شي
د نکهت غوندې بې کوره شه په عشق کې — څه په لار کې دې میدان او که کمر شي
د نرمخې په دید شبنمې گلې دي — په ژړا کې هم حمزه په خندا سر شي

۱۸جوری ۱۹۷۱،

که ناپوهه په کوشش کې بې قرار شي — هم له دغې ناپوهی نه به هوښیار شي
د اصول په نقطه ښخ د زړه قدم کړه — که په برخه دې گردش لکه پرکار شي
د بدانو په صحبت صافي بدنام دي — مجلسي آیینه تته په زنگار شي
کار له وخته پیدا کېږي خبردار شه — چې مرغی د چانه والوخې وزگار شي
د پاسته خوی په سنگدلو اثر نه وي — په خپل مخ د سیند څپېره به کهسار شي
د هوسی غوندې ارام په مېړنون کړه — چې جمود دې هم لرلی په رفتار شي
د حمزه د زړه مارغه جور لېونی یې — چې قرار دې په خزان او نه بهار شي

۳ مارچ ۱۹۶۱ پېښور.

(۸۸۹)

چې نظر د یو له بله برابر شي — که حبیب دی که عدو وبله سر شي
بېکاره عشق چې یمه بېکار د مرگ به نه شم — غشی څه کاچې سېوږمی د جابر شي
سا خیال دی چې په مخکې مې موسکی دی — سپوږمی خاندې په رڼا چې مخ په نمر شي
پرېشان لکه د گل شوې خانده خانده — د هجران شپه دې په غم ولې سحر شي
زهر گلاب به لاس کې خکه ورم اشنا ته — گوندې چرته یې زما په مخ نظر شي
عاشقان یې ارماني یار په گوشه کې — خضره خنگ او به د ژوند به میسر شي

حمزه تل چې کړې صفت د زلفو ستر گو
د قلم به سیاهي مشک وعنبر شي

(۸۹۰)

عشقه په داغه که شوګیرۍ په مخه درشي    هم به دلشناسترګې دېوې په مخه درشي
هرې مرحلې به راته دا په موسیده وي    لا به در لـه نورې مرحلې به مخه درشي
عکسه داشنا به بیله بیله کې موسکی شه    تاله چې مې اوښکې پښتنې په مخه درشي
وخته لې به خمګ نرۍ را تېرېږه زه ناتوان یم    چرته چې دحسن قافلې په مخه درشي
باده داشنا ورسره ګـره بـېره وکـړه    چرته که مې تېرې ورځې شپې په مخه درشي
هلته به چینه وي دژوندای دفکر خضره    خبر اوسه دزلفو چې تیرې به مخه درشي
خو دسخن تیغ دې له جوهره اشناکېږي    دېرې به حمزه تردې سرې په مخه درشي

(۸۹۱)

که دعکس مېلمه واېې چې مېزبان دجهان تنګ شي    دحیرت کوره ګیله کړه چې مهمان دجهان تنګ شي
چې ککې دمهرویانو یو زندان د وېښې عالم دی    دې رڼښا چې به مېن یې شبستان دجهان تنګ شي
لېونـو سـره دمېنـې شـودوي چې تـه خبـرې    بربوکۍ ځوندي به نابه بیابان دجهان تنګ شي
به پنجه د زمانه کې حوادث دي نوکې نوکې    به تود سرپټوب که ګرېبان دجهان تنګ شي
ستاله سترګو یم زړه نه بیا د زړه نه به ستاخیال شه    خپل جهان دمېن دادی که جهان دجهان تنګ شي
پته خوله لکه غونچه شه خرلوغ لکه نکهت شه    ستا ظهار نه دهستی به ګلستان دجهان تنګ شي
هر لدم به تغیر کې دژوندون یو نوی سرای دي    هسې نه چې له سکونه دا کاروان دجهان تنګ شي
له سکونه اشنا مه شه که ازاد ژوندون دې خوښ وي    ګنې یوه، شه چې به نابه دا زندان د جهان تنګ شي
شې راغوندې دې حمزه داسې به یثرب لکه ګنبد دی    داغبار وله برغل که مسلمان دجهان تنګ شي

(۱)ار یوه

(۸۹۲)

بیا یوه شه چې ختم دالفت به دې منزل شي    هر څیز چې ددنیا درته به مینه کې محمل شي
یو ښنې دې کیفیت دښکلا، هیڅ ویلی نه شم    کوم څیز چې د بر ظاهروې نو تفسیر یې لا مشکل شي
اشنا چې کله زه به تکـل ستادتصور شم    حیران شمه به دې چې مې خپل خان یکې حایل شي
دعـوی دخپلوونـوسـه بـه چـاکوې مینـه    هغه چې بې خبره له خپل حسنه وي قائل شي
حمزه چې نور همه واړه غمونه راونغاړي    دژوند به راز به یوه شي که داغم درته حاصل شي

۱۹۷۲ مارچ ۲۸ ـ لولړګی

**(۸۹۳)**

که میده شي اودانه دانه راټول شي  خوچې یوني. دالفت په لاړ به ګول شي
زر او زور به دې راز پر کړي زبردسته  که زبریې. زاردتاچې زور به زمول شي
بیادې هم له بې نیازۍ رد کوی شي  که هر خو به وه د بنکلیو په تل تول شي
لاس وابه د هغې سپورمۍ ښکلا شي  که غبار شي د هستۍ لکه د شپول شي
خان دې ز غوره همېشه له لوپه برله  درته چاوې چې به کم په واره سول شي
که دریاب وې هم حساب یې په سراب کړه  بس خوخفله چې داخل د عشق په چول شي
چې خلا دې کړه پیدا نوخان ته خیر شه  چې اوس بویه چې شپېلۍ شي اوکه ډول شي
د مغولـــو پر غلګرو پــــره نــــشته  که خواخوږی د خپل قام لکه بهلول شي
سرلوړي دې د پښتونه که زده نه کړه  حمزه پوه شه چې غلام به د منګول شي

۱۹۷۵ ع اکتوبر ۲۷ ـ پېښور.

**(۸۹۴)**

هغه چې د زړه رنګا رنګی ته بې سر خم شي  لوی جهان بې جام په لاس کې وګنه چې جم شي
مینه مې پخه شوه، اسویلي وې کلـه کلـه  خو چې شي لړګې په وجهد و لوګی بې کم شي
جوړه آیینه شوه راته ستاله پخه خوپه  دامې زړ ته ګنه تاوده اسویلي نم شي
اوښکې زما به اندازه کړی شي ستا د حسن  تول د پلوشو خو د سحر په پرخه سم شي
دوه ارخه فریب دې د نظر په هر یو خیز کې  نغې چې له خیاله خوشحالې کړې هغه غم شي
نمر د حسن ستا نه دې پناه د سترګو نمه  چرته دې که ولیدو د ګل نه به دې رم شي
دم د زړه حمزه اوس په دمه نه پیدا کېږي  شوم دې د اشنا کړه وظیفه چې د زړه دم شي

۱۹۴۶ ع مارچ ۱۲ ـ پېښور

**(۸۹۵)**

کوم بو ظلم کار د حکومت نه چې محروم شي  هغه په ظاهر کې د ایوب غوندې مظلوم شي
بام کړه اشنا دې چې په مینه بوهه نه کړې  تل به وې د نورو ته سخي تاته به شوم شي
ژوند د هغه څه چې د اشنا له سترګو پرېوځي  بس لکه د اوښکې غوندې ولوېږي مرحوم شي
مه وایه بخرا ورته چې پوخ د محبت دی  ګوره که ثابت د امتحان په وخت کې اوم شي
تاچې د یقین په سترګو ولید پټ مې بویه  جانه که ظاهر دې کړو هم تاته به موهوم شي

پټ به کړه اشنا که پوه زما په محبت يې | او ګنې خبر شه زما نوم به د نا نوم شي
ښه به بې غمانو ته هوا د پسرلي وي | چرته به مېن باندې چې وبلوسي سموم شي
کله کله زه چې شمه ګویښی له غمونو | پوهه هغه وخت شمه چه زور به يې هجوم شي

مه کړه حمزه د رسوايي وېره په عشق کې
حق ده چې پيدا د هر لازم سره ملزوم شي

۱۹۲۹ مې ۵ پېښور

(۸۹۶)

سر تر پایه که په مینه کې معدوم شي | که عالم ته نامعلومه وي معلوم شي
دار ن به ملګرتیا شي زړه بیا که | که سری دي د ملشوم سره ملشوم شي
دا پخې سترګې دي ونښه زاهد ته | سالې هسې نه چې پياتې درنه اوم شي
شکایت چه د جفایې را په خوله کړم | هغه شوخ په رب د سترګو کې معصوم شي
چې تکل بې د موسکاکومه چرې | عجیبه چې تصویبې را نه شوم شي
عقله ستا د ضابطې نه ژوندون نه خي | اوسېلي شي چې په خوله مې د بار نوم شي
د دیدن خواږه بې کله کله به وي | دا غم چې تل تر تله شي زقوم شي
هغه پېر د مینې غم، وروسته حیران یم | چې نا ځایه جوړ تري ځرنګه هجوم شي

نشته شک، د خوښې شاوې د حمزه ده
که هغه دلربائي کره زړم شي

(۸۹۷)

ځوکه د سموم غونډې غلیم وي خونديم شي | بیکلیه ستا په بام چې رانېرشوي وي شميم شي
خدا پوه که طوفان د سیلې هم راشي په زور کې | ستا د قدم نخښو ته نژدې چې شي نسیم شي
ځوکه کله کېږدي زما زړه کړوجوړ دې نه که | نشته فکر نشته، خو موسوم به په حطیم شي
بخل خو هر ښه دی د مېهن مینه سوا کا | دې ته حیرانېږم چې پښتون ولې لئیم شي
نه به وي وحدت د محبت ته رسیدلي | زړه د کوم مېن چې په دې لاره کې دوه نیم شي
کمر د هجران د روژې چرته ممکن نه دی | ځوک که د دې لارې مسافر او که مقیم شي
زړه نه دي حمزه د ماسوی خزلې لرکړه | دا به مهرو یانو د جهان لره حریم شي

۱۹۷۵ فروري ۲۲ لوار ګي.

[۸۹۸]

ختم چې دا پاڼې لږ ضمیرهم د اسان شي
وایه بیا به جور له دې جهانه کوم جهان شي

چاوې چې ماضي خو دی ښخ مري مه یې سپره
ذکرد خوشحال مې رالژوندی کړې زړه مې خوان شي

جوره ارزاني به شي د ښکلیو په دېدن کې
قدر د خودی او سرېتوب که په ناګران شي

څه به درته وایمه د عشق له ستوماني
هر انداز د حسن چې ورده ته امتحان شي

شرط یې دی همت که د مهرې په پل روان وې
لیک به یې په برخه د بدبه د سلیمان شي

هره افسانه ده، افسانه زما ترحشره
څه شي که پیدا ورته خوخورنګه عنوان شي

مینه لیـوني د امتیاز قابلـه نـه ده
وکړې د لمن سره هم، څه چې به ګرېوان شي

تاچې په محفل کې دی رتلی شمع رویه
عمر د هغه به د لوګي غوندې پرېشان شي

پوارمان د وصل نه خو وګوره په عشق کې
جونړې په تنګ تنګ کې پرعظیم غوندې کاروان شي

دا نوی کرم او که ستم مې د صیاد دی
بیرته مې کړکی په پسرلي کې د زندان شي

غم د بیلتانه خو بلا ګران دی هم مې خوښ دی
څه چاره د هغه چې هم ګران شي هم اسان شي

مخ چې آبېنې ته کړې ساده کانه کړې
بیرته چې راستون شي په خاې ودرېږي حیران شي

راشي حمزه داسې هم مقام په محبت کې
هلته پیرزوینه چې په بل اونه په ځان شي

۱۹۲۸ فروري ۴ ـ د لاهور نه د پېښور په لاړ

که لـسـت زمادګل غوندې ژوندون شي
چې حاصل د موسیدومې زړه چاودون شي

نه خوخوان شـوې خوخواني لاړه ارمانه
لږ خو وخت وته غږ وکړه چې راستون شي

ستاپه سترګو کې لښون چې د سکون کا
د هوس غوندې بې ژوند په مېږنون شي

خـې جرګـه دانتظـار مې دلبـونـه
په الفت کې د سحر په وخت شبخون شي

خو بس روغه د یار خیال ورسره وکړې
چې کثرت د خیال یې ختم شي مجنون شي

سرد حسن به یې ښکته شي په پښو کې
هره د مینې که په شاني د پښتون شي

دایره د ګرد فلک یوه نقطه شي
د حمزه چې سر د فکر په زنګون شي

[۹۰۰]

رالشي غريزوچي بس له ظهره هغه شوخ په موسيدو شي    هلته لبې خندنې شي دلته لب په ريډوشي

دبنگ غونډي مې پرېږده خپل طواف ته شمع رويه    په گرمي د دېر ديدن مې حوصله دسوخېدوشي

خانده خانده خوروفا به دشنم درته نماشي    په ژرا به شي گلابه خوچې نمريه ځلېدوشي

چې کامل دچاجنون شي دادعقل پختگي ده    بيلوحشت له روغونه کړي چې سوداپه ډېريدوشي

زره امين دميني نه دی چې گودر د حادثودی    چې گرداب لره څه ورشي خامخاپه بهېدوشي

که دي خوندگناه واخيست ورپسې به گناه کاندي    داحصه دمهرنوده دضميرپه ماتېدوشي

که خپل خان ته ملتفت شوي التفات دبېگليو غوازه    نه به ستاپه چېغوشي نه ډ دوی په اورېدوشي

خپلې ميني لره زه هم کله کله محتسب شم    زه لتون دخوشحالی کړم چې مې غم په کمېدوشي

حمزه رنگ دي لاد لوس نه په وحشت دغه لباس کړه    ناردعقل شي اومري چې الفت په پخېدوشي

[۹۰۱]

خوبن يې چې کړې هغه دي دخولې نه په واته شي    راز نه دی هغه چې په غوږونو اورېده شي

زور هغه زلمی دی چې له عشق نه ناخبردی    هغه زلمې بوله چې په مينه کې زاړه شي

داخوته کيسي مدام دخپلې جفاکاندي    څه وکړم علاج چې مې په زړه شي ستاپه خوله شي

ته چې دسباسبا وعدې په هر سبا کړې    هغه سبا رانغی سباته خدای زده څه شي

ته چې هسې وايې چې زړه صبر کړه له مانه

دامهم خوگران دی له حمزه به پوره نه شي

[۹۰۲]

## نيمگړې غزل

گرمې که چې نمر دمخ يې موښې ته رانژدې شي    بياکوم ساعت زمونږه نه چې لرې شي ساړه شي

لهمه نه دې حباب دې دهستۍ پوه هوا ده    بس داهواچې لاړه شي بيا هيڅ نه وي اوبه شي

محسوس پکې جهان هغه محسوس دی په جهان کې    لهمه په داجهان وي خوکه ستالهمه لهمه شي

مشوله ورځ وي لنډه چې وزګاره شي اوږده شي    دلستاوهم وخيال دی که څه لنډاو' اوږده شي

داځه چې بديهي گڼې ضدهم يې بديهي دی

که هغه بديهي نه وي نوداهم گوره نه شي

(۹۰۳)

څه چې ستا د خولې نه شي بهر ز دزړه شي
څه مې چې په زړه بانديې شي بوره نه ستا په خوله شي

تنده به دیدن کله ماتیږي د مېنو
یار ته چې کوم دم شي مخامخ اوبه اوبه شي

بیا د زړه به خواکې پخواني غونډې ښکالوده
بیا که محبت پېښه راوکړه دا به څه شي

خاره دې چې ورلاندې وتم زه دمیني یار نه
اوس ورلاندې تله نه غورېږي داونه بې وره شي

زه دعشق د ستغ سره پلد بعه پوهېږم
ستغې چې په خوله کوي شېرینې په لهجه شي

زه دمحبت په خاموشیو کې هوښیار شوم
کوم چې خبرې د مطلب وي به لهجه شي

هر څه چې حمزه ته وايې وايه ښکلیه وايه
ستون چې کړې جواب درته هرګز به دلونه شي

۱۹۵۰ سپتمبر ۲۷ ـ لوارګی

ښکلي چې اشناپس له سینګاره بوېه دوه شي
حسن بې دحسن مستعار وته لعبه شي

عشقه لم په خود شه کله ښه او کله نه شي
ښه اونه دحسن کله نه او کله ښه شي

زه دسترې زړه نه تصور دا شناغوارم
زه ترې کرم طلب دخوشحالی هغه خفه شي

فکر چې زما دیار دزلفو په تاوال زانګي
شپه دانتظار دې دمحشر هومره اوږده شي

۰۰ دزلمیتوب دی که ګناه وي ګناه چرته
بت په تن کې سوری شي چې نکنده غرمه شي

بوپرېشانه خیال دی کله زړه چې تخنوي دي
یا دزړه بلبل چې اسوېلې وکانغمه شي

ته دحمزه څه یې که رسوا شو نو رسوا شو
مستا به مخ پیدا دانفعال ولې خوله شي

۱۹۵۰ سپتمبر ۱۵ ـ لوارګی.

(۹۰۵)

اشنا که مې له حاله خبردار شي رابه شي
اوس مست به خیل جمال دی چې هوښیار شي رابه شي

محسوس له دېره حسنه کړې خوبروکمې دحسن
اوس بو به بوېه خلاص بې چې سینګار رابه شي

بایست بې کړه خواني دبې نیازي به خوب ویده
بوخوږ ورخې خمار دی چې بیدار شي رابه شي

دشبوورخوبه رنګ کې مې چشمان دي لاځلط
حاصل دانتظار چې انتظار شي رابه شي

حمزه وصال خو مرګ دی ته بې غواړې نه راځي
وار وکړه چې دې ژوندي چې بې ولارشي رابه شي

(۹۰۲)

زاره اخلاق دي پـه ورورستوسـلګو — داخنکـدن دجهـان څنګـه بـه شـي
داتغیـر پـه کـوم طـرف دی روان — خدای زده ضمیرداناـن څنګه به شي
قـدرت څـه نوي افسـانه کره شروع — خـوتعین دعنـوان څنګـه بـه شـي
تولوګلانوتـه یورنـګ شـوغوره — اوس ګلستان، ګلستان څنګه به شي
اوس هرانسان آیینـه ساز عوندي دی — خان بي که وموندحیران څنګه به شي
مینـه اوحسـن دواړه ګډشوسـره — وایه وصـال اوهجران څنګه به شي
پـه فردیـت کـي جمعیـت شـوپیدا — اوس جمعیت دپرېشان څنګه به شي
څـه تقاضـاکوي فطـرت خوڅـه ده؟ — ولـي پنهـان ده عیـان څنګـه بـه شـي

(۹۰۷)

وایي چي موسکی شمه مجنون به شي — پوه خوبه اسرارو د ژوندون بـه شـي
چـاوي محبت چي کـامجنون بـه شي — وي بي په خندا پـه زړه چاودون به شي
بـه شـوه چـي الفت رتلی کـهي تـل — چرتـه کـه احساس وکاپښتون به شي
څوک چي په معنی شي داسمان په څېر — سرېي که څو لوړ وي په زنګون به شي
ستاناشوني، ستاخبري، ســـتاویل — نشته په قانون کي، خوقانون به شي
یـــو دغزل شــعردي اشـــناولي — لړکـه مرصـع شـولو مـوزون بـه شـي
غږدمحبـت کـه پـه صـحرا وي هـم — غږېـي دګنبد ګنـه راسـتون بـه شـي
کور ته مي مرګی نه شي راتلی چري — دار بي له دي کېږي چي ژوندون به شي
غـم کـه دبېلتـون پـه کمـهدو شـي هـم — غـم د رقیبـانو دلـمـون بـه شـي
زمول که حمزه ستاشـو د هستي زړی — اوبنکي دي ژوندي اوسه زړ ن به شي

(۹۰۸)

خـوف مـي کـه هـر څولـه خراباتـه شـي — تـنـده مـي لازیاتـه لـه برسـاته شـي
رنـګ بـېـي د حـالاتو، بي لوتـو وي دا — تبـه د فطـرت چـي کلـه ماتـه شـي
پوه که شوهر څوک چي ده هستي سراب — تـنـده بـه بـي څښود هغـو ماتـه شـي

دا لا عجب کار دی چه رامخ شې ته　　زور مې د غم لاشې چې غم شانه شي

خوند د کتو دا چې کتل هېڅ نه وي　　مخ چې د تا مانه، زمانانه شي

تېت شي نظر ستا په بوړن دا ولې؟　　خوف يې د پښتون له ملاګانه شي؟

مخ دې که هرڅانه وي خوبيا نه دي　　خاته يې رامخ کړه چې هرڅانه شي

ورک تر هغه منزل کړې تصور د تا　　تېر چې مې ستا له مضافاته شي

يو د سحر ستر ګې حمزه راکړلو　　داغ يې دويم خير لوه بېګانه شي

۱۹۶۷ مارچ ۲ ـ کراچي

په خبله بې لوظي که ستومان وې په داخه شي　　هر څوک که وعده وکړي پښېمان وې په داخه شي

سېرلي د رنګينيو په جامه کې راغلو الوت　　ګلان که ورېسي خېرې ګرېوان وې په داخه شي

چې ګردوته د بار د قافلې رسېدې نه شي　　الوت لره که تنګ يې کهکشان وې په داخه شي

جوهر د اګاهي په د برتراش خراش پيداشي　　بې دې که آيينې غوندې حيران وې په داخه شي

بنياد د تعلق دې وي قايم له هغه ګله　　که څوک لکه نکهت ترې ګرېزان دې په دانه شي

مشکله مرحله خوېو اوېل ته دکتوده　　اسانې که خبرې په چشمان وې په داخه شي

ارمان دې خوانمرګ چې د پېغور له وېرې نه کړې　　بياتل که دې ارمان پسې ارمان وې په داخه شي

واعظه چې نه نه اورې بوهېږې چې هوښيار دې　　غافل که په ظاهره کې رندان وې په داخه شي

حمزه لکه غولي به شي فنا حاسدان پرېږده
غرور څنګ يې که په لورې د اسمان وې په داخه شي

۱۹۱۰

څومره مهن ته چې اسان ليده شي　　هومره بيا غم د مينې ګران ليده شي

اوښکې مې ستا د مخ په يادا ورې　　تا و د غرمې لکه باران ليده شي

چې آيينه د حقيقت نه لري　　هغه به تل د رته حيران ليده شي

څوک چې له عشقه اشنا ستر ګې لري　　زور که مهن وي ور ته خوان ليده شي

چې نه پايېږي خو سراب يې ګڼه　　که په ظاهر کې د اجهان ليده شي

هغه چې په خیر کتو خفه شو سری وخوښتو
سخ دعاشقۍ شه که په دومره تاوان جوړه شي

یرون دي که په لاره و دوفا یوه یوه کعبه
خدایږو چې د تا د هر قدم په نښان جوړه شي

بت چې غلجکي وي د هوس پکې حمزه کله
عشق دی؛ خو د نیا تر ینه د وهم وګومان جوړه شي

۱۹۷۲، جوري ۲۳ پېښور.

(۹۱۴)

بېرته چې نوي شي پخه جوړه شي
که اشنايي هغه زړه جوړه شي

زه چې زاري تر انتهايه بوخم
ستا د انکار نه به وعده جوړه شي

حسن دي چې هر مه ګستاخي کومه
چې د ښکلانه دي لمبه جوړه شي

ورځ نه ده، ستاله مخه ورځ ښکاري
را خپرې زلفي کړه چې شپه جوړه شي

زه په خپل کور کې د مېلمه غوندي شم
هغه چې را شي کور نه جوړه شي

چې مې په خوله شي د مطلب خبره
لکه ماشوم هسې ساده جوړه شي

د خير کتو رانه خواهش مه کوه
په اشنګوره دي غرمه جوړه شي

چې د صحرانه آبادي ته نه ځم
هره کوڅه د تا کوڅه جوړه شي

د هري ګناه چې شي را جمع سره
تر ينه کچه غوندي توبه جوړه شي

چې کله مهر کله قهر کوي
نو يارانه به د هره بڼه جوړه شي

د دې پښتو نه بس جدا ږيره حمزه
له کوره تېښتې چې جرګه جوړه شي

(۹۱۵)

ښکلې که کوزه وي چې ير ناڅاپه بازه شي
بس شو بس له دې نه حقيقي يارانه سازه شي

اوس دي التفات وېښم خوسوال د وصال نه کړمه
ښکاري چې تکميل ته مينه ورسي بې نيازه شي

اوس د مينې زړه له هغه کعبه سره خوښ نه دی
خدای زده اشنا ولې چې اوس وارمې ستاله نازه شي

غم خورانه وشو اجازت که يکتايي را کا
وار د جدايي مې په جواب له خپل اوازه شي

ته پخپل مکان کې د ومره نور وسعت خوراوله
خير د زړه مارغه مې که بيا پاتې له پروازه شي

خدای زده چې لتوردی د وصال لوکه څه يل سبب
نن د غيريت جلوه چې ستاله هر اندازه شي

عشق له د حمزه په خوله دي ښه چې مهر وراغه
حسن به بې آب شي که پرده پورته له رازه شي

(۹۱۶)

نوم د مین چې داشنا په خوله شي — نوم د مرده د مسیحا په خوله شي
بنکلیه نامه دې د هرچا په خوله ده — نه، که دجانانه دستا په خوله شي
د ژوند دروبېزه چرته غوارم — چې به دنیا کې یو دتا په خوله شي
نوربه نو نوم داشنانه یادوم — گوره که نوم مې داشنا په خوله شي
چې دې ببلتون راته غانبونه چیچې — ور زماخکه خندا په خوله شي
ته که موسکی شولې حمزه ته اشنا — هغه خبره به یې بیا په خوله شي

(۹۱۷)

پورته کړه نقاب دې چې دنیا لمبه لمبه شي — را دې شه په مرو چې مسیحا لمبه لمبه شي
راښه کړه د گل او د نرگس جگره خلاصه — هغه چې غوبږ غوبږ شي درته، دا لمبه لمبه شي
زه به زره داغونه چراغان پورازې نه یم — ستوري به هم تول درته بیگا لمبه لمبه شي
گرانې د پښتنو بنو که خوږ وي به دروغه — زخم به هر یو ورته رښتیا لمبه لمبه شي
هر شی د دنیا درته په خپر دې خفه نه یې — برته شي چې کوم دم درته حمزه لمبه لمبه شي

۱۹۵۹، اکتوبر ۲۵ ـ کراچی

خیال چې یوشي کار یې یوشي فرزانه شي — خو یه خیال کې دې د هر کاري دېوانه شي
که حریص لکه مچی لري سل خونې — خوا خر لکه د مچ به بې خانه شي
ستاثنا ته به تسبې شي ساه د خلقو — که راتولـه دې د ژوند دانـه دانـه شي
چې اشنا د بهانې سره کړې طبع — لغزېدل د هغه کس به بهانه شي
د رباب د هر یو تار که بېل بېل هنگ وي — د مطرب په لاس تري سازه ترانه شي
حمزه نشنه ادیبان په پښتو کې — څه به کار که خزانه به ویرانه شي

(۹۱۹)

ستا مې شمع رویه په سوختن چې پروانه شي — ستا مین به بې له دې شي څه چې پروانه شي
بو طرف دچابکلې خواني به ورانېدو وي — بل طرف ته جوړه دچابکلې افسانه شي
رند غوندې زاهده دوه جهانه یومفهوم کړه — مانه دا کوزه کړه چې ترې جوړه پیمانه شي

خودشي ورته کنده، دصحرا دتندي ګونجه ‏ ‏ ‏ ‏ څوک چي بربوکی غوندي ناڅاپه ديوانه شي
تاکه پري پيرزد ښله سبۍ دالتفات کړه ‏ ‏ ‏ ‏ اوښکه دارمان به مي ښاغلي دُردانه شي
ولي ورته زه به بي لوظي وړيادومه ‏ ‏ ‏ ‏ ولي دخفګان يي راته جوړه بهانه شي
هره ورځ ګنمه خه خامي به وظيفه کي ‏ ‏ ‏ ‏ بله به تماشام کي چي ډېوه به ميخانه شي
څوکه التفات يي بوړښدلی غوندي ښکاري ‏ ‏ ‏ ‏ جذبه زوردي دپرشه اوس به جوړه يارانه شي
خبر حمزه که مست نظر يي تل ترتله برند وي ‏ ‏ ‏ ‏ کوز چي ميخانه وي دچاڅه به فرزانه شي

۱۹۵۰، اګست ۲۳_ لوارګی.

طلب د يار زرګيه پاڅه په پالنګ نه شي ‏ ‏ ‏ ‏ حقه صادق نه دی چي يار پسې ملنګ نه شي
څکه حيران يم چي لاسونو د صنم له حنا ‏ ‏ ‏ ‏ د زړو زړونو که وي خون، نوبه په رنګ نه شي
منزل چي شپه کره اختيار په سينه ورځ مه کره پوه ‏ ‏ ‏ ‏ واصل په شمعې سره بې له شبې پتنګ نه شي
در ډېوه د سپين بشر که راعطا کړي صنم ‏ ‏ ‏ ‏ چي بې قرار زړه مې په نورلحد کي تنګ نه شي
وازه خوله لکه برزخ په انتظار نبولي ‏ ‏ ‏ ‏ حيف چي دلبر مې پس له مرګه هم ترڅنګ نه شي

چې په کوڅه دفخر علم کې لشار نه شي
ستا به حمزه جامې دعشق په خم کې رنګ نه شي

۱۹۲۱

شيخ به ساقي په بل څه رام نه شي ‏ ‏ ‏ ‏ څو يې ترخولې د ميو جام نه شي
زه آينه دزړه ستا تم درښيي ‏ ‏ ‏ ‏ چې ښکل جمال ورته دې بام نه شي
زه دې مېلمه ته مې کوربه شوې اشنا ‏ ‏ ‏ ‏ کور مې درخارڅه انتظام نه شي
زما او ستا مينه دې ګوري رقيب ‏ ‏ ‏ ‏ سود مې د زړه په انتقام نه شي
وکړه د زړه د تعلق نه تېرس ‏ ‏ ‏ ‏ اوس جدايي په تش سلام نه شي
ته که مدام په بام يې عام نه يې ‏ ‏ ‏ ‏ څنګه دی خاص حقه چې عام نه شي
ته سلامت اوسې ريباره زما ‏ ‏ ‏ ‏ سوال د وصال ورته مدام نه شي
راشي په خلقو کي تنها نه راځي ‏ ‏ ‏ ‏ مينه يي شته څو چې بدنام نه شي
د زړه سره واخله نظر دَ حمزه ‏ ‏ ‏ ‏ ددې داني سره چي دام نه شي

(۹۲۲)

پام چې تمنادې بې نشې نه شي — لندې مرحلې دې چې اوږدې نه شي
خانده هم داهسې زما اوښکو ته — توله شپه دې ښکلیه دیوې مرې نه شي
عشقه پښېماني به میومستي کره — پام کوه چې جوړې ترې توبې نه شي
داسې اوبه هم ساقي لرې که نه — کیف بې وي سرا خوستر کې سرې نه شي
دومره ستم مه کړه چې دزغم نه وي — چرته دعاګانې مې ښېرې نه شي
جارله همه ښکلیو ښتانه زړونه — بندې به داښکلېه حجرې نه شي
هومره مې خواني دغزل پاتې دي — خوچې ورکې ستا ښکلې غمزې نه شي
مینځ کې زمونږ خای داغیار چرته دی — دوه خودوه وي تل، چرې به درې نه شي
تللی دی حمزه پښتون اشناوته — بیخه راوا پس به مې جرګې نه شي

۱۹۷۷ حسمبر ۲۰ پېښور.

(۹۲۳)

چاوې چې اشنامې موسېدې نه شي — څه کرم چې مې سترګې غړېدې نه شي
راشي محبت دمحبت سره — اور چرې بې اوره لګېدې نه شي
ګډ مې په فطرت کې ستادمخ"(۱)" — اوښکې مې له سترګو بهېدې نه شي
پل غوندې چې ستاله دره ستون شي څوک — بیرته په شا پاراستنېدې نه شي
راشي خوارمان بې لمن تېنګه کا — اوښکې مې له سترګو څڅېدې نه شي
څنګ به کړي حاصل دمحبت مقام — څوک چې په بې مخیو غولېدې نه شي

۱۹۵۴ م ومنی نومبر پېښور. (۱) مصطفی دی.

(۹۲۴)

اوښکې مې دسترګو نه لوېدې نه شي — اوس مې خیګرنور اوبه کېدې نه شي
پنده به خاطر مې شي ورېبخ دغم — راشي ورېدوته، ورېدې نه شي
جوړې ترې دانې کړې جوړې ستاکتو — اوښکې مې له سترګو بهېدې نه شي
اوښکې مې راتلې پکې موسکې شوې ته — ودربدې، روښانه شوې، لوېدې نه شي

تازه چې داستادي د نرگس کتل    کوږچې کړي بېلتون راسمبدی نه شي
نن يې دمابام وعده راكړې ده    ستوري دهيبت نه خلېدی نه شي
اوبسكو حمزه غم كړو نمک خوړزما    اوس خواشاري دي دوبېدی نه شي

(۹۲۵)

ژوند په بها بيار استېدی نه شي    زړونه ورکېدی شي خرڅېدی نه شي
واخله زړه درجار که غورځوي يې نه    داپاره خوبيار اتولېدی نه شي
نن مې چې مشعل نه کاکاروان دشعر    هومره له دې چوله تېرېدی نه شي
نن يې درانلو وعده رښتياده جوړ    ستوري دهيبت نه خلېدی نه شي
ستاد بدن داسې هنرمندې دي    اونسكې بهېدی شي څڅېدی نه شي
خوږي د زړه دې سترګونه وزده کړو خو    غلا چې نظر وکړي پټېدی نه شي
راشي زما اوښکې خوتېږيږي نه    ستوري که غرگند شي ورېدی نه شي
مړ به شي په خدا زړونو کې عشق ته    اور خو په دي بادکې بلېدی نه شي

سترګې چې حمزه لکه شاهين لري
څوک نري دخپل ځای نه خوځېدی نه شي

(۹۲۶)

بلوسه[1] دسکون چې محبت ژغملی نه شي    څکه مرحلې يې حوصله لوټلی نه شي
مينې زه پرداسې بې طرف مقام نه بوتلم    هلته زمانه چې په لمحو وېشلی نه شي
څکه لېونې دابادې نه خې صحرانه    تاوراتاوچې نه شي بېرېوکې ختلی نه شي
مانه اظهار روايې نابللی، شمع رو په    وې په خومحفل نه بڼگان بللی نه شي
شه غواړې، څه نه غواړې دښکلیو دااندازې    بې عشقه، په ثله دشعور ژللی نه شي
ژوند راکوې، ولې چې طلب يې درنه کرم    دې نسه خوانداز دمسيحاويلی نه شي
ستاشنې گله دهستې له رازه څه زده    ويه خاندې څرنګه چې څوک ژړلی نه شي
څوک ه سترتيابه ترجمان دنیاز دعشق دي    بياهم څوخبرې دمحبوب منلی نه شي
ستا به خيال مې برنه شول په زړه کې نور خيالونه    دېرې که تياري وي خورناشړلی نه شي
ورسېدو ناته اوس يې کوريه زړه ورېږي    راز دمينې نور درته حمزه ويلی نه شي

۱۹۶۲ اپريل ۱۲ پېښور.    (۱) آرام لوحه.

(۹۲۷)

رانـه انتظاره ورخې هم چې زما شپې شي — داسې شوګيرې چې مې خوبونه شوګيرې شي
مـه وهـه پـرې ورسـره عـشـقه لاز دې تېـــه — بڼې بـه پخپلـو کـې دا واړه اند پښتني شـي
زه د هغـو سـترګـو لـه انـدازه خبـر نـه شـوم — کله شي هندکې او کله برندې پښتنې شي
عشـقـه نـه چـې هـسې مخـالف د زمـانې يې — خدايږو چې تېرې بـه د وختونو درېـسې شي
هـره مرحلـه د تـا منـزل دی کـه پـوهيږې — ستا د خودبينۍ نه وروسته د پرې مرحلې شي
لرې دې که زنګ د ماسوی کړو د خپل زړه نه — تانـه بـه ذرې د کايـنـاتو آيـيـنې شـي
راشي پرې خزان د بېلتانه قسمت يې ګوره — تل چې د مـين د ارمانونو شونډې شنې شي
عـشـقه عجيبـه خـصوصيت دې دی موندلی — څومره چې اشنا د تا نه لرې شي نژدې شي
نـه چې دې ممـزوج پـه محبت طبيعتونـه — ما حمزه ليدلي هغـه واړه وسوسې شي

۱۹۶۶ ستمبر ۲۸ ـ لوارګی.

همدمان کـوې اسـرار کلـه پټـودی شـي — چې ستا راز مې په خوله راشي اسويلی شي
کـه اشـنا راسـره يـو دی خـو بيا بېـل دی — په کوښښ سره څوک خپل سيوري نيوی شي
په سروشوندوکې موسکې شوې زړه مې يخ شو — لږ څو کښينه هـسې نه چې د زړه سوی شي
قربانـه دې خـوی دسـترګو دی اخـېسـتی — کلـه سـتن د اطمينان، کلـه اغـزی شـي
ستاسرې خبرې واپسې خـوی دې سـور دی — څوک به څرنګ تاوده نه خوړې چې سړی شي
ستاسـتم مـې بيابـان د زړه ګلـشن کـړ — کـه وچ ډاګ وي د شـودپارې نـه پټـی شـي
دحـمـزه د زړه د بـاز برخـه شـوه مينـه — وښې نه شي جال د خان سره که وزې شي

(۹۲۹)

چې مين د خپل اشنا د کوڅې سپی شي — عـاقلانو دې ويلـې چـې سـړی شـي
مـين مرنـه دی چـې تـاز دتعلـق وي — د پروتـې غوښـدې بـسام وتـه خنـی شـي
عمر پـر بـرده چـې پخپلـه خوښـه دروغـې — چې لمن وتـه يې لاس کړې کړندی شي
پـرېـوتی اثـر پـه مينـه. د مرګ نـه وي — کـه سـلګی دخـنکـدن وي اسـويلی شـي
هريوشی به چرې شی نه شي که شی دي — چې په مينه کې لاشي شي هغه شی شي
خيـرن زړه چرتـه دمينـې پـه حلقـه کـې — خوتراش خراش چې وزغمې غمی شي

راکوه راته اشنا نوي غمونه — کوم یو غم چي ملامي شي پخواني شي
څه تپوس به په هوا کي د وری کري — بار د مینې په هوس کي کله وری شي
چي د ښکلیو خط او خال یې وظیفه وي — ای عاالله! هغه خنګه لېوني شي
نظرتت کري چي رڼاشي ترحد تېزه — عقلمند له خپله عقله تېروتی شي
داد غم خزان سپرلي راوړي امېده — له خراني پخوا د ورکیو سر کلي شي
چي په هسې سور نظر راته کاته کري — ګوندي ستا دغه ادا مې د زړه سوی شي
حسن غیر دی چي پري ښکلي خوشحالېږي — آینه کي چي مخ ووینې موسکی شي
دفراق تبې نیولی پرته وایم — خوستانوم چي په خوله راشي یوزېبرګی شي
حمزه ستاسکون دیدن د اشنا یووړ — مرغېجن سیماب چي تاو وخوري ژوندی شي

(پلار)جوړي.

## ۱۹۳۰

مانه راپه زړه چي داشنادنګه غږي شي — ورک دي اهمیت دپیماني اوصراحی شي
زغم چي پکې نه وي هلکان هم جینکی شي — راشي اسوېلي چي بې همته ري سلګی شي
جنګ په محبت اوپه خرد کي نه ختمېږي — بل به وي لاځوک چي بې قابل دلالئی شي
مه چهره تناګه چي زماپه مجنون زړه ده — هسې نه چي ورانه دلیلي ښکلي کېږدی شي
دابه شي خاموشه پېکسي دزړه دنیاته — زوریه در معلوم در ‌زمادبې وسی شي
ګل غوندي خندان ښکلي ته خیرکاته ونه کري — غونچ به بې حیاګري ترینه جوړه به غوټی شي
خلق بې دروغ ګني چي حال د مینې وایم — څه ربښتیاخبري په حالت کي د مستی شي
غوره بې پستی کري، داهنر دمینې ګوره — ښکه به اخر ورته دحسن بلندی شي
هغه هوس سترګي چي له خایه پېښتني دي — نه چي حمزه خیرورته کاته کوي زمری شي

۱۹۷۱ ،جون۱۲۵_لوارګي.

## ۱۹۳۱

هجر کي زما نه په وطن کي وطن یاتې شي — څنګ چي د بلبل نه په خزان کي چمن پاتې شي
آب و هوا دلسي د کابل مې مخالفه ده — ذوق د ښکلا لاړشي هم مې ذوق د سخن پاتې شي
پټ که په جامه یم،محبت دلسي عریان کرمه — بس لکه لباس چي د تصویر په بدن پاتې شي

نه چې رلبكاره شي د وجود نه مې وسوځي
نوڅه پاتې نه شي دوه لمحه مې د تن پاتې شي

نه كه په غوسه كې هم غاسونه سره وچيچي
بياهم په ښكلا كې ورته دُر د عدن پاتې شي

دغه سپين رويي درسره بس ده په مينوكې
تور د محبت چې د عزت په لمن پاتې شي

تېربه شي حمزه خو دا يقين دى چې تر ډېره به
ستابه لاره وو دپاره خايي د فن پاتې شي

۱۹۷۸جون ۲۴ كابل

۱۹۳۲

زړه كه بياهم درقيب دزره تيرې تېرې شي
كه په مرى دي دمهن تورې تيرې تېرې شي

اى داشنا دزلفو خياله لنډپارې مه كوه
خنكه بې تابه اوږدې لړمې شوګيرې تېرې شي

نرمخبه زړونه به دنياپه يونظرشي ګلزار
پرپرده چې څاڅكو دشبنم نه پلوشې تېرې شي

په تصوربه داشنا .بې بدرګې تېرې شي
دعشق په لاربه دسرتېرو قافلې تېرې شي

كه هرمقام وې خومقام دناكامي بودى
داچې تېرېږي لابه نورې مرحلې تېرې شي

لويه ګناه مې په نظركې بې له دې نشته
چې مې خالي دتاله يادو ورځې شپې تېرې شي

دعشق په لاركې دفنانه هيڅ مفرنشته
لكه په لورچې دساحل دروې چپې تېرې شي

ښكلبه واروكره، موده پس دې زماحال وپوښتو
چې مې له غرېږه دابه شوندوزلزلې تېرې شي

حمزه اشنامې سه پښتو كړې، نه پښتو پرېږدي
بېرته دمانه مرورشي چې جرګې تېرې شي

۱۹۷۶مې۱۹ پېښور

۱۹

كله چې له خپله خامه تېرشي لارې جوړې شي
دوه مين چې يودبل په خبر شي لارې جوړې شي

يادچې داسې يادوي چې سورهيڅ ورته ياد برې نه
بياچې هغه يادهم ترې نه هېرشي لارې جوړې شي

لارې پيدا نه كړي كه بې تنده د لښون وې خه
بس خوچې له نولولازو سېرشي لارې جوړې شي

ګرانه ده خوږېږ نه د وصال چې ورسېږي خوك
هوكه مانسوى ورته ګنډېر شي لارې جوړې شي

لاخوحمزه كم دى چې په روګودر پوهېږې نه
هوكه جېږي غم له حد نه ډېرشي لارې جوړې شي

۱۹۳۴

ډېرچې خومره ښكلې جمالي شي جلالي شي
ډېرچې جلالي شي كله كله جمالي شي

غم مې اوس په كور دزړګي نه را ' ډېرېږي
چرته راغلط چې شي ترې جوړه خوشحالي شي

عشقه وادسر ګوكچكولونه دې خداى تېب كړه
محكې كه خوك رونغشي بسته خبردى كه سوالي شي

حال راته په کوکوشپیلی ووي د مینو — وک شي تل به مینه کي خوهله چي حالي شي
زه په هر یو رنګ کې اشنانه غلطومه — واره کاینات که مشهود ي شي که خیالي شي
واهسي که خوب ده تښتېدل بي هله بویه — ورکي په دیدن یسي چي سترګي مثالي شي
ناوي د عقبی ته هم حمزه ملتفت مه شه — ټولي رنګیني د دي دنیا بي که کالي شي

(۹۳۵)

انتظار د ټولي شپي مي سودايي شي — کري یقین مي رڼا وینې چي سبا بي شي
شي پرېشان چي خای بي زړه شي د ګلرخو — لکه بوی چمن زاده وي صحرايي شي
د امید څراغ مي بل شي د زړه کور کي — ته چي زلفي راخوري کري بېګايي شي
چي دیدن ته به درځي په پښو بي اور شه — که دي لاس د چا د پاره حنايي شي
حمزه ویښ ژوندي اوس د مینې رنځه — خبر نه و یو زیبرګی دي دوايي شي

(۹۳۶)

د شرابو پيالي د کي کره ساقي — یو خو ښاڅکي که د مبووي باقي
چي تهمت په مونږ رندانو هر څوک وايي — په تحقیق به څوک جاهل وي عراقي
زه ویره ېږم پیمانه به شکسته شي — چي پري وا چوم نظر اشتیاقي
عقلمند واره رندان وي په نشه کي — ګومان مه کره به هغوی د مراقي
رونق یوسي په یوه نګاه له مخه — حمزه سترګي کري د ترکو قزاقي

(۹۳۷)

زما نه بېرته په پیر شوه عاشقان بي دي بللي — رقیبان شول د کتب سوري جوري تلي ژړه دلي
یوه ورځ چي په محفل کي عاشقان شول راجمع — ساده توب د اشنا ګوره وي چي ولي دي راغلي
په شوخۍ کي د شفق نه چي سوا حنا د یار ده — د واره لاس یې ترمنګولو دي زما په وینو لللي
د ملیام بېخودي راوره د سحر دستي پوري — چي ناکامه ارمانونه مي پرانه وي د م ختلي
نن زما د هوش لمن ده، په پنجه د لیونتوب کي — په محفل کي صحرانی یم به بید یاکي وینم کلي
د وصال د امید شمع چي وي بله زه صابر یم — اسویلي د خنکدن مي ناامیدی لره ساتلي

کري له ما سره سلا هم کوي بیا خپله رضا هم
ما حمزه واره منلي کوم چي مانه دي منلي

۱۹۳۸

مینه ده خواهش چې هم له دې محوره چورلي — ستوري بو ته خو ځیر شه چې همه له نمره چورلي
زه دانسته چورلم د اشنا د مخ له شمعې — مه ستا په پتنګ راته چې بې خبره چورلي
ستا د بڼو ستنې چې ترې داوربدې بل خوا ته — ښار مې د نظر شو بې نوا مضطره چورلي
زه بې چې په غم کې پرېوکې هم د دښتونو — اوس مې خو د اشنا د ټول عمري بستره چورلي
کیف د تا د سترګو دی ساقي چې دا جامونه — هم دا صراحي هم رندان سر ترسره چورلي
باز مې د نظر په رنګارنګ ښکارونو بوخ دی — چرته به ترې بو حوا بل خوا دا کوتره چورلي
وېره د حمــــزه ده د ښاغلو له ازاره — څکه له حرمه هم په وېره وېره چورلي

۱۹۶۷ جنوري ۹ _ لوارګی

ګرهوان که خېرول ګله عادت دی د سپرلي — خندا وږزه کول هم طبیعت دی د سپرلي
راغونډه مې لمن کړه لکه سروې د هرڅه نه — اوس وېره د خزان ده نه منت دی د سپرلي
هرڅې راځي دباندې که نه هم راشي نوڅه شي — بې لوظه اشنا داخو عنایت دی د سپرلي
بوراز دی چې اغزي نه ژوند له ګلو ور کړي د پر — داڅنګه عجیبه غوندې فطرت دی د سپرلي
هېڅ نه ساتي په زړه کې خکه خلاص دی له پیرې — بیا ګوره په خوانۍ کې چې رحلت دی د سپرلي
ګل راز په پرېشانۍ اوبه خندا ایې د ژوند — حاصل د پرېشانۍ نه جمعیت دی د سپرلي
هر ګل یې آینه ده د قدرت د رنګینو — پښېله خپل وجود خو بو حیرت دی د سپرلي
بو هم یې نوی ګل چرته په ژوندنه کړو تخلیق — حاصل د زړه جاودون ختې حسرت دی د سپرلي
حمزه نشته په ترک د محبت کې هم سکون — ملګری چې تر عمره مې هیبت دی د سپرلي

۱۹۷۱ اکتوبر ۳۰ _ پېښور.

۹۴۰

در پښه وحشت مې ابادي ته له صحرا راولي — ګوره خبر مې که اشنا په تماشا راولي
خوری دې اشنا کله زړا کله خندا راولي — بس خو حاصل د مینې دادی چې سودا راولي
په پسرلي کې ارمانونه پښخواني شي پیدا — داسې موسم دی چې فناګلونه بیا راولي
د خپلو مستو شرابي سترګو نه وکړه تپوس — هغه کوم څیز دی چې زیان ته مې خطا راولي
راځه قاصده را٭ راشه پښه نیولی مه شه — اوس مې که بو د مرګ خبر هغه اشنا راولي

هغه نمر مخې چې وعده د نن ماښام کړې ده — ګورو کوم نمر دی چې به ستورو ته رڼ راولي
د ښول حسن سره ښه شوه ګرانفروشه خواني — چې سره وصل ورته زر خل بوه ادا راولي
نه شي کېدی، غواړم که نه غواړمه شپه د وصال — هغه ظالمه چې د خان سره سبا راولي

سرمې ورخار هغه رهبار ته دی له ماله سره
بې د رقیب سره دې حمزه چې دلربا راولي

(۹۴۱)

الفت د جنون نوري مرحلې نه راولي — اوس هوش راته زنځیر او زولنې نه راولي
چې ښاد خوشحالي نه خپل وطن دی ورته ګران — لیونه مې غم، اوښکې ښېښنې نه راولي
یادونه دې راخي د مخ او زلفو مسلسل — اوس ولې هغه تېرې ورځې شپې نه راولي؟
اشناله خونړو ښېښو دې وکړه داتپوس — جذبه چې زما اوښکې ولې سرې نه راولي
د استاد مخ رڼا وه چې بیا که شول ښېن — محفل ته پتنګان خوږه بوی مرې نه راولي
ښېښنو چې بې سالاره وه خوخل وشو کېده — لوټ کېږي قافلې چې بدرګې نه راولي
پخلا مرور چرته پخلا کېږي په جرګو — یارانو ته مې وایه چې جرګې نه راولي

حمزه جوړېد اشوی څه مثبت پکې اثر
اوس غریبي راته برندې اشارې نه راولي

۱۹۶۲ فرورۍ ۱۰ پېښور.

تا چې لاس زما د زړه په وینو ولالې — رقیبان دې نظارې ته دې بللي
ناست څکه رقیبان شو ستا په در کې — چې د خاورو دې په ما جوړ کړې ځلې
پوخاى ما مره په ګور غریبان کې — وا زه مل دې هغه تا چې دې رټلې
هلا هسل دې په پیاله د سترګو راکړه — دلبانو مسى دې چاله ساتلې
داسې مره دې پس د مرګه د مړو تهر دي — د ښېښو په غشو تا چې دې وژلې
نه جنت وینې نه حورې نه قصرونه — کور دي تا چې په دنیا نه دې کتلې
امید شته چې په مرقد مې بېره راوړې — ما بې حده منتونه دې منلې

په مرقد د حمزه هله راتله بویه
چې ګلونه په دستار دې وي ترملي

[۹۴۳]

داخلـد حقیقت دی چې امکـان ویـږني — علت دهـر ممکن بـه بـه لـسان ویـږني

خپل خان هله خپل خان شي چې خوک خان ویـږني — یې دي نه څه امکان دی چې جانان ویـږني

وحشت ورتـه وابـه شي چې خردشي وارخطا — دانـه دی لیـونی چـې گریبـان ویـږنـي

یوگل دروه چاودون له خوشحالی په خنداووي — حاصل به جمعیت کړي چې پریشان ویـږني

لاپـري مرحلې شـته لـه انسانـه ترانسـان — هرڅوک چې شي ملک هله انسان ویـږني

کره وره که مې لوستی شي نوربیان نه څه حاجت — اگـاه د قـمـانې ولـسي عنـوان ویـږنـي

حمزه هغـه مهن شي چې ارمـان یې شي کامل — لیکن هغـه کامـل وي چې ارمـان ویـږني

۱۹۶۱.۳ جوروری کراچي.

بـــکليـه دا خلــک چـې مانـه پیـژنـي — هغــه خوخکــه، چې تانــه پیـژنـي

کلـه بهگـا کلـه سبا کـړي اشـنا — جـوري بهگـا اوسـبا نـه پیـژنـي

ستا تبسم بـه پـه مـهن څـه وکـا — هغـه د تنـدر خلانـه پیـژنـي

گوره چې خان يې څه ناجانه کړلو — لکـه لـه سره چې مانـه پیـژنـي

خوږ يې چې ستا د زلفو ویـږندو — هغـه بیـا نـوري بـلا نـه پیـژنـي

نـوي مـهن تـه څـه ویلـی نـه شـم — اوس خوگرم نـه دي چې تانه پیـژنـي

چې پـښتنو سترگو تـه خیـر گـوري — خوښـتانه دي قـضا نـه پیـژنـي

پـه زړو سـترگو ورتـه گـوره اشـنا — زره مـې سـتا نـوې ادا نـه پیـژنـي

مینې حمزه او اشنا یـو کـړل هـسې — څـوک يـې ویلـه جـدا نـه پیـژنـي

۱۹۷۰ فروري۲۰ ـ لواړگی.

[۹۴۵]

هغـه گردوسـه د رانلونکیـو قافلونـه وینـي — باتې نخشونه چې د تېرو زمانو نه وینې

بخپلـو دکـو درمنونـو خـو دېـمن کـوي نـاز — زمـا پـه وینـه کې برلونـه پـه چېـو نـه وینـې

قـام دي د علـم شـکوری تـه پحوا بند وتري — دورخې ستوري څه دکارچې يې په شپونه وینې

زه بـه طلـب د هغـه نصر کـې رنگینی نـه وینم — خـان کـې شبنم لکـه بهـار د پلوشـونه وینـې

دا به څه رلز وي چې واعظ له میخانې نه سوا — دويمـه لار او کـه گـودر چرتـه د تلـو سـه وینې

**[۹۴۲]**

هوس وطلی کـه دتـاچرې بانـه وویني　　گویاتیارعشي به گورت کې بنتانه وويني
رقیب چې ماسره اشناجرته په تله وويني　　لکه دازلي لیوني سبې، چې اوبه وويني
دېرې دېرې مې همدمان که په مدفن کړې بلې　　کله کېدی شي چې داغونه مې دزړه وويني
ورځمه، ښ بې په محفل کې هنګامه جوړوم　　پرپرده چې ښ خوښې شلېدلی ګرېوان به وويني
بیاپه ترخوکه ګېله من بې شي بې خایه نه وي　　چې کوم مینن دکوموستر ګونه خواږه وويني
ته چې بخېله بې له خپله خانه هېڅ نه ويني　　وایه بې تانه که بل ګورې څوک به څه وويني
پښتون اشنادې حجره بنده کړې دخپلې ښکلا　　غوته جبین شي لکه شوم چې مېلمانه وويني
ګوره بیاهم چې دې روان درسېدوېه امید　　خوښې که پیرته راستنې نخښې دپله وويني
هغـه کـرم وې دسـالې، دمیږوزمه ګنـه　　پیاله په لاس که څوک حمزه په پرېوانه وويني

۳۱ـ اول لړ ګی.

یوه سترګه دعقبی اوبلـه ستاکه ددنیاوې　　غایت به په صورت کې دهرڅیزدرنه نماوې
مین چې دم جفامې ستاپه مخ کې نه لېدلـه　　تېروځې په سراب هغه چې تږی په ربښاوې
ماخودکړودغرورونه نسبت چې بې کاسې دم　　بس څکه[۱] غرې حوره تواضع نه دمبناوې
محبوب دڅوکانودعشق تنده مانه نه کړې　　تلاش[۲] کړه دهغه چې دهرچاسره اشناوې
ارمان دمرګ دې نه ږمنوچې مرشوې لاړې مرشوې　　لیکن رازوندی نه شوې مسیحاخومسیحاوې
موسکې چې مهروبان شي زړه روښانه کړې منمه　　خبرخوښي چې تندرهم استاځی دفناوې
تپوس بې دبلبلولـه زړاوکړه چې بوه شـې　　جواب کولی نه شي ګل، چې ولې په خنداوې
دېوزرانـه ګـوره دخنداسـب دبـل شـې　　څوک دې لره بیداوې، څوک هغې لره بیداوې
له خانه چې بهروې حمزه روندشته هم بیناشته　　چې خان نه نګران شي نه بیارونددې نه بیناوې

۱۹۶۳ ـ فروری ۱۵ ـ پېښور.　　(۱) اړ: زمکه　　(۲) اړ: لټاش.

**[۹۴۸]**

مـاچې پـه خـوږه خـوږه خنداعـذابوې　　سـخ دې شـه پیرې چې دې اشناشـابوې
نن راتـه صـحرادوېرجهان یوه قطـه ده　　خپلولیونـوکې مـې اشناحـسابوې
ستاپه تبسم راغلې اوښکې بېرته ګرځې　　جـاردې دکـوتـه چـې سرکانـرابوې

خبر که التفات یې اوس بدل په تراوه خوی شو — تېرېه ولې خورم که راته سیند سرابوي
ساشرابي سترګوته دزړونوهغه ګوره — هریو مضطرب دی چې به ماکبابوي
روح په مله اوشکه شي.که مات یې به یوه شي — داسې تصرف دمینې زړه جابوي
مینه وایې یوداشنامخ دی نورڅه نشته — عقل راته دغه یوورق کتابوي
بایې ورته نیت خودراتلو لرې ای بنکلیه — ساغریب حمزه دی لابه نه وي،لابه وي
راز داشنایی دې دحمزه نه راشي زده کا — عمر بې بهاولې زاهد خرابوي

۱۹۷۱ ستمبر ۱۴ـلاهور.

مخ که حوادث راته په زور ورګرځوي — خوان همت زمایې په بل لور وګرځوي
تنګ دزمانې چې پښتون یارته کرمه وراندې — بل طرف ته مخ مې به پېغور وګرځوي
داګېچه خرانې اودا دیاردور وخوګوابي — څوک دې چې به شنو لصلونولوروګرځوي
وایې دې رقیب راته چې څه یې دې په زړه — خوسودې به داپښتې دپوروګرځوي
سپور یې دې زړ ن چې یې خوی دې دخودبینې — څه که یې حالات په نیلې سپور وګرځوي
یوه په مطلب نه دی چې رتې باده خواره — خدای دې داواعظ ورله غمخور اوګرځوي
سپرنه یم په سپر دبنکلې یار دګلستان — درېغه که ریبار مې پکې نور وګرځوي
ګل دشخصیت به مې دنیاته شي څرګند — ستن که دالفت مې په انځوروګرځوي
داغ چې حمزه وړی مادیار دجدایی — خدای به یې څراغ زمادګور وګرځوي

(۹۵۰)

زړه مې له رشکه دښتګ هغه اداسوځوي[۱] — بیاکه ژوندی شي نوهم ځان به شمع پیلسوځوي
داپښې زمانې بنکلې درته څه ووایم — بس په یوه ذره وېښادزړه دنیاسوځوي
رقیبه راشه چې ترمینځه تریګنې کړولرې — هغه ظالم خوتابه مااومابه تاسوځوي
په ابتدایې نه وې تندر دمرسکا محسوس — خو هغه درمن دارمان په انتهاسوځوي
مرورتیایې زړه نه یاهم څه سکون وبخښي — څه درته وایم له هغې چې مې پخلاسوځوي
په سپین اوتوردمخ اوزلفویې خبرنه شومه — چې هرسبامې په وعده ولې بېګاه سوځوي
درېغه اشنامې لکه شمع قدردان وی حمزه — کړې پرې ژړاهم،پتنګان که به خنداسوځوي

۱۹۷۲ می۶ـلولګی. (۱)ار سوزوي. (۲)ار دوس.

(۱۹۵۱)

وحشت مې د صحرا بيا په سر خاورې بادوي
زړګی مې د حسرت هر شوې خلک بادوي

ایجاد کړلو صیاد ستم لطف نُما بل
لـذت تـه د صحرا نـور دی مـا ارادوي

هیڅ شک په مهرووبانو کیږي نه (۱) د قتل د خون
نازک د ګل د رګ هـې صورت کې سادوي

هرګیز نه یم غلط په تیـسم د زهرو ډک
خندانه ده هغه چې سوې زړونه بادوي

حمزه نار د خمار به دې تر حشره وي تاره
سرشار دي چې زړګی د ښوا په بادوي

(۱) آر: نه کیږي

دهماسوري وو که شان يې دشملو يادوي
زړه زمـاتېره زمانـه د پښتنو يادوي

څوکه دښمن دی زما وي دې خوښنون دی رقیب
چرته چې ذکر زما راشي ماپه ښو يادوي

چرته منزل؟ چې خودې زړه هغه نامه زده نه کا
مینه حـل يې چې حرس د قافلو يـادوي

لکه مرچې شي خپې وخت اوراور کې خیالونه
مانـه سـتم د خنـد نو تېزو ښو یادوي

همدمه داسې بې ارمانه زړه زما وګڼه
لکـه حجره چې زمانـه د محفلونو یـادوي

دغه ګـل نامه اخر کې ده نامـه دغـه
چې بلبلان د هر ضمیر یې په نغمو یادوي

ښه ګوره که شعار دې شي د قام او ملت
قام و ملت نه دې هم ښه په صدو يادوي

۱۹۷۵ نومبر ۱۹ ـ پېښور.

ستا د مخ پتنګ چې وي له رندوې که زاهد وي
څه به يې ګدازوي لکه شمع مجاهد وي

څه پوښتې چې زړه مې خو مره ښکلیو ته ورکړی
څه ووایم. خو مره، خو هم جمع هم واحد وي

حال دی که مقام په محبت کې کله کله
هر خیز ته چې ګورم هغه ستا ګویا قاصد وي

زړه دی زما کور د عجایبو، وو شمسه ګوره
نه هم يې لیږ ښکلی ستا تمثال پکې شاهد وي

بې دهار له مخه د کثرت په دې جهان کې
کوم شی دې چې ولید ستا په اصل به زاهد وي

ستا د مخ رنا چې ګورم هین لکه شغله کړه
ستا مطلقیت په دې فـاني کې خو باهد وي

بس خو اختلاف يې دې د مېوې په تعریف کې
نـه چې د رندانو سره رخـه د زاهـد وي

ښتنه تصور دې زما ونیکي تښې لاړې
خلا هغه جرګه چې نه يې سر نه يې قاید وي

خدای زده چې حمزه د پښتو خیر له څه دی
دوه چه مخامخ شي يو د بل دهاره ضد وي

۱۹۵۴

ستا اختر دي د اختر لکه اختر وي
تل په مونږ دي د ستا سوري بخښور وي

په هرخاى چې د حضور قدم رانجه وي
تر قيامته دي هغه مشک وعنبر وي

خداى به عمر کړي عطا د خضر تاته
په دعا کې که زمونږه خه اثر وي

که څوک غوث وي، که ابدال وي، که اوتادوي
ستا نشان وته د نياز دي ښکته سر وي

طالبان د العطش نعرې په نه کا
پيښور کې چې موجود حوض کوثر وي

حمزه ستا د درد علاج به اختر وکړي
که هر څو دي حال له مرو نه بتر وي

روارمه.

۱۹۵۵

غلبه د ملنوي که په په زور وي
ضمير هغه چې غالب د زړه په شور وي

ارمانونه مې بې سره امونځنه شول
مانه خه کړل بې ماشومه کور خو ګور وي

چې د قام به غم "خوشحال" وي په دا خه شي
که به کور وي که مېشته په رنتهپور وي

آيينه خو لاسنم دې چې بې ور کړي
وهغه نه لاپخوا بې چې مخ تور وي

ستاله خوبه خبر نه شوم څکه پايم
هر انداز دې له روښې اندازه نور وي

نازکي د ښځيني احساس تريه ده
ورته ګله چې ستا مينه هم پښور وي

په ورورى د چامه شه چې مومن وي
نه دي چرې د حمزه هم په چا پور وي

ارګى

خوشحالي نشته خوشبه ورخ غمونه غم زېږوي
رناد نمر نشته خوشبي دي چې تور تم زېږوي

زه څکه ډک يم دخواهش نه چې خواهش نه لرم
هزار بحې هره لحظه مورد عدم زېږوي

ثاني مې نشته زه خالق دحسن اوعشق يمه
زما نظر دي چې عابد او هم صنم زېږوي

زما دغم ديري اوبنکې ملاحت نه لري
نقش ونګار د يارکه خاڅکي دقلم زېږوي

طبيبه لاړشه چې داوته دي حاجت نه لرم
هغه بسمل يم چې زخمونه مې ملهم زېږوي

منم چې جنس له خپله جنسه پيدا کېږي مدام
زما خندا ولې ژړا، خوشحالي غم زېږوي

بې دحسرت نه مې بل شى بکې ونه ليد حمزه
هر تصور د تخيل مې جام دجم زېږوي

(۹۵۷)

الفت که ددوه زړونو اتصال پیدا کوي
هم داچې افراط وکړي انفصال پیدا کوي

ساقي غوارم مدام عرب یې هم بولي-مدام
خمار یې چې دوام د استعمال پیدا کوي

په خپل حسن کې محو،بدرنګي محسوسوي
قدرت خوښ جمیل دی او جمال پیدا کوي

داخه دي چې یو هم یې نوی ګل نه کړو پیدا
فطرت نوي حالونه کال په کال پیدا کوي

هجران دي ورځ په ورځ که ارمانونه خوانول
هم دا زلمي دهجرنه وصال پیدا کوي

:، خپله خپل مثال یې چرته نوان دآیینې
مثل دي،په ظاهر دي که مثال پیدا کوي

حمزه دبنګلیو مینه کې افراط نه دی په کار
افراط وي که تفریط وي،خوجنجال پیدا کوي

۱۹ دسمبر ٦ پېښور.

(۹۵۸)

غفلت په خان غلطي هوښیاري پیدا کوي
بل خوب مې خوښولې بیداري پیدا کوي

پښتون زرګیه بام،له داسې عشقه شه کنار
منت او سر کوزي دچې [1] زاري پیدا کوي

اظهار دعاجزۍ دحد په هورته دی غرور
خواهش دناموري او سرداري پیدا کوي

خواهش چې داکېرلري،تکبیر دی دحشمت
غربت د پرېشاني او هم خواري پیدا کوي

حمزه سر دنیاز په یې په درکې لري خم
دلبرو کې که چرته دلداري پیدا کوي

۱۹۷۲ مارچ ۱۸ پېښور.

(۱) اردو ده

(۹۵۹)

لېندې غشي دحسن پرې وش وژل کوي
پاتمال دبروی ابرکې ګل ګل کرل کوي

دشپې ورځې فراق مې پیدا کړلو آس دوصل
عادت چې په تیرو کې شي چشمان لیدل کوي

سرخم وي حسن تل دملاحت له احتیاج
ګوزه عجیبه جز چې حکومت په کُل کوي

رندانو میکدې لره راځي چې مونږه څو
زاهد دې صومعه کې وي دالس دې شل کوي

خوشحاله یم په دې چې شي ازبر سبق دعشق
جانان چې ګاهې ګاهې دغماز منل کوي

بسه ورته په یاسه دتسلیم کړه لاس اوږېنې
حمزه،دمرګ په وخت کې روح به درد وتل کوي

[۱-۹۶]

حـــن دی چـــي ســـتانګهباني کـــوي    اوګنـــي فتنـــي خـــودي خـــواني کـــوي

نـن ښکاري قاصد دمحتسب پـه خبر    ګـــوروچي بـــه څـــه مهربـــاني کـــوي

بـــي لـــه میوکیـــف ددعاچرتـــه دی    دلتـــه بـــه څـــوک څـــه مـــسلماني کـــوي

زره مـي شـوي رنـګ دآیینـي پـه څیر    څکـــه دهررنـــګ ترجمـــاني کـــوي

ښکته مي بانه شي چي رامخ شي ته    ګـــوره ښـــبتانه چـــي قربـــاني کـــوي

زه شـم پـه تپرادمیلمانــه غونـدي    راچـي شـي دي کورتـه میزبـاني کـوي

لایـــي دعرفـــان آیینـــه تتـــه ده    څـوک چـي حمـزه کلـه حیرانـي کـوي

۱۹۶۶، جوزا ۲۷ ـ لواړګی

داپـاران دي، ســتادمیني پـه مــاتوورولګوي    پـه دي څـه کـه تهمتونـه پـه مـاتوورولګوي

پـه پـوه نقطـه کـره جمـع پلوشـي دزړه دمینـي    آتـشي ښـبنـه دزړه بـه پـه پـاراورولګوي

سـتا یادونـه چـي کـمیږي دزړه وینـه مـي زیـاتیږي    سـتاسـتم کـه پـري داجـوکـي دري څلوررولګوي

درقیـب پـه ناکـردومـي پښتونـواله نـه بـوونیږي    عزیـــزان پـــه مـاوورونـــه دپـیغـوررولګـــوي

حمزه مینه به مي ماتي هیجري قبوله نه کړي
کـــه طوفـــان دحوادثـــو هرڅوزوروولګـــوي

پـه ښـو غـشو د سـتا چـي څـوک ګـایـل وي    ترقیامتـــه بـــه ســـوري پـــه زړه، بـــسمل وي

چـي د ګـل دپاسـه ناسـته کـري پـه مینـه    دلګـــی دلاتـــدي ســـورڅکه بلبـــل وي

پـه خـرام خـرام روان دی قلقـول کـري    لکـه سـیند چـي بـي نیـازه لـه سـاحل وي

خان بـه بـچ کـري څـوک پـه څـه شـان لـه ځغـه نـه    چـي وسـله بـه لاس کـي نـه لـري قاتـل وي

عاشـق څکـه سـت کـاهل وي زیږزیـښلی    چـي بـه حـال کـي د قیـام یـي هـم منـزل وي

پـه قسمـت چـي میـسر ورتـه وصـال شـي    نودرعـب یـي پـرده تـرمـخ حـایـل وي

چـي عاشـق يـي پـه جمـال شـي نوپـه ورخ کـي    دحمـزه پـه شـان بـه یـي سـل خلـه وژل وي

[۹۲۳]

قربان دي لـه کاکـل نـه شـوګيري نـه ليلـوي
ارمان مي دا اورېدوي د هجر شپې نه ليلوي

جوړښکلي په لويی کې شول له خدای نه هم سوا
اشنامي ورتـه ګوره چې تـوبې نـه ليلـوي

په سترګو کې يې سترګې چې وانه چوي سالي
رندان دي بې نشې نـه دي، کاسې نـه ليلـوي

نور هيڅ مې په خاطر کې نه ځايېږي بې اشنا
اغيارو ځېن زړه خـو وسوسې نـه ليلـوي

رهبر يې چې بې خوله په دو دو په مخکې ځي
دالارې د صـحرا خـو قـافلې نـه ليلـوي

شـايد چې تماشـه شـم د اشنا پـه تماشـه
نن ذوق چې د ښکلا مې تماشې نه ليلوي

حمزه چې ورتـه راشي هغـه نـمر د حليقت
بيا داسې زړونه هجرې تيارې نه ليلوي

۱۹۶۹ اکتوبر ۲۲ پېښور.

[۹۲۴]

وخنونـه دي ارخونـه بـدلوي رابـدلوي
اسـمان دي نظرونـه بـدلوي رابـدلوي

اشنا مـې نظرونـه بـدلوي رابـدلوي
زړګی مې هم ارخونه بدلوي رابدلوي

تقدير چرې داد ورنه کړلو زړه ته د ضمير
هرڅوک ه قسمتونه بدلوي رابدلوي

هوښيار خو داسې نه مې و مارغه د تصور
پرنه کړې خوځانګونه بدلوي رابدلوي

فطرت چې د الفت دی له ښايسته عبارت
ښايست خوشې دامونه بدلوي رابدلوي

شايد چې بدلولی د انسان نه شي فطرت
داڅوک چې نظامونه بدلوي رابدلوي

پوسنکی حمزه خير دی که بدل کړلکه مار
ښېښتون کلـه رنګونـه بـدلوي رابـدلوي

۱۹۵۲ حسمبر ۱۲، پېښور

[۹۲۵]

په کوم سبب چې دروازه زما نظر ښکلوي
رابېدار نه شو اجابت که يې اثر ښکلوي

مزه د لبو مې مطلوب وه، خورقيب شوه زما
په يې تابې جوړې ضياء مخ د ګوهر ښکلوي

خدای زده نظرکه مقناطيس که انقلاب و حشر
هوش مې قرارشولو هرپوګ مې نشتر ښکلوي

نظرمې ښکل کړې آنګې بوسې بې اخلي بصر
بلبل د ګل له وصله پس هم خپل وزر ښکلوي

په تصور کې مې خالونه د جبين دي د پېزو
داسې مارغه لرم چې ګل د پيغمبر ښکلوي

چې بې وفااشنانه پادشوې نوم يې ستا وليکه
مره حسرتونه دي حمزه راخي مسطر ښکلوي

[۹۲۶]

هیڅ نه شوم بوه چې ستا رضا څه به وي ددې ستم چې مدعا څه به وي
وصل فرقت مې هیڅ پکار نه شو اوس ددې درد مې دوا څه به وي
تل چې پنجه یې وي د رقیب په مرۍ داسې بې بس که کړي ژړا څه به وي
ستا په ابرو چې راشي بل لړشان بل که صورت وي د قضا څه به وي
هر چې عاشق کوې دپاره د ستا که کړي روا و ناروا څه به وي
ستا د ښایست زکات یو بوسه که شي عاشق وته عطا څه به وي
بل ته حمزه ونه کړي تمه چرې[۱] که شي خبر پرې بېنوا[۲] څه به وي

(۱) او ونه کړې پرې (۲) او وماد مرشدپاک قلب.

[۹۲۷]

چا چې الفت له بې وفا سره وي شپه ورځې کار یې له ژړا سره وي
تخته د غیض وه پیچ وخم د زلفو څه به گوزران توري بلا سره وي
غرق به یې کړي چپې د عشق اخر څو که ترخنګه ناخدا سره وي
قضا به بې دراتلو نور څه کوي چې د قضا قضا قضا سره وي
فریاد مې زړه ښکار د مژګانو کوي دواد هر مرض دوا سره وي
غم د دارینو هیڅ کنه حمزه ستا چې الفت له بېنوا سره وي

[۹۲۸]

وېښ مې دې ضمیر له مینې زغرې جوړوي څومره چې حالات ورته لښکرې جوړوي
ستاپه هرقدم کې شرنګاشرنګ دزولنو وي وخته لېوني ترېنه سندرې جوړوي
خیر که مې دېخوا سوپلو څه پروا نه کړې داخو په قلاره اور د سرې جوړوي
پټ وي طوفانونه دشاعر به خاموشۍ کې مه شه پرې غلط چې بس خبرې جوړوي
خبردې ښتنې اوښکې چې نه راځي لېموته دا ورې خوبېښې چې څه ستړې جوړوي
زړه ته جنازه دیاد یې مه راوړه ارمانه خلق هډیرې له کوره لرې جوړوي
پورته شه الوت سره هوا نوې پیدا کړه وخت درله حمزه نوې وزرې جوړوي

۱۰۵۶ / مرورپه ۲ سپځکې

(۹۶۹)

نـن اشـنـاخـه عجیبـه دزلفـو ولـونـه جـوړدي — خورمارغان شـولوخیرک سوي دامونه جوړدي
شوخي سترګي دي په مخ کي بوراګان لکه غونچه کي — چي یي ګوري الوتـولره خانګونـه جـوړدي
ستا دلهرزلزلي چي مي دزړه کوټـه کړه ورانـه — لرمانونه مي اوس ټیټ خکه کورونه جوړدي
چي مهن سره زنګون شي دلوړتیاتیوس یې مه کړه — په معنی کي به له مزکي اسمانونه جوړدي
بي ګناه نه. خط وخال دسپیځوب نه ښکاره کیږي — مصورهم په تیاره کي تصویرونه جوړدي
تصور دي راعطاکړه که نظرمي پوسي خیردی — داچي راشي دلهونه ښکلي رونه جوړدي
بوبنهدلي اسویلي وو التفـات دي زیړود کـړل — موسکي نه شي ګني خدایهوطوفانونه جوړدي
ملداسـتان دمینې ووي خوهیڅوک یې پوهه نه شو — اوس یاران یې دول دول عنوانونه جوړدي
تـصـویـرمې دکاکـل حمـزه دمـخ لـه رعایتـه — جوړه یوه په لاس دوصل مانیامونه جوړدي

۱۹۶۲، اکتوبر ۵ _ کوټه.

(۹۷۰)

ســوال بـه کـوم خـولې جدابـه بـنـه وي — داخوبـه دي چـي پـه ژرا بـه بـنـه وي
"نن" دي په زړه دی خوبه خوله نه راځي — پښتني پيغلي ستا "سبا"(۱) به بـنـه وي
مشت او ګریوان وبښته دي بوله بله — کـه ستـادزلفو وي بلابـه بـنـه وي
زاهـده شـوق د میوېدخونـه دی — خودرندانو یـه سلا(۲) بـه بـنـه وي
اوس یې خواهش لـهٔ نـهٔ جوابـه کـوم — قاصـده دابـه لـه جوابـه بـنـه وي
کوم یو مهن به وارخطا کړي هـسي — چي اشناراشي وارخطا بـه بـنـه وي
وي چـي ورخـم به. پـه لبولبـو' — خوکـه یـوازي وي نولابـه بـنـه وي
خوی د یې مخیوعاقبت چي خه وي — خوهبيشه پـه ا۔ ابـه بـنـه وي
واعظـه سترګي لـره سري پـه میـو — بیاعبـادت دي پـه ریابـه بـنـه وي
یوالتفـات یادرقیـب رتنـه' — وایـه هغـه بـه وي. کـه دابـه بـنـه وي
دیـدن دي کـهیږي کلـه. بـه دی — شـي کـه سـوا ددي نـه لابـه بـنـه وي
پـه آیینـه نقش ونګـار خـه پـه کـار — حمـزه بـې روی اوبـې ریابـه بـنـه وي

(۱) ارمان. (۲) اوصلاح.

(۹۷۱)

خو دچې د شرابو د سرور نه خبر نه وي — څکه په خبرو د واعظ کې اثر نه وي
نه چې وینم ستر ګې د اشنا زه لیونی یم — هوش د باده نوش خو د کاسو نه بهر نه وي
پورته بې وحدت کړي د بهار اوله خزانه — څیني رانده وایي چې د سرو ثمر نه وي
ور کړه د سبرلي تشه خندانه ده لا ګوره — پس ته ګله ستا د غه دستاربه په سر نه وي
نه شي پټېدلی په تیاره اوبه رڼا کې — زه یم انتظار دی، لمروي که لمر نه وي
تل به وي دیوه د انتظار د هغو د لمه — شپې چې لري داسې چې د شپې سحر نه وي
سر به نه شي چرته، نه به سر به سره لاړ شي — څوز ده کړي تا د سر بښندنې هنر نه وي
نن مې نظر خوی د سپیلني کوي حیران یم — چرته په اشنا مې لګېدلی نظر نه وي

ښکاري په دستار د حمزه تېروتې لا به
ګوره چې بې بار د خطا ګانو به سر نه وي

۱۹٦۳ فروري ۳ پېښور.

(۹۷۲)

عشق هغه نه مه وایه چې ژوند په مېړتون نه وي — شوی په هغه چې د هوس ستر ګر انسون نه وي
نن دې خبردار کړه چې بیداره حافظه لري — هغه کوم "سبا" چې راروان دی چې "پرون" نه وي
لوړه مرتبه لکه فلک چرې موندی نه شي — څوک چې پورته پورته ګوزي سر یې په ژنګون نه وي
بُخل، وفطري حسن ته نوره سرمایه راوړي — هغه نه سخي ویلی کېږي چې قارون نه وي
څوک چې د پښتو لیونی نه وي څه پښتون به شي — څوچې په معنی لکه لیلی نه وي مجنون نه وي
نن یې په غوسه راته په سرو ستر ګو کتلي دي — خوب راځغه وری اند یښنو دی چې شبخون نه وي
لابه زه د خپلو اسو پلونه بسې خبر یمه — څنګه مې دیوه شوه په سلګو چې سباوون نه وي
اوس خو ابله تللی و القصدا و دادی را غللو — داسې راته ښکاري بې مرامه به راستون نه وي

بیا نو حمزه روغه د آورده سره و کړمه
کله چه آمد راته د هیڅ نوي مضمون نه وي

۱۹ فروري ۱ پېښور.

(۹۷۳)

هیڅ د مینې زړه نه بهر نشته چې به نه وي ... ستا نه بې سیه خطر نشته چې به نه وي
ټول جهان دې خپل کړه. اشنا تا به خپل لېمه کې ... هیڅ داسې انداز د نظر نشته چې به نه وي
بـکلیه په محفل کې به دې سوځې ترابده ... داسې یو د زړونو اګر نشته چې به نه وي
زما زړه ته چې خبر شې له خپل حسنه ... دې بازار کې داسې خبر نشته چې به نه وي

ټـل به د حمزه په شوګیرو خبرې ګرېوان وي
هیڅ داسې خندا د سحر نشته چې به نه وي

اوګی.

(۹۷۴)

ګیلـه کېږي خـو د غیـر د. ره نـه وي ... د هرچـا نـه ده ممکـن لـه پـاره نـه وي
که مې ګرد په زړه راخې نه پاتې کېږي ... دکتـو نـه آیینـه وزګـاره نـه وي
راز د مینې پټ ساتل د زړه ساتل دي ... و رقیـب تـه بې خندا لـه داره ٭
د ګلونـو خاموشـی دي د اور ژبـې ... د بلبـل سـوي نعرې لـه خـاره ٭
د وحشت چیغې د زړه په پرهر څه کا ... د ګرېوان ګنډون له خپله تاره نه وي
ای عاقله! بس کړه بس مازغه مې مه خوره ... د الفت وهلي برخـه خـواره نـه وي

بـه ده خلق چې مېن تـه وزګـار وایـي
خـو حمـزه چرې وزګـار لـه کـاره نـه وي

(۹۷۵)

ستا مینه بازلې ده .کله وي او کله نه وي ... دا ٭ دوکانداري ده.کله وي او کله نه وي
چې وخلنډې سردا وکړم چې څه شي درنه تېښتم ... بس دا مې جواري ده کله وي او کله نه وي
خبره د حکمت لېونې پرلـه پسې نـه کـړي ... وېنا د شېواري ده کله وي او کله نه وي
له ما نه همېشه دلداري مه غواړه. دا مینه ... یو وهم و بیماري ده کله وي او کله نه وي
ضد پرېږده، مخالف عاشقان واړه درنه پوشول ... دا رایې شماري ده کله وي او کله نه وي
زاهده کله مخ ته مې شي خیر کله تېږوته ... زما څه مېخواري ده کله وي او کله نه وي

٭ازبیکړه.

(۹۷۶)

خوند د احساس د محبت په محبت کې نه وي — هیڅ اندازه د مصیبت په مصیبت کې نه وي
ماد وصال په شپه اشنا ته په زار زار وژړل — خوک دي چې وایي چې ژړا به په جنت کې نه وي
په تصور کې د اشنا را ته خلوت شو محفل — آیینه هیڅکله روښانه په ظلمت کې نه وي
برق د دعا مې ډک له سوزه خپل مقام ته رسي — د پاخه لوڅه طاقت په اجابت کې نه وي
زاهده پټ مغ په څادر ولې تېرېږې په لار — نور څه بې[1] میو د رندانو په صحبت کې نه وي
خپل واردات د زړه په خپله آیینه کې وینې — هیڅ توقع د کرامت په ریاضت کې نه وي
د حقیقت اظهار صفت د هر اندام دی حمزه — بله[2] منشا خو د غزل په اشاعت کې نه وي

(۱) آر: له خوبي مو. (۲) آر: بل.

(۹۷۷)

شته ژوند په میخانه کې خو لېونتوب به یکې نه وي — زما د هوش قدمه لغزېدل به یکې نه وي
بوږنېږه ترینه مه، زما افکار اور اور کې دي — رنبا به د رکوي خو سوزل به یکې نه وي
اشنا وې مینه به ده خو پوه خبره واوره: — بس داچې د لمنې نه راښکل به یکې نه وي
ستا ناز مې پښتو اخلې خو غرور زغملی نه شي — دا یوزما په سترګو، خو دلیل به یکې نه وي
دیدن د ښکلي بهار اجازه د رکوم لاړ شه — لیکن پښتنې اونبکې، څڅېدل به یکې نه وي
جرګې د غم چې نه راځي خو زړه بې تسلا دی — کوم کور چه لکه ګور دی پیغله جل به یکې نه وي
پلو دې د مخ اخلم پښتنې خو دامې واوره: — زمری غوندې به ګورې، شرمېدل به یکې نه وي
موسکا یې شرمګیره وه په خپله یې لوزی — وې داخلې وعده شوه تېرو ستل به یکې نه وي
حمزه د خپل خرد په بهانه یې پیدا کړي — د بهار د کوڅې لاري ورکېدل به یکې نه وي

(۹۷۸)

هر هغه چې پېژندلې فقیري وي — وې صفت یې بې نیازي هغه غني وي
حال به خو مره د هغه ملت شوی وي — تل چې لاندې تر خراجه یې "ماضي" وي
چې کړې مینه د نمر مخ یو ور ته ګوره — تر فضا یې د ستر ګو شفقي وي
خوی د سپوږمۍ کړې ظاهر چې نه سرې دی — خوی د سپرله خانه ورک کړې چې سرې وي
انتظاره مخروني دی دلته چرته؟ — تل مې لړزندې ډیوې د ما ښامې وي
ټول عمري بې قراري یوه ښکلا شي — د لمبو په حلقه ښکلې غرځښي وي

زه به هغه ښښتني حسن مین یم ... چې هوس وي خوکانه يې دزمري وي
چې وزګاروي دهستی له معرفته ... دعارف کاته هرخیزته سرسري وي

دحرص نامه بدله کړه یارانو
خود حمزه ددوی په تردبه قلنوطي وي

(۹۷۹)

بوی به دی پرېشانه، پرېشان دې وي ... ګل خیري ګرېوان، خیري ګرېوان دې وي
عشقه ته ګریان اوسه ګریان به یې ... حسن خوخندان به دی، خندان دې وي
مینه که دریاب دی، ته ماهي اوسه ... خوکه بې کران دی، بې کران دې وي
اوسه په نقطه دسرېټوب ولاړ ... عمر ګرېېزان دی، ګرېېزان دې وي
ماخووږنه وي آیینه مه غواړه ... اوس نو چې حیران دی نو حیران دې وي
عشقه چې سنګر دې هوس مات نه کا ... خبر دی که طوفان دی، نو طوفان دې وي
ورک مې که دی خیال په هغه ګل پسې ... بوی غوندې پرېشان دی، پرېشان دې وي
مه خوړلی عمر، ماخوړی نه شي ... زړه مې لکه خوان دی، هسې خوان دې وي

خدایه چې حمزه دې مسلمان که جوړ
یادي چې افغان که، نو افغان دې وي

(۹۸۰)

سپند چې د دنیا د محبت په منخه وری وي ... پاتې له مراده په ساحل به ګنګه خړی وي
څوک به تقابل ورسره وکړي، دادروغ کښه ... هغه په رېښتیا که ښښتني ابې رارړی وي
تینګه به رښته په یو طرف د محبت نه وي ... هېڅ ممکنه نه ده چې یوول وي نوم یې پېرۍ وي
دفکر دوحدت په حقله ووایم ... خپله به یې یوه که محبت دې چرته کړی وي
تېر وتې، دحسن داخودې بې وفایي نه ده ... زړه به یې درکړی وي، خوزړه دې که ورکړی وي
زړه چې ډک دښک اوروسوي مینه چرته ده ... کله تو کېدی شي چې چینجو وهلی زړی وي
هغه ځنګه بګلی دی چې ګل غوندې موسکی نه وي ... هغه څه مین دی چې په د ښره ژړاستری وي

۱۹۷۲ سپتمبر ۱۲ لوازګی

(۹۸۱)

ستا چې تصور په تخیل د دیوانه کې وي — ګویا میخانه چې په ورکوټي پیمانه کې وي

څه به دلچسپي زما او ستا په افسانه کې وي — سول وي که سهځل دغه په شمع ، پروانه کې وي

بې نیازي او دورنګي ستا کړو دا حالت زما — یو قدم مې کور کې وي او بل په ویرانه کې وي

سرکې د الست د میو ډکې ګرځوي زما — کله بندول د خولې صفت په پیمانه کې وي

پوهه دې لشاهه عشق تهوس مې چې دحال کوي — دا ده مدعا چې د بیمار په خسمانه ، کې وي

زړه نه به خیګرز ما له قهره ولې سور نه وي

دکه ای حمزه چې خزانه په خزانه کې وي

۲۷ او ۲ حصمه

څه شي داوختونه که نغمه د نوبهار وهي — وایم چې مضراب مې دخزان ، دزړه په تار وهي

ما د تغیر او حرکت دنیا پرې ابنبې ده — څي دې مخ په وړاندې زمانه دې خپله لاړ وهي

بې د ښکلي یار د تصورنه نور چې هر څه وي — واره غلچکې دې چې مې لاړ د انتظار وهي

ای دزړه منصوره ، خان نه ستا خصوصیت نه دی — هرځانه چې ګورمه تالې په سر د دار وهي

مینه چې وي مینه ، هیڅ ادارک بې دخپل خان نه وي — بیانولاهي خنګه د سکون او د قرار وهي

راځي ملنفت کاسه په لاس کې خدایه خیره ي وي — شرګه نن اغیارته چې ساقي زما په وار وهي

زړه څه ، چې زده کړي خوشحالي به غم او سوز کې هم — سوځي سپلني او هم رقصونه په انګار وهي

هانې سرپټوب شي چې په خان اعتبار زده نه کړي — لاړد ژوندیې داوې چې تل لاړ ، اعتبار وهي

بې له مقدره به حمزه ورته نور څه وایي

لاړ د ترقی چې یوابله د یو هوښیار وهي

۱۹۷۱ ، اګست ۳ ـ لوړګی .

نغمو کې ساه غږیږي به ورو ورو وزر وهي — مضراب د زړه په تار چې د اشنا نظر وهي

غایت به جوړوي دا د زاهدانو د پرهیز — تسبو به خپریږي ګورمه یو بل په سر وهي

اسبند زما د کسبو په لیمو کې تل لره — اشنا نه بنایي تا چې د چا بد نظر وهي

کاوږ د انتظار مې د هجران د تپ دوا — دې شپې مې که هر څو ورته نعرې سحر وهي

ای عشقه چرته سترگې دي درنې نه کا غفلت　　چینجي د مایوسی مې د تسکین نمر وهي
اشنا د تا نه غوارمه لږ تنگ د عاشقي　　تر څو به ستا مېن تکرې در په در وهي

حمزه د تصرف نه د حالاتو شه اوچت
تر څو د تا په مخ کې به دا لړ په بر وهي

۱۹۸۴

یادونه دي زما دوسینو شپولاړي وهي　　لوظونه دي زما د شوګیرولاړي وهي
ستاګوابن زما د سوال او د زارو لاړي وهي　　دا بنکلي غلچکي د تا فلولاړي وهي
تاجان دي د نظر چاته دي تریخ او چاته خوږ　　شوکمار خواکې بودي خوخو شولاړي وهي
اشنادي مخامخ، له خپله ضبطه بم خفه　　ظالم مې اپله نن دا سو پلولاړي وهي
ارمان مې یو نظر و واخله مات مې کړ و نظر　　دا نن زما ککي د سپلنرلاړي وهي
غلط یې شوې دسترګو په ساده ساده کتو　　دا مرې غوندي چې نبکاري دژوندون لاړي وهي
مضراب ته د بنو به دي و و چار کړم د زړه ساز　　دا شرط به وي یکې چې د پښتو لاړي وهي
بیا داسې په تیاره شبه کې چې را نه شې اشنا　　بانه دي د سپوږمۍ د پلوشو لاړي وهلي

حمزه چې هغوسترګوته بانه دي نه کړې نیت
کېدی شي چې هندوان د پښتو لاړي وهي

۱۹۶۴ جولائي ۱۸ـ اوتر ګی.

یار مې سر د یو بوسې په بدل وایي　　زر شه زر شه راشه یار د اجل وایي
رقیب سپک لکه د مچ دی خو ګرم نه دی　　خپلو شوندو ته اشنا چې عسل وایي
بې له یاره چې خالي شي کور د فکر　　صاحبان د عقل دې ته خلل وایي
خوږ اشنا مې که بندبند پرې کړې اشنادي　　دانایان کله ګنې وته نسل وایي
سپه مست یې یو تر بله بسته کړې　　د خرې او روده قصه یې ول ول وایي
د الفت په سینه کې کب د سوې زړه مې　　د هجران د نهنګ سختې به تل وایي

حمزه خار دې تخت و تاج شي له دې فخره
سمندر در ته بادشاه د غزل وایي

(١٩٨٦)

چاته به څه وایمه چې ځوک راته څه نه وایي — به به چاته وایمه چې ځوک راته بنه نه وا
بدهغه ته مه وایه، چې بدله مجبوری کوي — ته مه وایه، بدان چې ورته بنه وا
مه گوره چې ځوک وایي، داڅه ښکلي خبره ده — گوره خوبس دي ته چې وېناچې کوي، څه وا
نن درته جاربېږي بیا سبادي په مرگ ارنه وي — ته که خبرنه یې نوخبرشه دي ته زره وا.
مه گنه پرهېزتي يې، چې يې تکله پرهېزخي — بري چې وځي تکل کي نوهم دي نه پرېوانه وا
وي پوځوخبرې دراتلونه پس یې نه کوي — وگوره خيرک اشناته، ماته يې په تله وا

غوږېږي حمزه مه باسه مزورې کا، که لرې کا
خلق مختلف دي ځوک دسمې ځوک دغره وایي

١٩٧٨ اپریل ١١ پېښور.

ماته هغه ښکلي، څه که بد وایي که بنه وایي — زه په دې پوهېږم چې په خوله اوکه په زړه وا
منع د شرابو خدای زده نوې که زاړه وایي — ورشه د واعظ نه خو تپوس وکړه چې څه وا
ښکلیه چې ماته کړې منتخب په کاهنانو کې! — خلک چې مېن نه وایي روند، روایه بنه وا.
سره یې اتنگي شي چې په ما یې نظر پرېوځي — د هر څه راته روایي که هېڅ راته ونه وا!
گوره چې یې ښکته په گستاخ نظر د چا نه کړي — ستا برند و اوږدو بڼو ته خلک پښتانه وا.
مېنه د کښو سمو د قید نه خو ازاده ده — ماته همه نه ښکاري که سم اوکه کاږه وا
خولې ته وار خطا خبرې راځي د دیدن په وخت — یار په تبسم خلکو ته روې چې دا څه وا
ستا د غږ و عشقه ماته هغه وخت احساس وشي — کله چې اشنا په خوږه خوله راته تراخه وا!.

خیر دي لرمانونه مې حمزه د زړگي ونشو ته
جار کړې پښتانه ورځني څه چې مېلمانه وایي

پخپل فکر که واعظ نادرې وایي — بې له عشقه نو خلق سرې وایي
رقیبان لکه د سپو ښکلي اشنا مې — کرې را اشکي اوبیا کورې کورې وایي
خوب ترخاپښته که دې پرده شي چې کورنه دي — سترپه حال دي اپوته چېترې وایي
په هستي کې شور زموږ تولنه بومه — د شاعر د تخیل وزرې وایي

[۹۹۱]

اشناچې نن سبا دې دلیموشوې نورې ژبې
پیداز ما غزل کې دنغموشوې نورې ژبې

تیرهم ې قافلې د مرحلوشوې نورې ژبې
بس نهې لاروې دبدرګوشوې نورې ژبې

اوس ژبې په پردو[۱] ژیو کې کیمې ژبې چرته
پښتوشوله زره دپښتنوشوې نورې ژبې

کره وره چې دصحرادې مرغیجن. لیونی تشته
ګونګی شوې اوکه نه دبریوکوشوې نورې ژبې

اشناعقه وروعبې چې پوره نه شوې پوره نه شوې
نن خنګه په مهنودې پیرزوشوې نورې ژبې؟

شوګیر مې خوبولی شوچې مینه شوه کامله
ګلفت دانتظار کې مې دشپوشوې نورې ژبې

شاید چې لیوتوب مې زیه زده دخاموشی کره
ازادشوم که زما دزولنوشوې نورې ژبې

بلنه دې دوعدې نه پس چې برمد غوندې ښکاره وو
داځکه دسپوږمی دپلوشوشوې نورې ژبې

حمزه چې صراحی شوله زما په وارکې تشه
سالي ته زما هم داسوپلوشوې نورې ژبې

۱۹۶۲ ستمبر ۲۰ (۱) اوږو لغه

کله په سر کره د سفرتوبې
دېسرلي دی پیخ سحرتوبې

لوبه وینا وي، معلومېږي زما
ماته چې شوې زما په سرتوبې

دېسرلي دنګهتونو سره
ورځه ورځه نښته خطرتوبې

دېسرلي په شپه کې خوب کوه تل
یاراوینجېږه په سحرتوبې

دیمانې نه مې نظروبونېد
څه خودې پیانې دی اثرتوبې

مستي هوانسرې خبرراوړي
داسې چې زه یم بې خبرتوبې

واچول پیغلویلوشوتالونه
هوش به دې زانګې ترسحرتوبې

نن چې مېلمه دې دبهارراغلی
څه هرکلي ته رابهرتوبې

ترېسرلي زما دزړه وضه
بیابه دې کرم دزره نظرتوبې

دمیخانې ور دې رب پورې نه کا
ستاخومدام وي بهرته ورتوبې

۱۹۵۳ مارچ ۱۲ پېښور.

[۹۹۱]

اشناچې نن صبادې دلپوشوې نودې ژبې
پیدازماغزل کې دنغموشوې نودې ژبې

تېرېږې قافلې دمرحلوشوې نودې ژبې
بیوزنهې لاروې دبدرگوشوې نودې ژبې

اوس ژبې به پردو[۱] ژبو کې کیږې ژبې چرته
پښتوشوله زره دپښتنوشوې نودې ژبې

کره وره چې دصحرادې مرغیچن. لیونې نشته
گونگې شوې اوکه نه دبریوکوشوې نودې ژبې

اشناهغه وروميې چې پوره نه شوې پوره نه شوې
نن څنگه په مینودې پیرزوشوې نودې ژبې؟

شوکېږمې خوبولې شوچې مینه شوه کامله
گلفت دانتظارکې مې دشپوشوې نودې ژبې

شاید چې لیوتوب مې ژبه زده دخاموشی کره
ازادشوم که زمادزولنوشوې نودې ژبې

بانه دې دوعدې نه پس چې برید غوندې ښکاره وو
داڅکه دسپږمې دپلوشوشوې نودې ژبې

حمزه چې صراحې شوله زمایه وارکې نشته
سالې نه زماهم داس پلوشوې نودې ژبې

۱۹۶۲ دسمبر ۲۰ (۱) اوریدنه

کـــوه پـــه ســـرکره دســـفرتوبې
دبـــرلې دې پـــښ ســـحرتوبې

لوپـــه وینـــا وې، معلـــومېږې زمـــا
ماتـــه چـــې شـــوې زمایـــه ســـرتوبې

دبـــــــــرلې دنکهتونو ســـــــــره
ورخـــه ورخـــه نـــشته خطرتـــوبې

دبـــرلې پـــه شـــپه کـــې خـــوب کـــوه تـــل
بیاراوېـــښېږه پـــه ســـحرتوبې

دیپـــانې نـــه مـــې نظروسوېږد
څـــه خـــودې پـــاتې دې اثرتـــوبې

مـــنې هوانـــــوی خبـــــرراووړ
داســـې چـــې زه یـــم بـــې خبرتـــوبې

واچـــــول پخلوپلوشـــــوتالونه
هـــوش بـــه دې زانگـــې ترســـحرتوبې

نـــن چـــې مېلمـــه دې دبهـــارراغلې
شـــه هرکلـــې تـــه رابهرتـــوبې

تربـــــــرلې زمـــــــادزره ومنـــــــه
بیابـــــه دې کـــــرم دزره نظرتـــــوبې

دمیخـــانې ور دې رب پـــورې نـــه کـــا
ســـتاخومدام وې بهرتـــه ورتـــوبې

۱۹۵۴ مارچ ۱۲ پېښور.

جې هر څوک د بهار په سرو لبو شیدا وي — که په اوږ کې وي ولاړ، شکري وايي
عاشقان که په ژړا که په خندا وي — په هر حال لکه بلبل سندري وايي
د حمزه ساده خبرې دي رازونه — د نږدې په رنګ کې لرې لرې وايي

(۱) ارسامت

عشله په لبو کې د ښکلاجې سو ځېدلی بې — سخ دې شه د حسن په باده کې لمبېدلی بې
یار زما په سرال فکر اخیستی سرې خورند دی — وخته خه د بهاره روایه ته ودرېدلی بې
مینه کې مینه بختور لکه د لفظ بې ته — هو مره او ځنیږې خو مره د هر چې غور ځېدلی بې
ای همته پل د کم همته ښهن ته شوې جوړ — تر بوجې شې تندی دلاژې بهر ته ګرځېدلی بې
ای د زلفو خیاله اېله ستا په زړه رڼا شو له — نصر نه بې د صبخ لکه د سورې بو ښېدلی بې
جنګ وکه جدل، دارمانو نو بخېلو کې — ته ولې ګرېوانه په دې مینځ کې شو کېدلی بې
نور خه وو خو عشق بېره پېښنه د رنه کړې وه — خو مه، چې جواب د رځخه نه وتښېدلی بې
بیکارې راته داسې چې د ردونه مې کم شوې دې — ښن چې اشنا د یرزما په زړه راوربېدلی بې
بې دلرې غم که د مفهوم انګازه نه لرې
فکر حمزه مه کړه فضا ګانو او رېدلی بې

(۹۹۰)

عرش چې کړې لرزان هغه ته آه رسايي وايي — کور چې د خېل زړه وران کړي هغه ته سودايي وايي
عشق له یار اشنا کړمه جدا، خکه رسوا شومه — خکه سبابه ته هم انګښت نمايي وايي
وک دی د نفر شو د کثرت د ماسواختې — حال د زاهد نقش د سجود ريايي وايي
ګړنه د هواستر ګې یک بیني ته ارم کړه تا — ګورې چې دیوېه خای دوه، دې ته اشنايي وايي؟
تشه سفينه د عشق په بحر کې لاهو زما — حال مې د فرقت در ته کچکول د ګدايي وايي
لب مې د خیال خوب کې بوسې د تصور کړي — حال راته دا کیف او مسرت د سبايي وايي
زه چې د هر خیز نه لرسانېم یکې یار وینم — یار ته زما ګوزه هسې ما ته هر خايي وايي
دو چې شې نسبت هلته بیا کار د غیرت خه وي — خکه عاشقان همه وصلت ته جدايي وايي
وی هم دا مقام دی ای حمزه چې بې مقامه شې — هیڅ خه چې کتی نه شې هم د هغه صفايي وايي

(۹۹۳)

ستا په انتظار مې اوږد بېدلي شپې — خدایزده چې بیا څنګه غزېدلي شپې
زړه مې د هغو زلفو خیرونه چار — راپسې چې کړي ماته زنګېدلي شپې
پرېوتې اوږدې شوې د سحر په خوب — لاړلې، شوګیرمې وو هلې شپې
بویه امتیاز په حسن او مینه کې — ستا دي خپلي شپې دي زما خپلي شپې
ستا د تصور له شمعې څه وابم — هم مې زړه ډېدلي خندېدلي شپې
ماني پسې د تاله سترګو خوره — خوږمې که په سترګو کې ساتلي شپې
ستا هغه وعده پسې بدرګه کړله — ما به درلېږلي تېرېدلي شپې

ستا د راتلو خوب دی چې حمزه لیدو
څوک به یې له سترګو تښتېدلي شپې

۱۹۷۶ جون ۳ ـ کوېټه.

(۹۹۴)

که د حالاتو له اغزو خپله سینه وساتي — دا د ژوندون لمحه به څنګه رنګینه وساتي
احدیت به دېر صفا منصور شي درته — که د عالم له پرتوونو آیینه وساتي
د ژوند اوبه به بې له خضره هم په لاس درشي — که دي جاري د خپلو دره سترګو چینه وساتي
مطالبې د دنیا ستا تر ژونده نه ختمېږي — نشته امکان چې به راضي دا ارتینه وساتي
زړه محبت ته حواله کړه که ترېږي تو خیر — نشته سکون که ددې بت نه دا ننه وساتي
راشه د لوس نه د هر چا سره الفت کړه شعار — ته به یو ځان به د چاچا سره کینه وساتي

د حوادثو به بلکونو لاڼوي شي حمزه
که لکه کلکه د سندان ځوندي سینه وساتي

ر ۳ ـ لوارګی.

ښوښتي د زړه وچوبو، نوبهاره ولې تښتي — توبه خوبه درجار کرمه خماره ولې تښتي
لشابه را روان وې چې کړه ستورو خلا زمانه — لاشپه ده سحر نه دی انتظاره ولې تښتي
د مینې خوبه هر کله راځه، هر کله راشه — راویښ مې پرې خوبونه شي بیداره ولې تښتي
زړګیه به الفت کې سیمابي خوبونه پرېږده — دا اور دی په ظاهر، خوله ګلزاره ولې تښتي

مرکز د مینې مه پرېږده، پرکار دې که ژونډون شي — هم دې کې دې سکون دی، بې قراره ولې تښتې
هیت مې د مرګې له سترګو . ستا په رانله لاړو — دا څرنګه طبیب یې له بیماره ولې تښتې

حمزه وکړه اول د بیابانه سره روغه
لا اوس چې ته غولی ته له دې ښاره ولې تښتې

(۹۹۲)

هوسه بنه وي ته چې تلې ووتې — دزړه د کورنه مې تېرې ووتې
چې روڼولې مې دزلفو په خیال — اوس مې له لاسه هغه شپې ووتې
اوښکې مې ښکلیه ستا په برند التفات — څه بوږنېدې څه موسېدې ووتې
لاړه وحدت کې نیرنګې د حسن — اوس د کثرت مې وسوسې ووتې
جوړلېږونې نه وې کامل لېږونې — دا چې له پښو مې زولنې ووتې
اوښکې مې ستا د رنګینیو په چر — پېره په بله پرېوتې ووتې
نن مې نظر څه ګستاخي کړې ده — دا ځکه نه بې شعلې ووتې
یکې مې خبره د مطلب پوره وه — خبرې د پرې مې له خولې ووتې
هغه خبرې د مطلب خبرې — تا خولېدې چې ربېدې ووتې
حمزه په نمرد التفات داشنا — ستا دارمان بندې حولې ووتې

ته د محفل نه د رقیب په لید و
حمزه په هغې که په دې ووتې؟

چې په عالم چغې سوري پرېوتې — پښو د هستي ته زولنې پرېوتې
ستا د بار خو هغه شوخي څه شوې؟ — څنګه د نصر نه پلوشې پرېوتې
نن دې نظر څه زړور غونډې د — زړه ته زما چې وسوسې پرېوتې
بیا به خواهش کړې د وصال او که نه؟ — څنګه ارمانه بې مزې پرېوتې
وروخې بانه یې چې حیا کوز کړل — شوم زړور غشي چړې پرېوتې

دغه ژوندون شولو نامزد په مینه　　تري په همتی کې غلغلي پرېږدي
خومي د ژوند نبضونه پرې نوځي　　خدایږو زما که ولولي پرېږدي
ستا په لمبو به اوس دیدن کوي ستا
که د حمزه خپلې لمبې پرېږدي

۱۹۹۱

ستا په وصال کې که هرڅو دېرې ګرانۍ پرېږدي
خو چې بهاپکې د سرښوه لسانۍ پرېږدي
عجیبه دا چې به تا پرېږدي ورمخ دي چې کړم
چې د فضا له آینې دې حیرانۍ پرېږدي
د شخصیت د زربودي پېږي هېڅ پروا مه کړه
چې له کمر نه د عصمت کوټي خوانۍ پرېږدي
مینې ارمان، چې ولي ته زمانه سازه شولې
که له معیار نه د مینو قربانۍ پرېږدي
مینه بښې چې د اخلاص او توکل دي نه وي
خکه به لاړ کې د همت له ناتوانۍ پرېږدي
چې آلوده به پېږي په سرورو مظلومانو مدام
ښکلي ساني او هغه دنګۍ ودانۍ پرېږدي
ساقي عطا دي هغه شان ده خو سرور نه راځي
چې له لمبو نه هغه ستا مهربانۍ پرېږدي
داسې تصویر دي د حیرت په یو دیدن کړم اشنا
شته مې لباس خویه لعنت مې عریانۍ پرېږدي
حمزه طوفان مې جوړ په بحر د سخن راځي تن
چې مې جېپې د طبیعت د روانۍ پرېږدي

۱۹۷۰ جولای ۳ـ کابل

[۱۰۰۰]

بلې مې په زړه کې شي ديوې قاصده نه راځي ‌‌‌ ‌ لږ چې شي له ما به نمرخاته په پرېواته راځي
نور کله به ته که په خوله نه راتلې په زړه راتلې ‌ اوس دې رالولمه په خوله د پرخويه زړه نه راځي
پوهه يم چې نه زغمې غيرت دې غيرت چرې ‌ ځکه "زه" چې لرې شي زما نه هلته "ته" راځي
شته دی که کثرت يکې د غيرو فکر نه کړمه ‌ ستا په رنګ کې رنګ به شي. که کوم نه مې د زړه راځي
ای د اشنا زړه که ته حرم شې هم محرم[۱] دې يم ‌ فکر کې زما چې ته حجره د پښتانه راځي
زه چې اوس په خپله هم له خپله خانه هېرېمه ‌ ای د اشنا ياده! اوس که ته راځې نو څه راځي
فن او شخصيت زما حمزه، غنده هم عصره خبر ‌ بيا به هم مجبوره يې چې ته زما په پله راځي

۱۹۶۸ جولای ۱ لوړګی ‌ (۱) ار: محرم

[۱۰۰۱]

بې له اشنا چې تېرولی شم اساني ورځې ‌ ځکه داګراني ورځې نه دي په ماګراني ورځې
ستا تصور چې اشنا روح دور خوشېږ دی زما ‌ څو که تېرېږي، نه تېرېږي زما خواني ورځې
ستا د کافر و زلفو شپو هم پرېشانه نه کړي ‌ په جمعيت کې مې تېرېږي مسلماني ورځې
ستا التفات که وي هر څو، غايبانه پوهه شم ‌ چې کله کله پښه نيولي شي رواني ورځې
لکه چې به تسلسل کې يو بېبړ لېده شي ‌ په انتظار کې يوه ورځ شي راروانې ورځې
زړه به شدت د استفهام کې آيينې غوندې شي ‌ لکه د شپې په انتظار کې شي حيراني ورځې

که صحيفه د کاينات همه لوستی شي حمزه
د مخ کتاب نه د اشنايې وي امياني ورځې

۱۹۷۶ جنوري ۸ لوړګی.

چې نښته دې د وعدې شوه رانږدې ‌ مرحله د شوګيرې شوه رانږدې
وخت يو ځو قدمه تېر و خو حصار شو ‌ چې لمحه دې د نښتې شوه رانږدې
د وصال وي که د هجر زه پوهېږم ‌ اوږده شپه د شوګيرې شوه رانږدې
اوس به زه ورځنې لرې لرې ګرځم ‌ ګوره ګوره که به دې شوه رانږدې
چې يې زړه، اسره خو يې په نږديکت شو ‌ لکه زړه به زړه پېښې شوه رانږدې
ستا خواني چې هر يو ګام يې يو قيامت دی ‌ انګازه يې د نغمې شوه رانږدې

چې بې ما بې زما زړه ساتلی نه شو — نن نا خاپه ستر ګي غلې شوه رانـزدې
غلبلـه مې ارمانونو کړلـه جوړه — غلبلـه د قـافلې شوه رانـزدې
حمزه شونډه نه بې ګوره داسې ښکاري — چې موسکا د ښـښتې شوه رانـزدې

۱۹۶۴.اکتوبر۲ـ کابل

(۱۰۰۳)

نـامې ارمانونه کړه همه د خـاورو لاندې — ځې مې کمېنې لکه غبار په فضا باندې
واره بلبلان چې پرېـښه تابـې زړا کـا — ای ګلابه وایه نه د چا دبهاره خاندې
څوک درنه نظر کړي شي په جلـتر ګې زیاتې دي — راشه پوروا ج دي چې لوګي کړم درنه سپاندې
ګرونځودې د وروخو بې اختیاره په ژړا کړم — راغله زلزله وچې چېنې بې کړلې تاندې
ساجي په سپرلي کې توبه وکړه له شرابو — ځکه د خران سترګې به تلو نه دي نغلاندې
ماحمزه رنه لکه د سبې خوبه خلوت کې — خانده رب دبهاره رانـه نه د رقیب ورانـدې

(۱۰۰۴)

ای ضبطه نـل پـه تابـه ز ورانې جوړېـدې — که ګرانـې کـشالې بـه وي اسـانې جوړېـدې
دبنګلیو په خوږمې چې پېژوکړوزړه راکښون — خودزلفې ګېرچاپېرتړنه پرېشانې جوړېدې
بس بودبې نیازۍ تکې بې پټ ترې وساته — ستا سترګې چې دزړونو استاذانې جوړېدې
ځه شبې وي چې زمادبې ادب نظریه ست — ستاسترګې به پروب کې ماشومانې جوړېدې
ببراکـه بورنېدل چې ظلمتونـه د عـدم — مومسکې پکې ضمیرودنیاګانې جوړېدې
پښېمان د محبت شوم چې بېګاه وبورنېدي — ستاسترګې ښښتې ولې هندوانې جوړېدې
حمـزه د ښـکلا رازمې چې بـه ناظـاهر وو — شایدوېږې هستې به غزلخوانې جوړېدې

۱۹۶۲ ـ اکتوبر۱۲ ـ پولیتخنیک

(۱۰۰۵)

که ستاله مستوسترګو پیمانې وشرمېدې — سـالې زمالـه ظرفـه میخـانې وشـرمېدې
جرات دګستاخۍ مې شو په لاسو کې پیدا — نن ستانه چې شوې څېرې بهانې وشرمېدې
نبا پست ورنه د شمعې پس له سوزه شو څرګند — پردو دځپل خوړلن کې پروانې وشرمېدې
داستاد رسوایۍ لـه مخـه چرتـه جـاروتې — لـېکن وفـادمخ نـه افسانې وشرمېدې
مضراب مې دهر چې دزړه سازته کړو ورتېر — لـې ورا دالفت شوه ترانې وشرمېدې
داځکه زمانـه شوه د دوستۍ او اشنایۍ — یـاران خوتـه شرمېږي یـارانې وشرمېدې
حمـزه زمـاخولـه دانفعـال ده کوثري — تندۍ مې چې پرې خم شو آستانې وشرمېدې

(۱۰۰۶)

بې تامې ورځې شپې که تېرېدې نه تېرېدې
هر څوک مې دغم نه بوونېدې نه تېرېدې

را اوري مې بې ولړه نن په زړه څه حالت
چې ستا د کور تر دره زمانې نه تېرېدې

هر څوک که طوفاني وي خو په مخکې داغيار
لېمو ته زما اوښکې پښتنې نه تېرېدې

غالب په اغتصال مې د سالې وسره لېمه
د زړه نه زما شونډو ته توبې نه تېرېدې

راتلو ته وې بې صبره خو ستانوم د ورسره
سالکې زما تر حلقه تېرېدې نه تېرېدې

يو وخت و چې به تل وې په ماسترګې د سالې
بل چا ته له ما مخکې په کاسې نه تېرېدې

الفت شولو راسنون چې ستا فريب شو د معلوم
ستا حسنه تېرېدې، خو مرحلې نه تېرېدې

څوک پوه مې په دې راز کړي چې مې يار وليد يوځل
بيانوري مې د سترګو نه څېرې نه تېرېدې

حمزه څه شې که اوس يو وروستو پاتې لکه ګرد
کوم چول وچې زمونږ ترې قافلې نه تېرېدې

(۱۰۰۷)

لېمې مې په ديدن چې دلېمونه مړېدې
دا ښکلې تماشې په تماشونه مړېدې

نن شپه د انتظار نه ده ډېوې که څه دې چل؟
پخوا خو ته زما په اسوېلونه مړېدې

نن څنګه ښکه غلې غلې ګروې خبر دې دې
اشنا ته خو د زړونو په دارونه مړېدې

هر څوک که وخاموشه خواشنا و ملتفت
لېمې مې په منت او په زارونه مړېدې

چې سترګې د نابست دې کړي لاوزې دستم
اوس چوپ ولې حمزه شوې؟ په زېړ ګونه مړېدې

۱۹۵۲ م ورمنې حنور پېښور

(۱۰۰۸)

شاملم دې زماتل وي که فرقت وي نو هم وي دې
حاصل د محبت مې که حسرت وي نو هم وي دې

الفت زما ضمير ته حکجکی دکړي چې جوپ شه
چې زړه را خبر نه کړې که ذلت وي نو هم وي دې

دښمن يم دعادت خو چې عادت دې شوم په مينه
اوس دارانه زړه وايي که عادت وي نو هم وي دې

امامه د بې محوقد قامت دريسې واپېم
هر څوک که قد قامت د قيامت وي نو هم وي دې

بس داچې ده نه مه ګوره محفل کې مانه ګوره
اغيار ته د راتګ که اجازت وي نو هم وي دې

باران د وصال راوره د وريځ غوندې کريمه
که ژوند لکه حباب مې يو ساعت وي نو هم وي دې

د زړه به خواوشاکې مې خوره غوندې تېکالوده
په خداى مې توکل که محنت وي نو هم وي دې

خواني مې په خندا خندا کې خاخې لکه شمع
اوس نور دې د خندا که څه قيمت وي نو هم وي دې

درشل ته که د يار دې حمزه سر ورسې بس دې
بيانور د دې نه پورته که رفعت وي نو هم وي دې

[۱۰۰۹]

قربان دې له کاکل که شوګیرې وې نوهم وې دې — قیامت هومره اوږدې که زمانې وې نوهم وې دې
درخم به که لوټ شوې قافلې وې نوهم وې دې — که بیرته سنتې شوې بدرګې وې نوهم وې دې
ای عشقه د وحدت د تصورنه دې لوګي شه — محفل کې د خرد که د بوې وې نوهم وې دې
ساتم به پهٔ سینه جذبه مدام سپینه سپیځلې — که سترګې د حلالتو راته سرې وې نوهم وې دې
نن زه د هغه ښکلې یار د سترګو ښم قلکه — ښکورې دې له قهره که کلسې وې نوهم وې دې
ساقي راکړې جام اوزه بې بیرته ورد یکمه — جب جورمې به دې مینځ کې که توبې وې نوهم وې دې
تندی مې دروازې د میخانې سره په جنګ دی — که بیرته د توبې پرې دروازې وې نوهم وې دې
واعظه ته د زړونو اخیستل په سرکې زده کړه — بیاپنه که په لاس کې دې نسبې وې نوهم وې دې
د زمونږ ترمینځه شته یو هود د ښتونوالي — هرڅود رته راغلې که جرګې وې نوهم وې دې

[۱۰۱۰]

په کومه ورځ چې راته نه ښکارې — په هغه ورځ راته لېمه ښکارې
پوه یمه تاته چې زه څه ښکارم — ته یې خبرچې ماته څه ښکارې
بدې دې ماته بدې نه ښکارې — په هرانداز کې راته ښه ښکارې
وې د کتو دې بیدارې د ښو — هغه ساعت چې ته اوده ښکارې
د تخیل په اتنګو کې زما — د خپلې پېغلې حیاسره ښکارې
داسو پلولمن مې چاونیوه — داشنایاده جورپه تله ښکارې
اوربې ارمانه چې په زړه کې مې یې — چې راشې سترګوته، اوبه ښکارې
بس چې له خپله خانه ورک شومه زه — اوس ماحمزه ته واړه ته ښکارې

۱۹۵۱،دسمبر۱۸_پېښور.

[۱۰۱۱]

ته د کومې ورځې نه، ماته چې لېمه ښکارې — څکه راته نه ښکارې، تول چې راته ته ښکارې
څه چې راته وایې ته، وایه بد پرې نه ښکارې — زړه خوهرڅه وایې نو، نه خو ماته زړه ښکارې
مینه کړې ممکن هغه، خدایه ناممکن چې وي — زه چې تاته بد ښکارم، ته چې راته ښه ښکارې

مینه کله حسن شي، حسن کله مینه شي — کله چې زه ته ښکارم، کله چې ته زه ښکاري
خان ته ^(۱) ایله شم خبر یوه شم چې زه هم یمه — ته چې رانه تله کوې ماته په رانله ښکاري
ره لکه بلبل هسې، سر په ژړا به ښکارم — ته لکه د ګل هسې، سر به خندا به ښکاري
لوس چې خان مې بیاموند و ښکلیه ستا په سترګو کې — زه به در ته ښکارمه، ته به رانه نه ښکاري
نول یا موږ خبر کړه ما، تولې کوڅې چاڼ کړې ما — نه په تمر خانه ښکاري، نه په برهوانه ښکاري

زه وایم چې بل بهار، دې کلي کې وغونچیږه
ته حمزه چې هر کله، سر په زنګانه ښکاري

کوه دمی او د الفت خبري — نه اوري خوران د نصیحت خبري
پورته له تاچې شوم پرده پورته شوه — عشقه له تاوې د حکمت خبري
دآیینه زړونو صحبت کړه اختیار — هلته به زده کړې د حیرت خبري
تل په نشه کې له رندانو وخې — داد زاهد د کرامت خبري
ښځنه مینه مې شریک نه منې — کوه د تنګ او د غیرت خبري
در بهغه پوازې دې د غم سره شم — نه شي جلوت کې د خلوت خبري
زه د خپل غم سره پوازې به یم — همدمه ستا شي مصیبت خبري
ماچې کچکول د تمنا کړ لومات — اوره ستا د سخاوت خبري
خبرې د هرې سرې پوه حمزه — چې خرڅې نه کړې په دولت خبري

۱۹۶۰ سنبر ۱۵ ـ لوارګی.

ګوره مه نغوږ پرد^(۱)، د اغیار خبري — په زړه دې راشي دانکار خبري
دازماژبه د دیوې ژبه شي — چې کوي ستا د انتظار خبري
زه یې د غږ سره اشنایمه بنه — څه خو دې وکړې پرده دار خبري
لږې داده کړه تلې ورکړه — پسته بیا واوره د بیمار خبري

ستا انتظار ورلـه بـوږن[1] راوور ــ سترګومې رابـکې دخمـارخبرې
زرګیه ژوند دې مبارک شه خوشحال ــ کـه اوربـدې شې د هوښيار خبرې
حمزه[2] دښکلیو پـه ګفتار مـه خـه ــ ماتـه يـې وکـړه د کـردار خبرې

(۱) آر: لعوبېدم (۲) آر: بوکن

(۱۰۱۴)

بندمې زبان دی خوکوې دسترګونم خبرې ــ دخاموشی په ژبه کاندې جام دجم خبرې
په جدایی کې بې دیارله ذکره نورخه نه وي ــ شهدوشکروي خنګه مـالره دغم خبرې
مخ بې دی نمر، خوزه صفت دسترګوزلفوکوم ــ عجیبه داپه سپینه ورځ کرم دتورتم خبرې
یارمې موسکی په تصوردزړه لیمولیدو ــ دردونه تښتي، کړي پرهرسره مرهم خبرې
داشناهغش مثالې راسره تل کړی کلام ــ خوک دې چې داوایې چې نه کاندې عجم خبرې
لعاب ددهن روښانې روح القدس درکوې
حمزه پـه ژ دالهام دې کړې قلم خبرې

(۱) صح (الشفاء) پرلومړی شهه.

شې په حالت دبې چونی کې دبې چون ــ دبې چګون نه کړه حاصل دبې چګون خبرې
ته که فلک شې په معنی دمینې رازبه وې پټ ــ خوچې حاصل نه کړې دسراودزنګون خبرې
بیاپه لـفضادهر"صبا" کې یې خبرې اورم ــ "نن" مې ژوندی کړې اشنا "ستا" دهرورن خبرې
ښکارې چې راس په آیینه کې هم دروس شې پیدا ــ ګنې دوه نه دې دلیلی اودمجنون خبرې
دمینې جذبه مبارک دې شه، شته من شوې ایله ــ سخې اشنامې چې نن زده کړې دلاورن خبرې
دزلفوخیال مې شوګیرې دلسې خلانده کړلې ــ چې توروې شبې نه شې کوی دساوون خبرې
دمرګ دسترګوسره خوسترګې به سترګې نه شي ــ زرګیه هومره به زده نه کړې دژوندون خبرې
بانه دې پوهه کړه چې بریداوسهې ښکه نه شي ــ چې هجرې نه کړې دپښتواودپښتون خبرې
سرې کـه لـه قهره وې عـادت دشوګیرونه لرې
حمزه کـه تـل کـړې هغـه سترګې دشبخون خبرې

(۱۰۱۶)

دهغو لویو یخو شپو خبري      هغه خوږي غوندي یو څو خبري

بانه دي تیت نه شو دستر گو سره      کله پرېښوی شي د ویښتو خبري

دلونو خبري نوري نه وي      واوره اشنا د زولنو خبري

دیوا وبل سره تندی جنګول      زاهده دادي دتېبو خبري

ستا په غضب یې اوبه توې کړلې      نن مې په کار شوي دسلګو خبري

دساده رنګو غلچکو خبري      زده مې همه ستا د ککو خبري

چې موبدي را دبرق هسې ته      درته ما خود کړي په شپو خبري

په غزونې کې موسکی شو اشنا      دي دارمان دغزېدو خبري

حمزه بهار یې دخواني راغلی      کړه د ارمان د رژېدو خبري

(۱۰۱۷)

دهغه سترګو پېښتنو خبري      څنګه درنې وي د درنو خبري

زاهده پرېږده دتېبو خبري      کوي ما حول د زولنو خبري

داسترې ژوندي مبارک شه مینې      زده چې اشنا کړي په لېمو خبري

درنه به وانه ورمه پوه شوي که نه      درته مې وکړي په پښتو خبري

دتندي ګونجې دي، مقول خونه یم      چې کوي نن دتاترو خبري

دابو نېدلې هوسې سترګې دتا      وکړي ناڅاپه دمزرو خبري

دحمزه زړه ته دلاسه ورکوه      داد ارمانه دزلمو خبري

۱۹۵۵، جولای، لواړګی

(۱۰۱۸)

راوړي نسیم دپرېشانو خبري      کوي ورمې په تېندکو خبري

دزړه لېمو کې مې خمار شو پیدا      نن چې اشنا کړي په لېمو خبري

ستا دبنو خبري نبغې وي تل      داسې وي تل د پښتنو خبري

ګوره په خپله به پخلاشو سره — نه دي، دانه دي ذجرګو خبري
وکړه دجام داسو پلونه تپوس — ولې میناکړي به سلګو خبري
به دي ساده سترګو غلط چې نه شي — د بړي يې زده دغلچکو خبري
لاس بې بې واکه حمزه زلفوته خي — دي يې په زړه دزولنو خبري

(۱۰۱۹)

وکړي به ورمرچې فضاګانو دسپرلو خبري — ومې کړي شعورسره وحشت دلېوسو خبري
ورلندي به ګيلې وره دسترګوبه کښنې کې کړمه — خکه چې بې داره وي داونسکو دجرګو خبري
مانه له "خوشحاله" يودشعرميراث پاتې نه دی — هم راته زده کړي دي بابا دمېرنو خبري
خلې دی دکوم يو تنګيالي چې وړته راشمه زه — واره چاپېرچل يې راته کاندي دپښتو خبري
ساده پښتنوزلفوته دې وم عقلمنديې کړمه — پرهې نه مې راغلې دبهرداوزولنو خبري
ماوې دومره حسن به دي مړوسترګوکې خنګه راشي — خسب وکړوبنوچې هم به دي کړي دژوندو خبري
نل چې صراحې غوندي دامسته غږي څنګه لري — ستابه ساقي څنګه رندان نه کړي به سلګو خبري
څنګه سرتندي وهل دي خوپنې شوتول عمري واعظه — دادي دتسبو خبري، يرپرده دتوبو خبري
دااوږده قصه ديارد زلفوده کوتاه دي نه شي — تل دي وي جاري دانتظارسره دشپو خبري
راغلله دبرسپرلې درنګينوبنکلو سره — نه شوې تري پوره به زړه چاودون ستاوړشو خبري

راشه حمزه نن خوښکلې يارته زړه بهرونيسه
خان کاندي ناجانه چې نه وکړي به لېمو خبري

۱۹۶۳، مرورۍ ۲۰ پېښور

ګوره چې کړي د پښتنو خبري — هند کې بانه هم په پښتو خبري
اورم چې تل د بسرلو خبري — هغه کوي ستا د ورشو خبري
بانه دي برند غوندي شو بنکته يې کړه — په زړه مې پاتي دي يوخو خبري
دي مانسو ماني، خو زما په کتو — سترګې دي وکړي د زلمو خبري
سترګې دي نورو ته وي روغې اشنا — ماته کوي د لېونو خبري
پښتنې خير که مې نظر څه وي — خلق زغمي د مېلمنو خبري

وخته لمحې به تاريه تار شي دتا    چې کړي د زلفو د حلقو خبري
چې مې پښتوله ياده ووېستله    هېري کړي ما د مېړنو خبري
که مستقبل دې تنګيالي وي په کار
حمزه کوه د پخوانو خبري

۱۹۲۸جون ۲۹ لوارګی

راشه چې دواړه سره نن وکړوبوخوخبري    هغه خبري چې وي تل د پښتنو خبري
بلبه دي پرندشول چې نظرمې ګستاخي وکړه نن    پښتانه بويه چې زغمي دمېلمنو خبري
مينه وايه بې په جهر ،چې په زړه وي دتا    داعقلمن کله منې دلېونو خبري
خوچې دزلفودسودا په زړه هوارانه شي    نه شي په پوهه کې راتلی دزولنو خبري
حمزه ته راغلي خرداغنګه دې راتلل ووا شنا
دتاد سرګوخني اورمه دتلو خبري

۱۰۲۲

بېو دي زما او ستا د زړه خبري    څه که جدا سو دي په خوله خبري
زمونږ ترمنځه وشوي څه خبري    اغياره پرې يې پوده ته څه خبري
څوکه په خوله راخي د زړه خبري    خو د زړه نه راخي په خوله خبري
څه عجيبه کړو زه او ته خبري    چې سره نه کړو زه او ته خبري
ته آيينې وته قهرېږې ولې؟    کړي آيينه د چا د زړه خبري
ګونګ دې نظرشوکه هوښيارشوې اشنا    که وي کړي هېري په لېمه خبري
چې يې لېواله د ترخوکرمه زه    دومره خوږې دي د هغه خبري
له پښتنې خويه دې جارشم اشنا    نه دې په تله نه په راتله خبري
د زړه آيين به دې صيقل کړي حمزه
چې اوس يې زده کړي په بانه خبري

(۱۰۲۳)

واعظه بنې دې ډېرې بنې دې د کعبې خبرې — کله د اروخـتـه زړونو هم کوې خبرې
عجيبه داچې ورته وکرمه تودې خبرې — کرې راژوندې مې اسويلې، دناسرې خبرې
خدای زده چې تېر دې په بوږجل یم، که تېرېږمه اوس — راسره نه کرې ستاله ډاره مرحلې خبرې
راښکنه ډېره ستاد مخ ده که د زلفو اشنا — شوې په دې دې جرې هم د ورخې شپې خبرې
پسته خبرشوم چې مې سوال ترې د وفاکړی و — خدای زده چې خنګه مې د خولې نه راوتې خبرې
په خاموشي کې هم هنر دلبرني وګوره — کړې د زلفو يې زنځيراو زولنې خبرې
خدايږېه کيف بې د ترخو ميو اثر ورته که — واعظه ستاکه ډېرې ډېرې دې خوږې خبرې
شولې، سختې، دوګاراوله مېرانې دکې — د ښتنې له ژبې خوندکړې پښتنې خبرې
حمزه ماوکړې ورته دوه، خويوپه دوه وه حساب — ډېرې اشناشو حقيقت کې مې دې درې خبرې

۱۲، اګست، ۱۹۷۶ لوړګی.

(۱۰۲۴)

زړګيـه بـس کـړه دا زړې خبـرې — داسـوېلو پـه تـار تـړې خبـرې
په نوې رنګ راته موسکی چې بې شن — درته جوړ يادې شوې زړې خبرې
ورو خې چې ستاکړې ملګرتيا دژبې — هم دې نشتر دې هم چړې خبرې
په زړونو لوبې چارې وکـړه اشـنا — وکـړه يو ځودنـاز ورې خبـرې
تريو دې تندي په وعدو راوړو ولې — اوس مـې ديـادو نـه شـړې خبـرې
راشـې خوستادتورو زلفـو پـه مـخ — شـې مـې زبـان تـه پيکـړې خبرې
حمـزه حکمت دې شو ول ول د مزې — چـې دکاکـل پـه يـادغړې خبـرې

(۱۰۲۵)

تـن پـه بېلتـون کـې دخوانی خبرې — پرپـرده داتبـرې پخـوانی خبـرې
ايرو چې خوب راته بېګاه رانغی — يـادې مـې ستاوې سبانی خبرې
بـه‌ا چې اشنا راځې تـل تـل يې کـوه — قاصـــده دا دودانـــی خبـــرې

ستـادمین وینـه ارزانـه چـې ده      لالیـه مـه کـړه دګرانـی خبـري
وایه حمزه پـه خوله د   راغلي ولي      پس دالفـت نـه دخـانی خبـري

۱۹۵۱. جولای ۷_لوړکی

دشت کې بدرګې سندري      چـې ورسـره وي قـافلې سـندري
ستوري موسکي کړي دتيري سندري      دیرسـري تـوري شـپې سـندري
نـوي داغونـه مـې ديـوي کـړه دزړه      مطربـه ووایـه زړې سـندري
درتـه بلبـل پـه انتظـاردی غـوږنی      لږه موسکی شـه کـه لـړې سندري
دمېرنولـه مرګـه څـه وایـمـه      چې شې نوحې هم دریښې سندري
چاهـــې وي؟دلیونونـــه دي زده      درتـه یـې وایـې زولنـې سـندري
دړقيب زوږمې مینـه هـم خوښوي      وي داونيــانوغرغري ســندري
ستادزړه سوی بـه اسوېلی شې زمـا      داورلمبـې دې داسـرې سـندري
داافقونـه بـه ګویـاکړي حمـزه      دتالـه خـولې چـې ووتـې سـندري

۱۹۷۷. جولای ۲۲_کابل

(۱۰۲۷)

تور مې دالفت کړو ستا پـه پلـه پوري      اوس مې ککی چرتـه پـه لمـه پوري
سپک بـه وي شـاید چـې شي مـین پـه تا      نـور دي وایـه وخنـدل پـه څـه پوري
عقلـه تـه بـه سیال دمحبت نـه شي      دنګـه منـاره څـه وي پـه غـره پوري
اوښکه کـه وی پـرې بـه وتـه ستاپـه تـګ      زوړنده(۱) ارمـان دی پـه بانـه پوري
څرنګـه شبنم نـه شـوې موسکی ګلـه      نیـاز بـه کـوي سـتادنرخاته پوري
راچې شي سپوږمی زماپـه کـور هغـه      نـورغرض مـې نشته پـه تیـاره پوري
ستایادونـه نـور زمـا نـه غـواړي څـه      نښتي مـې داجـوکې دي پـه زړه پوري
زړه مـې داشـنا دالتفـات سـره      راغـی پـه جلب(۲) کې ترکالـه پوري
څـه کـه اوس جهـان شـو دالفت فـراخ      تنـګ چې شـو حمـزه پـه ژونـدانه پوري

(۲) او جلب

(۱۰۲۸)

دلبر چې په رنجو کړي سترګې توري　　لمبې د شپې له سرنه شوې راپوري
پیالې شوې په پیالو باندې نسکوري　　محشر شوچې شوې دوه سترګې خلوري
عاشق یې په کاکل دیار رقیبه　　درخار که د لستوني مې منګوري
شیرین سم قاتل وه لیلی توره　　قاتل سپینې سودا کړې ورکوې توري
دی کم مې جوړ نظر د انتخاب　　جانان راته کاندې ستغې سپوري
خاموشه حسن دی په زر زبانه　　ای عشقه ته په زر ژبو په شوري
پروانې د حمزه د نظر څه کړي　　ناپوهې په پرواز د چا په لوري

(۱۰۲۹)

چې په محفل کې راته نه راګوري　　نو زه پوهېږمه چې بنه راګوري
زه شمه پوه چې غافل شوی یمه　　ماته چې ته اوده اوده راګوري
چې دې اغیار ته په خندا وکتل　　زیات به له دې نه راته څه راګوري
په زړه راوګوره بینا به شمه　　څه که رانده ته په لیمه راګوري
کله دې سترګې په بل لوري وې اشنا　　خو زه پوهېږم چې په زړه راګوري
چې کله کله مې زلمي شي احساس　　زه به دې پوه شمه چې ته راګوري
ستا د بنو له فنکارۍ نه توبه　　سم یې وېشتلې وي که کاږه راګوري
لابخه خوبه خوبه به وي اشنا　　ماته چې ته هسې ناوده راګوري
زه حمزه پوه شم بې لوظې کړې یاره　　ماته چې ته نکه د غله راګوري

(۱۰۳۰)

کله کله ته په غلچکو سترګو راوګوري　　جارله دې کتوچې په زړو سترګو راوګوري
مرهم چې دم هلته په کتو اوس به ژوندی شمه　　ته که اشنا مانه په هغو سترګو راوګوري
خوان به مې همت د تیرېدلیو ارمانونو شي　　ماته که اشنا په بېښتنو سترګو راوګوري
ماته شي معلومه چې هینداره د شعور شومه　　ناځاپه چې ته په لېونو سترګو راوګوري
ماخنې تپوس چې دانشور د ژوند د راز کوي　　درېغه که یو خل ورته په مرو سترګو راوګوري

کله دي خوږوکي دترخوغلبه زیاتـه وي — کله به ترخوکي به خوږوستر ګوراوګوري
زه به دوه جهانه دوه قدمه کړم تري تېر به شم — نه که ښکلیه ماته به دي دووستر ګوراوګوري
د خبرکي به سادګی کي هم دحسن ده — نه چي به محفل کي به پردوستر ګوراوګوري

ښکلیه، شبستان دانتظاردحمزه خلند شي
نه چي به دي پرکندوديووستر ګوراوګوري

ت۱۹۷۴، اګست۲۶ پېښور

(۱۰۳۱)

ستا و رانګ چي د اصدادو نه میرخي لاړي — دعقل اوعشق هغه جنبي اودبنمني لاړي
ستانه به تور د میني لاړ نه شي تر عمره اشنا — خه شي زماکـه بـه ژړا ژړا ککـی لاړي
ستا د ښکلا به بلندیو کي نظر لاځه و — چي دهمت د سرنه هم ورتـه خولی لاړي
فیض دد بدن مي وچو شونډو دارمان نه یوړو — زړه نـه چي بېرتـه زمااوښکي لمبوني لاړي
په بسرلي کي بـه هرخوادښه نصري اورم — چي دي طرف، هغـه طرف، لاړي هوسي لاړي
دلبرنـو د اسـوېلو و برکت، کـه ښـه وو؟ — هغه صحرا ده، خوکوم خرابي بربوکی لاړي

ښکلیه چي نادخیل حمزه سره وفا ونه کړه
څکـه هر لـور تـه دي نصري دبي پتـی لاړي

۱. پېښور

(۱۰۳۲)

ناکـه اشنازلفي زولنـي دي پیداکړي — مالکـه شمیم دتللوېنـي دي پیداکړي
نه که به پرده کي وي پرده بـه پیاتي نـه وه — ستابي پردګـی هغـه پردي دي پیداکړي
ستادمخ دشمعي درڼانـه بـه تـش نـه خم — مادتالـه زلفوښـکلي شـپې دي پیداکړي
خارشم دحضورخني چي ستا اور اور کي دي — بـي شاوه چـي تـابکي جلـوي دي پیداکړي
ماچي ښایست وپېژندو پوه شوم چي دجایم — رنګ په رنګ که حسن دي خپري دي پیداکړي
خان تـه چي کتـل دي دعدم بـه آینـه کي — شـوق دتماشـي دي تماشـي دي پیداکړي
بـس هغـه کوربـه ددي جهان دی پېژندلی — دلتـه چي جاسـترګي مبلغـي دي پیداکړي
پرهه شو حمزه چي دلطیفـه، مزار یې ولید — ستامیي داهـي آستانې دي پیداکړي

۱) دحاجي عبداللطيف بهاي بهت ته حجرآباد سنده په مزار.

(۱۰۳۳)

نن ر زاهده عجیبه غوندې نظر کړې — وایه ته زما دمې کښې نه چا خبر کړې
لا در کې تیارې شته ذهن . زما گریوانه — ته په عاشقۍ کې چې خندا لکه سحر کړې
تول ذعمل سم کړه . تسبې هم کړه . مې خوښې هم — نه چې خپل ثواب او عذاب د واړه سر په سر کړې
ما دې اوس اشنا لتون پرې ایښې دا صحیح ده — ودې پوښته خیال چې مې د زړه نه چا بهر کړې
عشقه دهغې زړې خو شرط وې چې فناشې — بیالازمه نه ده چې به ته شاخ و ثمر کړې
حسنه هم دې زړه هم دې ساره شې عجیبه یې — نن به اشنا ښکارې خو سباړانه خطر کړې

ښکلیه په لذت دُنیا زچې پوهه ته حمزه کړې
زه دې دریه درکړمه که ته مې دریه درکړې

(۱۰۳۴)

اور د لشتیاق مې لمبه جن په تغافل کړې — به شوه د یره به چې مې غوټی د مینې گل کړې
ښکلیه چې خواني او سادگی نه دې پام وکړم — ابزده په زارې د مېن خنگه تامُل کړې
راغلې په وعده، په اضطرار مې خفه مه شه — نه ور مناسب چې پښتنې شونډې مې ښکل کړې
گل هغه زړه چاودې په خندا کې ونغښتلې — هغه گرمې چیغې به گلشن کې چې بلبل کړې
ښکلې پښتنې مخ دې مېلمه ته هم بدل کړ — دا دې څه ادا وه که نه خپل حسن مغول کړې
خوی چې د بلبلې درنه ونه شې د زړه بازه — ښکار که د میر ښکار او د شاهانو په منگول کړې

زور شوې خوخواني دې د غزل نه حمزه نه خې
تهر شوې له پنځوس خولصې د گل او مُل کړې

۱۹۶۶اپریل ۷ _ لواړگی

(۱۰۳۵)

څه شې که خبرې په پښتو د پښتنو کړې — هله به پښتون یې چې کارونه د پښتنو کړې
څوک و چې خبرې یې هر دم د بدرگو کړې — خدایه ته به خیر حُوه دا سفر د قافلو کړې
تل پرده دې څه ده چې ستم دې لاسوا شي — کله چې راسخ شي نو پلو دې بیمکنو کړې
څه شې چې دې اوس د رقیبو له کوره وتي — دادې کوم کرم دی چې تپوس د لېونو کړې
ته چې مرور یې تصور دې لاسوا دي — ورک له انتظاره مې مُرور د ورځو شپو کړې
زه یم چې مضراب مې د ضمیر د زړه په ساز کړ — دښتې د هستۍ مې سندریزې په نغمو کړې

داسې راته ښکاري ګله څه خوشاپه زړه دي　　ته چې خاموشي کې اشارې په موسېدو کړې

ورځې د ښکلا يې ډېرې ډېرې کړې خاونده　　شپې د بېلتانه يې چې نه مابانډې پېږنو کړې

ستا غوړه جبين کې اشنايت دي ګردابونه　　ته پښتني داسې احترام د مېلمنو کړې

يوځ دې لبوتبوت شولو که روغ شري پوهه نه يم

وايه حمزه څرنګه احساس د زولنو کړې

۱۹۲۹ مۍ ۴ پېښور

(۱۰۳۶)

ګرانې[1] دسترګو د اشنا سترګې چرې کړې　　پېچ دزلفو دې راجوړې پيکرې کړې

تپوس مه کوه هيڅ نوې زړې نښته　　انتظار دې زمانو هم زړې کړې

څه محل دې خوله وره سوالونه لوی دي　　سوال دوصل لويې لويې خولې وړې کړې

خار[2] له هغه يوه دېده لاتراوسه　　بيا ترحشره يې زما سترګې مرې کړې

سرول يې په نودو پسې ارمان شو

حمزه وصل د فراق نودې سرې کړې

(۱۰۳۷)

دا په هره ورځ دې زلفې چې مشکې او عنبرې کړې　　بس غرض دې مرګ زما دی پرورش دمنګرې کړې

خاله نه چې په جبين شوې زړه زماله ژونده نور شو　　په دا سينه ورځ جشنه دې مخير مجبرې کړې

په خيال لاس نسېچې دعمر اول، عمر ګټېل دي　　ژوندتر اول دانه دانه کړه، که ربښتيا قلندرې کړې

تعبير به دې ورک نه شي بې دمينې له جوهره　　عاقلمنده که سينه دې، آيينه سکندرې کړې

بلندې دې پسېنې ښايي، بيو د غريه لمن برج يې　　عقله سربه دې تل کوز دې چې له عشقه هسرې کړې

اې سيانکهت دې وانجست بېرشانې دې ورکه نه شوه　　سر تندی وهه چليږه، چې دګل برده درې کړې

چې نهنګ دهمت نه يې، نوم دمينې چې وانخلې　　هسې وچ په وچه ولې، ددې سيند شناورې کړې

دحرم دشمعې سوی به تاګلزار کړې په طواف کې　　حوی که ته دزړه بتګه را يد اسندرې کړې

دخبر غرونو وانغښت، کړو وايې درته خپل غيبې　　*ددرومه که ته چيغې حيدرې کړې

۱۹۳۹ اپرېل ۱٦ ـ مشاعره نوښار.

(۱۰۳۸)

ستا یوې موسکا د الهامونو یوې بلې کړې
زړه کې مې ستا غږ د ارمانونو یوې بلې کړې

جار دې در اتګ نه، د محفل نه تیرې ووتې
ستا یو تبسم خود جامونو یوې بلې کړې

څه ښکلي محبوب یې چې رندان دې هم په طمع کړل
هم دې د واعظ د ایوانونو یوې بلې کړې

ښکلیه د د بدن له کیفیته به دې څه وایم
ستا هر یو انداز مې د خیالونو یوې بلې کړې

عشقه په تیرو کې د خرد یې د اقبال رڼا
تا د انسانانو د قامونو یوې بلې کړې

ستا د مخ شعلې که په عالم کې هر څه وسېځل
داده عجیبه چې یې د زړونو یوې بلې کړې

پوه دې زه حمزه په حقیقت د تفکر کړمه
هم دې د همه ورګ یو انونو یوې بلې کړې

۱۹۷۳ جنوري پېښور

درد ونو مې ستا زړه نه که کعبې ته د یوې راوړې
دې ښکلیو محلونو مې جوړ حجرې ته د یوې راوړې

ښکالو د ارمانونو مې په زړه کې معلومېږي
واچامې دې وبجارې هډېرې ته د یوې راوړې

شاید چې رو ځه وشوه د واعظ او د رندانو
ساقي چې داسې ډېرې ځکدې ته د یوې راوړې

حسرت وهلیو او ښکومې بې واره رڼا وکړه
دې ستا خوله نظر جوړې جرګې ته د یوې راوړې

نن ستا چې نظر خلند ملتفت غونډې ښکاره شو
هم دې مې تېرېدلې حوصلې ته د یوې راوړې

پیدا دستور یو ژبې کړې زما د زړه داغونو
نن مخیه ستا غمونو مې چې شپې ته د یوې راوړې

رلخې پخپله ښکلیه. که راغلې دې یادونه
ناڅاپه غونډې جامې شوګیرې ته د یوې راوړې

شاید چې کله مونږ سره اشنا وو، راپاد یې
موسکامې دې هېرجنې حافظې ته د یوې راوړې

الریان له هغو ستر ګو زما عمر جاودان شه
حمزه چې یې زما د زړه نېرې ته د یوې راوړې

۱۹۷۳ جون ۱۸ پېښور

کـه د کاریـه ا:- ابـه ویـوهېږي
انتهاتـه بـه کامرانـه ورسېږي

دژوند لارکې دې عادت که نوېبدل شي
د صابون غونډې به ورخ په ورخ کمېږي

کـه د زړه دیـوه دې بلـه کړه بـه وینـو
پـه محفـل کـې د عـالم بـه وځلېږي

آینـه د شـعور خان تـه مخـامخ کـړه
بیا به پوه شې چې بوږنېږې که موسېږي

خریدار چې دخودی نه شوې په ژوند کې
اوس خبر شه چې ترمرګه به خرڅېږې

دژوند که خې په بنکته خردمنده
ته به سوري دخپل تن غوندې لوبېږې

دعفت روح دې که راغې په قالب کې
زمانـه دې زړوي، تـه بـه خـوانېږې

بنـایې سـترګوته دغولکه ګـل یـې
نه چې خلې غوندې سترګو کې غړېږې

که پوهېږې بوارمان ته حمزه مخ کړه
دومره دېروتـه بـه څنګـه ورسېږې

۱۹۷۳، جولای ۳ ـ لوړکی

[۱۰۴۱]

دېرخونشه نه یې خونشه غوندې ښکارېږې
جام دنشې یې څه چېه غوندې ښکارېږې

دادې اننګې دې که سرې سترګې قاتلان دې
چاګستاخې کړې چې لمبه غوندې ښکارېږې

سترګې دې زمایه خیر کتوهم تیتې نه کړې
نن خورانه خدایږ ښته غوندې ښکارېږې

دابوالوتـونکې نظـرهم دې غنیمـت دی
نن خودبخوانه داسې بنه غوندې ښکارېږې

کلـه دې جبـین پـوه دنیادتـاتروي
کلـه سـاده نـشه آیینـه غوندې ښکارېږې

نه خوبې سیږمې دخوارلسم خواوښکې څه کړم
زه چې درتـه ګورم پلوشه غوندې ښکارېږې

جارلـه دې پیښـاوه سـرپچن دبېلتانـه یـم
بنه شوه چې نن نکده طرمه غوندې ښکارېږې

وګـورې بـل خواوتـه چـې زه درتـه نظر کـړم
پوهه یې په لوپوکه وره غوندې ښکارېږې

نه راته ښکارېږې ته چې مانه مخامخ یې
کله چې ته نه یې، راسره غوندې ښکارېږې

خیردی زه خوشحال یم، ورځه بله وعده وکړه
پره یم خفه نه یې خوخفه غوندې ښکارېږې

هله به یې رایم چې دې طبع وي خوشحاله
څه خبرې شته خونن خفه غوندې ښکارېږې

راغلـې سـې بلنـې درتـه ګـورم حیرانېـږم
نن خورانه خدایږچې حمزه غوندې ښکارېږې

۱۹۷۸، فروري ۱ ـ پېښور

[۱۰۴۲]

کـه زړه رتـه زمـانوې دامخونـه رالېـږې
لریـان دې لـه کـرم نـه چرامخونـه رالېږې

ارمان مې که رانبکې شې په انځرو کې څه پروا
هـر دم چې دوعـدې شـکلې بامخونه رالېږې

سالې که په محفل کې ماده نه راکوې خیر
هـر دم د مـستو سـترګو ابامخونـه رالېږې

لوس ـنا چې تصور راورې پېره په هرساعت
اشـا د ورې زړه مـې سـرامخونه رالېږې

ای عشـله د حمـزه دې تـول غمونـه وسـپځل
دنیـا تـه د خـاطر مـې فرامخونـه رالېږې

۱۹۶۹، جولای ۱۶ ـ لوړکی

(۱۰۴۳)

نشته غیرت خواوس نوواېه چې په خه شرمېږي — ښکلیه چې مدام هسې په ټله لویه راټله شرمېږي

خدایږوچې خبرشې چې په تاباندې مېن یمه زه — اوس خودرنه زه شرمېږم بیابه رانه ته شرمېږي

نامخابه چې راشې زه مېلمه نه مې کورېه شې اشنا — اوس به خه چاره کېږي چې نه بخیل کاله شرمېږي

گرخې مې پمزره پوه خبېره دمودونه اشنا — تن به یې کوم درته خوگوره چې ونه شرمېږي

چاودي زړونه، زېږې خندنې سترګې چې ماولېدې — خکه نه حمزه اوس په خپل خبرې گرېوانه شرمېږي

۱۹۶۲ فروري ۷ پېښور

وباندې زخمې کړم ستاد ورو خوخنجر داسې — دجرې نه امیدنه وچې به عروج کاحجر داسې

نه دعشق په مدرسه کې راشه اوس متعلم شه — چې دنیاکاندې حیرانه راپیداکړه هنر داسې

یویوسه که دسرو لبورا عطاکاندې زاهده — بیابه وایې لذت کوم دی دتسنیم او کوثر داسې

اصل زه ملکوتې وم عشق دهار زماغذاوه — خبرنه وم چې مه ګیرشم په پنجره دعنصر دلسې

مادزهد او تقوی نه التفات مېو ته نه که — ناصبورو اشارت کړم دچشمانو ساغر داسې

صنم نور هم په زړه سخت کاچې فریادمې موثرشې — خدای زما دې پیداکړی په اثرکې اثر داسې

هیڅ تاثیراو مترنشته بې دستادسرو لبانو — زه په زړه بیه خورلې ستادزلفو اژدر داسې

لشباق دشهادت مې موجزن شې په رګ رګ کې — جادوچرنه دې رده کړی دمژګانو نشتر داسې

دانش عقل او صبرفکر. به بودم زماتالاشو — پرغل وکړویه مابانديې دمژګانو لښکر داسې

چه قراریې بې قرارشې ثناد حمزه داده — اضطراب یې اضطرارشې بارله بیایې مضطر داسې

(۱۰۴۵)

چې دنیا کاندې حیرانه راپیدا کړه هنر داسې

دا طرح د رېډیو کارپردازانو ایښې وه، په دې طرح زما رومبی نظم براډکاسټ شوی ؤ

لکه زه دې غم جوړې کړم ویه یې نه کړي اګر دلسې — رقیب داسې یم وطن چې څوک نه وهې خر داسې

له ابلیس نه هم سوا دې بوږاګان په شیطانې کې — خریه هم څوک مست نه کاندې لکه دوی په جرجر دلسې

په مسواک اوپه سګرېټ کې په عصا او لنل سټک کې — فرق به تاونه ظاهر شې د ملا او مستر داسې

په ظاهر چې شیخ صورت وي په باطن ابلیس سیرت وي — دوېرګې ختې وانیسه دلرم دې منتر داسې

پیره سرېې که لوږه کړه کورد سهیډ ریجولوی شو — چې څوک صافه چارابرو که، دی بکار قلندر داسې

دچکلې دبوږاګانو بو علاج دی که پرهېږې — چې دتل یې دوبار نه وي، ښخوه یې ژور داسې

په ظاهر فېشن پرښتنو د خانانو غلط مه شه — په چېتر یې سرګنجې کړې نکوې یې تبر داسې
په وس کې دلېنچې مې دردلیمپ، سګرېټ وي اېښې — یې پېسو نکو کرم خلکو سېنما او تهېټر داسې
د خلق په بېچوان کې د نایکې په پلندان کې — خان سوځته واره جایداد کړ د نیکه اوید رداسې
اوس کثرت د ډاکټرانو حال زبون که د خوارانو — چې زخمي یې روغ صورت شي.لګوي پلستر داسې

که هر څو نکتې بیان کړي څو حمزه جاهل پښتون یې
چې دنیا ګاندې حیرانه راپیدا کړه هنر داسې

وردلیمپ ولیچې دوره وقسه سګرېټ وو

قبلول کړه چې قابل نه ورسي — عمل پرېږده چې عامل نه ورسي
قرار چرته وي د څاڅکي بې له بحره — شته سکون.خو چې کامل نه ورسي
لوی درياب د عمل لوېه کامیابي ده — په دېر پس ته به ساحل نه ورسي
دوه نفسه دوه قدمه کړه تېرې نېرشه — چې د دوو کونو حاصل نه ورسي
د پردې پورته کول حوصله غواړي — څه شي قبه، که محمل نه ورسي
غزوني به همت درنه جدا کړي — بویه هلته چې منزل نه ورسي

شهادت دې کړي په مخ کې غزوني
حمزه کله به قاتل نه ورسي

(۱۰۴۷)

چې ذات نه وي څه که نوم ته ورسي — د خلوت خنې هجوم نه ورسي
سېرلی تېرشي نه طلب د رنګ او بوی کړي — علم پرېږده چې معلوم نه ورسي
څو چې ورې شوی نه وي ژړا نه کا — دریغه عقله چې ماشوم نه ورسي
عاشقي وفاداري لازم ملزوم دي — نه لازم شه چې ملزوم نه ورسي
رسېدل د مخدوم درته کمال نه دی — بویه دا زړه د مخدوم ته ورسي
واره فهم نافهمي ده به دې لاز کې — فهم پرېږده چې مفهوم ورسي

د حکمت مرغه چمن د حمزه به دی
خدای دې نه کړي چې څس بوم ته ورسي

(۱۰۴۸)

چې د علـم گـرنګین تـه ورسـي      ای پښتونه! خیر که چین ته ورسي
د ګلرخوسترګي راز دي پیـدا شـوي      شه حرام که تور او سپین ته ورسي
پاخـه پاخـه کـره قـلا دي د زړه ورانـه      چې د زړه قلانـشین تـه ورسـي
دهـستي لـه ونې ای د ژونـد لونګـه      بیل شه بیل چې لونګین ته ورسي
توره خاله که غلام یې خو بادشاه شي      چې زمـا د یـار جبین تـه ورسـي
ای زرګـیه کـانې بـه یې د یـار نـوم تـه      صفا مه شي چې نګین ته ورسي
د نـوبې روژې لـه ښـکلیو حمـزه وایـي      خدای خبر که ماښېن ته ورسي

(۱۰۴۹)

بویه چې هردم نوي مضمون سره اشناشي      ته په حقیقت به دژوندون سره اشناشي
موسکه شوه غوټۍ له بوه رازه یې خبر کړم      ګل به شي که ته دزړه چاودون سره اشناشي
ته به شي خبر په کوتاهي دخپلې پوهې      چرته که په عمر دمجنون سره اشناشي
بې له بوه عشقه چې دي پوه په ناپوهي کې      خدای مه کړه چې ته دافلاطون سره اشناشي
سر به دفلک لـه انفعالـه در تـه ټیـټ شي      خورندې که سر کړې دزنګون سره اشناشي
زور د ستومانې بـه در عطـا توانـایي کـا      ای دمزل ستړیه که دیون سره اشناشي
ښه به دمکـان او دزمـان په راز خبرشي      ته کـه نـن سبا او دبرون سـره اشناشي
زه بـه در تـه راز دوصـال وښـایم مینـه      هله راته راشه چې بیلتون سره اشناشي
زره به دي حمزه هله دعرش حکم پیدا کا      ته که په رښتیا دزړه ساتون سره اشناشي

۱۹۷۱ م روسي دسمبر لوړ ګی.

اېینې ته په سحر کې چې سینګار شي      دجوهر د خودبینی د غـاري هـار شي
درېغه ماکه د رقیب د سترګو ستن کړي      ښکلیه یار، که زمـا د نظـر تـار شي
مرکه خوي وته چې شي موږې د ظلم      خه که لاړ کړې بکې جوړه چې حصار شي
د اشنا عهـد وپیمانـه مـا بـه مـر کـړي      په داخه شي که مې ژوند د انتظار شي
د حمزه غوندې په کـار د يې کـاري شـه      چې د کـار د وبېره زوره نـه وزګـار شـي

[۱۰۵۱]

بویـه بریـه چې بـه بیـا راسره یـار شي — ای ثمر مخبیه چې په مابه تللی وار شي
بې نیـاز بې خـو زمـا پـه زړه کې اوسي — طفل نه یې چې زانګو کې په قرار شي
دا زمـا د عـشق جـوهر بـه فنـا نـه کـړي — تب به توره د اجل کې که ګوزار شي
د وصـال دي قـافلې چې عقلـه دروسي — که په لاس کې د شاروان د عشق مهار شي
لـه حمـزه سـره یـاري د غـرض پر بـره ده — هله یار بې چې د یار د پاره یار شي

دخپل زړه له ویره مې شه هر ساعت چې دروسي خورشي — بو سیلاب دنن دخورېږي کله ورک شي کله جوړشي
دخوانی دلېره له خوکې چې کوم ځای ګوزي سزدي دي — لرې وخې چې ورد روسي لا به لرې وي چې زوړ شي
کوروه د هجران بـه ده چې اوب د وصال زده کړي — یار ته بو بې خبردار شه په خوبونو که کرور شي
لاروسي قدم دې هم سم به دي لاره اېښی شه دی — واخو عشق دی صبروکړه وېریه نوډشي وېریه سور شي
که ظاهر به طبع رنځ بې به باطن په خوښی حور شه — مانبده در له معراج دی ته که مغز داکور شي
ر هغو ته لوبې مه کړه چې د زړونو خاوندان دي — حمزه واوره ګنې ته به د قضا په توره وور شي

[۱۰۵۲]

زه دي مبلمـه شـم، نه کورینـه شـي — چې بـو ناڅاپـه رامېلمنـه شـي
سـتا د خـوږو نـه خـو تراخـه بـه وي — لاچې ترخـه شـي دېـره خـوږه شـي
نـوره د زلفـو سـودا دي نـه کـړم — بیـرزو مـې نـه ده چې شـو ګېره شـي
پـه سـادګی کـې خـو مره پخـه شـي — بـه تـش کتـو مـې کچـه کچـه شـي
چې زه درخمـه تـه رانـه تـښتې — خـو چې راخمـه تـه راسـره شـي
د بـکلیو خـوی هـم څـه عجیبـه وي — دادې خوښـي وي چې تـه خفـه شـي
بـه ده جـبـا دي د هنـد کـسي نـه ده — چې درتـه خبرشـم تـه بـښنه شـي
د برخـه مـې زده کـړل خـو لامـې یـم — زده کـره خـو داده چې تـه مـې زده شـي
تـه کلـه کلـه خـو یـادوه مـې — کـنـې نوتـه بـه هـبـره قـصـه شـي
خـومره چې بـد ګـوري وما حمـزه تـه — دا مـې بـاور دی هـومره بـه بـه شـي

۱۹۲۸/نومبر/۳

(۱۰۵۴)

نه که سه پښتون شوي نو انسان به شي — بیا که به انسان شوي مسلمان به شي
خه به آینه زړو نو کې خه ګوري — خان به پکې ووینې حیران به شي
ګوره په اسانه پخلا که یې مه — داسې په ماګرانه به ماګران به شي
یون کړه ارمانه دالفت په لار — څوک نه تنها بې څوکاروان به شي
هد په تصور کې دیار مه کړه نه — تیر چې ترحد شي دخپل خان به شي
پوهه که دزړونه په نیمګړتیا شولي — داسې به هونیار شي چې حیران به شي
چرته دجانبجې خوي ید اګره نه — بیا ابله خاوند دګریبان به شي
نمرته دعرفان که مخامخ شولي — سوري دمیدان هې ګرهزان به شي
وحت هسې تېرېږي خو تېرېږه مه — پوهه به دي سرکه شوي دوارن به شي
کلک دي لره زغم نه که څوخوږي ضرب — لاېري لوي کلک لکه سندان به شي

ولوله نیزاله د حمزه غزل
دازره صهباچې وڅښې خوان به شي

(۱۰۵۵)

حسنه چې هر څیز کې هویدانه شي — بیاخو یه ای شوخه دهرچانه شي
عشقه ده اخفادي دخامي دلیل — خدای پو که کامل شي چې افشانه شي
بیانه وي درمل دزړه چاودون ګله — باغ نه دهسې چې به خندانه شي
څوله مرګ اوږونده چې بالانه یې — پوه به به انداز دمسیحانه شي
جوربه نه شي ای داشنالوظه نه — مات چې شي او څوخله بیابیانه شي
ماته به به اشنایي.نااشنا اوسه — جاردتغافل نه دي اشنانه شي
پوه دي به لذت د-سبا"زه کړمه — لوظه داشناچري -بیګا"نه شي
ای دوصل خوبه زه ناتوان یمه — خوب وسه هم داسې چې رښتیانه شي

هو مره به زه سنا په تصور یمه
ماغونډي ترڅوچې نه حمزه نه شي

۱۹۶۳ اپریل ۱۳ پېښور

(۱۰۵۲)

په غزېدو په حور پېښو رانه شي — داشنا یاده په شبورانه شي

بـېـي دي الفت ته زولنې دادب — داسې چې بیا په موسېدو رانه شي

ستا دوعدو سره مې ژوند ترلی — درېغه اشنا چې په وعدو رانه شي

حق به پوره د میخوارۍ شي هله — نه چې وایس په تیند کورانه شي

عقله میدان دي دېرغل کړه جهان — پام چې په زلفو لېونورانه شي

تېر له مقامه یم د ناز او نیاز — ګوره هوسې په امزرو رانه شي

اوس به نو ننـدر شي دیار نظره — نور مې په اوښکو پښتنورانه شي

څه که راځي داشنا یاده چې ته — په هغو تېرو ورځو شپورانه شي

لکه نسیم چې هر نفس نه وي ستا
حمزه، ګلشن ته د پښتورانه شي

(۱۰۵۷)

ګوره یې که هغو برندو ستر ګونه کتلی شي — داخو اوره غمونه بیا دچانه پورولی شي

مینه کې مبنه بخښور لکه دلفظ بې ته — هومره او چتېږي خومره ده ېرچې غورځولی شي

زه به دریاد ورمه هرخو که هېروي مې ته — زه دې یادولی شم که نه مې هېرولی شي

هسې خو یرده سناله خامیو یورته کېږي نه — هومره به پخېږي خومره ده ېرچې ازمايلی شي

ښکلیه به بنوغشو کې ټنې ستنې هم لرې — زړونه که وېشتلی شي زخمونه هم ګنډلی شي

حق به یې پوره کړې که دې ستر ګې شي دښت به خبر — داانتظار نه دی که دې ستر ګې خمولی شي

ورشه داستم که داشناوي ستم لابه دی — نه که یې محفل ته د رقیب به خوله بللی شي

لاخو ابتدا د محبت ده هنګامه نشته — ای زما خاموشه د زړه کوره زر به کلی شي

روغه که چیږې د ملتانه د رسره نه کوي — شور غوندې د سینه نه د حالاتو خوځولی شي

بیا به یې حمزه هره ادا د وصل کیف لرې — نه هره ماشونکې که دېسکلې بار زغملی شي

رخو حمزه د مختصرې ویناکېږي تل — نه ویل که د ېرنه وي نو هم بنایې چې علی شي

۱۹۷۳، اپریل ۲۰، پېښور

(۱۰۵۸)

ژوند مې ووې زړه ته چې به تېر له ستومانئ شي
زړه وې ژونده تنګ به ته ز ... رواني شي

هېڅ به لکه شمع له زړښته خبر نه شي
تاو د محبت نه که روښانه به ځواني شي

تل به دې لباس دشخصیت وي نوی نوی
خوېږ لکه تصویر چې به جامه د عریاني شي

خو چې به تراش خراش د زړه آیینه نه شي
څرنګه به پوهه به رموز د حیراني شي

خو به شي ارمان به دې د دوېه صحرا وخې
وران به په مثال د برسوکي به وداني شي

ګران که رانه ژوند دی، یمه خوش بې به سنده
ای د حسن ترخه خو چې نه په ارزاني شي

ښاز دی که نیاز ورته زما ،وار ه عبث دی
ته چې د حمزه په مسکینۍ ،نه په خانئ شي

(۱۰۵۹)

خبرنه وم نارسایي، عقله ستا په ابتدا کې
مینه نه وه مطمینه به مفهوم دانتها کې

اتصال د خپل وجود نه په هېڅ ډول ممکن نه دی
دا هم زه ګڼم چې ورک به م دي مخبوبه تبکلا کې

محبت شه و، اجزاء د خپل وجود راغونډول وو
ستا د وصل ارمانونه جوړ تعمیروېه خلاکې

ستا د اجوش دځان بېودني ما پیدا کله فنا کا
د دریابه قصوسرو ې حبابونه به دریاکې

خاموشي دې خبرلوځه، شوه زما له خاموشیو
ګنې هسې خونوا شته نه په ناکې نه په ماکې

د شعورنه تسلسل چې، د کاروان دهستي وځي
بیا نو ګرنګ د عمل نشته د وختونو په دې راه کې

انحصار خو ستا په خوی دی، خوی د ستا د مخ او زلفو
په رڼاکې تیاره شته دی هم تیارې شته په رڼاکې

ژلاني ثبوت دمینې دانعري مې دې واعظه
ژوندې نصیب شي چې آهنګ وې په صداکې

تا پرون هم وو ویلي او س په هم دا وایې
چې درخه پرون پر بېوده، بم به تن اوبه نیاکې

کړو ړه بې د زحمت وه، ما حمزه لره رحمت شوه
زه به دې نکه پوه نه وم چې عطا شته په خطاکې

حمزه ګل غوندې نوامي دجیبانه عبارت ده
۱۰ ازه یې په ګبندي شي د بلبلو په نواکې

۱۹۶۳ فروري ۲۰ ـ لوړګی.

دوا خه چې مرض دې په دوا کې
په شفا خه چې شفا نه وي شفا کې

ژېړ او سور رنګ د عاشق لکه مېنه وي
چې یې بهار ساتي به خوف او په رجا کې

سوز د سوز له وېرې داسې غایب شوی
چې مسکن یې ساتي نه دی په زړا کې

د مجنون اوسکي چي خلاصي شوي بدن کي
غیریـت لاړو لیلـی شـوه لیلـی کـي

چې رنـدان د زمـاني ورتـه مـشتاق وي
رعونت دی څکـه داسـي پـه مینـا کـي

د شـراو د الـــست پکـــي لـــذت دی
ای حمـزه ســتا د سـحر پـه واویـلا کـي

(۱۰۷۱)

وادنیا هم ستا ده، اشارت کوم په خوب کي
ویس مه یم وده یم اضافت کوم په خوب کي

دی د ملتفتو مستو ستر گو تصور یـي
څوک مي چي راویښ مه کړي الوت کوم په خوب کي

وا د پریشانی او د کـثـرت خبري وار ه
بس خو ستا د زلفو حکایت کوم په خوب کي

نشـه لـه عکسـونو ایینـه د وجـود گـورم
اصل خو بس زه ... پـه حیرت کوم په خوب کي

بیکاري راته داسي چي هم دا یم هم هغه یم
سوال ورته مي حوره د وصلت کوم په خوب کي

بـه شوه په بوز رنگ حو به ارمان زما پوره شي
ناته چي هم ستا مه شکایت کوم په خوب کي

زه حمزه چي چرته اشنا ستا په کوڅه درشم
وایم چي سیلونه د جنت کوم په خوب کي

۱۹۷۵ اپریل ۱۳_لوارگی

(۱۰۷۲)

نشـه شک بنـي آدمـه سـتا په عزو شرافت کي
شرافت دي هله بریه چي طاعت کړي په کلفت کي

په جهان کي به مخدوم شي که خپل خان دي چري ولید
چي خپل خان نه وینی سترگي همیشه وي په خدمت کي

عزازیله کـه وي پوهه ... اریه دي آدم وی
تکبرکه دي خودي وی، وي مدام به په راحت کي

معرفت زده کړه غافله دکثرت لـه هره نوعه
معرفت او معروف بودي فرق بي نشـه په وحدت کي

بقـابي دفنا ... نشـه بهانـه د معشوقوده
شـه خوعقل نري مه اخلي چي بسپانه شي الفت کي

تـبجه د ریاضت وه چي مي صافه جاړابرو کره
عنصر چرته نپیره چرته ای واعظه په جـنت کي

لـه صـدفه د ســخن دي گـهریاســي داشـعارو
حمـزه تـل بـه بي داهسي په کلفت درلادت کي

(۱۰۷۳)

بس خو وه ترمینځه واسطه په کوه طور کي
وگني څه فرق وچي کرم څیزوپه منصورکي

ودربیره واعظه پیوه مسته پیالـه شـومم
زربه شي قبوله چي توبه کرم په سرور کي

نن یي به تول عمر کړي اشـنانه سترگي پورته
پاتي چي طاقت د جواب نه وي په رنځورکي

بـه ده مبارک دي ابتداشه چي خوشحال یي
زه هم پاتي شوی یم د بـکلیو په حضور کي

زره نه د حمزه په نهـبـتـه دروسي دیار خیالـه
چادرته ویل چي څه مبشته شه په تنور کي

۱۹۵۱ جون ۱۵_لوارگی

(۱۰۲۴)

مخ چې را ... و نه کړي مسته دومه په انکار کې — س دې پیدا قهر قیامت کړو په رفتار کې
اوس هم د بېنو ستنې برهمر نه د زړه زاوره — راعله خار خانې مې د کړېوان په هر یو تار کې
ستا په تصور جهان نه ستا سودا له راعلم — حیف دی چې د بوه شوه رانه پاتې په بازار کې
رانه شمع رویه په جیب مې غلط مه شه — ...را ... ر د لب مست دی په مزار کې
ولې زعفراني حالونه ودې ګیسو د زاره — شنه دی شې دې په کشمیر په هندوبار کې
نه ګورم ساحل نه سم د عشق د سیند سره خه — فرق مې خکه شته په قیام او په رفتار کې
داو کم همته که وه لاړه نرې غلطه — راستانه شوې پلوسه یاره ستا په لار کې
خو مره به حسرت وې اشناعله مې مېده کړې — خار چې رانه ورک شو یاره ستا په انتظار کې
سترګې دې راواروه که جاه درخنې پرېوت — سکلیه ولې وار دې شو حظ زما په وار کې
زه له زه نه خبرنه وم آیینه دې هسې راکړه — عشقه رانه فرق وکړه په یار او په اغیار کې
اوس دې فرهادې جذبه حمزه جوړ یاني نه ده — خه شوې چې بخوادې شیرني ستا په ګفتار کې

(۱۰۲۵)

شک مې چې ونه کړي لاړو په په ګفتار کې — خیر به مې کړي نخښې د قدم په هره لار کې
جوړه آیینه شوه د خلاز ماله ذهنه — اوس به د نویسو پرنوږنوا انتظار کې
د به شې به دې چې نه مجبور که مخیریې — پربرده هغه هم جې لا دې شته په اختیار کې
ده شم راسغ به بې نظر د انتخاب نه — زه که ود ربه دی شوم د سپرو په کنار کې
وصل او فراق دواړه مې غذاد محبت شول — تل چې نه وې بسکلیه په اقرار نه په انکار کې
اوس نو خه صلاح دې ده زړګیه رانه وایه — ګنه دې ونه کړه ... م او په فرار کې
پورته پیمانه کړه د زړه داغ بله دیوه کړه — خوند کړي ماینامې د پسرلي په لاله زار کې
واخله په هر خل مې نوی ګل د طبیعت نه — تول زاړه ګلونه خې راخې په نوبهار کې
زه حمزه خبرنه وم چې ما یې انتظار که — حیله منتظر هم و زما په انتظار کې

(۱۰۲۶)

چې ګفتار یې خرګند نه شو په کردار کې — لایې طمع د کردار کړم په ګفتار کې
ستا خندامې د زړه ولې تازه نه کړي — دوج د کې برخه نه وي په بهار کې
ستا په کیف د لبو نتوب سبرشوی نه یم — اشنا او سه اوس زما په انتظار کې

دحکیم کارونـه بـې حکمتـه نـه وي　　　　شته څه قدر مشترک په ګل او خار کې
ژوندی پا یم او نه مرمه. څه مقام دی　　　　چې اشنادې په اقرار نه په انکار کې
دوارو وحو خاوه سراو بیایې تیت کړو　　　　سره مخ چې کله مونږه شو په لاړ کې
ساقي داز ما قسمت که څه سازش دی　　　　شي دې تش سراحي زما به وار کې
ګوره ګډې چې په میواو به نه کړې　　　　د تو هین زغمون مې نشته په خمار کې
عشقه و مې کړه تنظیم دار مانو نو　　　　خوبه وې دا پښتانه به انتشار کې
په ده هسې کار چې خان بې کاره نه کړې　　　　چې بل کار دې را پیدا شي په بو کار کې

حمزه او ښکو مرغلرو مې تار جوړ کړو
هم پیرلې مرغلرې دې به تار کې

**(۱۰۲۷)**

ګل دې نن د جا دیاره اینبی دی په سر کې　　　　کوم بو بختور ته اشاره ده په هر کې
نوت و که ګور ګورې چې تور داغ دې شو په لیو　　　　ولې دې حبش لره خای ورکړو په کوثر کې
وخت د پسرلي دی تماشه د خیل سینګار کړه　　　　جوړې آیینې شولې په ګل د پیغمبر کې
قدر به مې هغه کړې چې حال مې ور معلوم وي　　　　زه یم کیمیا بوټی شګفته په رهګذر کې
غم د خپل شکست یم اوریده زما فنا ده　　　　بیا هم د کثرت د بقا خوب کړم په هر سر کې
رنګ بېنوا راکړو زه رنګین او بې نوا شوم　　　　ګل یم د بقا د هر بلبل په شور و شر کې
بیرا مې نن دې سترګې په نکهت صبا الرلې　　　　راشي قاصدان دې چې لاړه یم په بستر کې

پېر د سحر کیف وي حمزه بل بې وي د خوب
خکه پاڅېدو ته نشي زړه په لوی سحر کې

**(۱۰۲۸)**

بند واسو هلو مې لمبې د کړې به نفس کې　　　　مخ دې پټ کړه ګله ضبط مې نشته دی به وس کې
دغم شي ده رچې خوک صفت کړې د ګلرخو　　　　عمر د بلبل. خوش الحاني کړي به قفس کې
ستاد تعلق رشتې ته بند کاروان د عیش دی　　　　شته مفطرې چیغې مې د خوږ زړه به جرس کې
ماجې دانسان له نفسه خو کړې بردې بوږ ته　　　　بو هه شوم چې پټ دي بو هوس به بل هوس کې
لاړل مسافر داشنا ملک ته حمزه د رومې　　　　تکنده غرمه دې شوه دژوند په پیش ریس کې

(۱۰٦٩)

ستاله بې نیازۍ نه ښیښي شوې زما اوښکې
راغلې خوله سترګو نه ستني شوې زما اوښکې

سترګې مې نروې نروې ږیږي لذت یې اخلي
تاو د محبت نه څه خوږې شوې زما اوښکې

ښې شي کچه شي. اشنا ستا په راکتلو
ستا د دوه لیمو غوندې پخې شوې زما اوښکې

پام چې په خوانۍ دې چرته نه شي تندرونه
ښکلیه نه خبر، که دریسې شوې زما اوښکې

ستاله نفاقه خان په ځان شوې نه غوندېږي
اوس د مرکې نه د جرګې شوې زما اوښکې

ستاله دې رانګه مخرونې د ماښام وشو
راغلې زما سترګو نه. د بوې شوې زما اوښکې

جوړ په خندېدو مې دې د عمر هسد مانې
وارد ویښو راغلې چې نن سرې شوې زما اوښکې

ستاله لیونې غرور نه ځنګه تاو راتاو شوې
جار یې له ښیې چې زولنې شوې زما اوښکې

ښکلی یې حمزه که په محفل کې سپ پردې کړو
نه دې دا قیامت چې بې پردې شوې زما اوښکې

۱۹۷۰، جولای ۷ ـ اوترګی

چې لرې مې په ګرېوان کې بهیر اوښکې
دوحشت دکښت خروب نه دې خیر اوښکې

تا ود مینې مې ګوګردونې پوخ کړ
دې خط کش لره دوصل اکسیر اوښکې

دنادم لیمه په لاس تسبې د دُر دې
پیچ وخم د زړه له موجه زنځیر اوښکې

جوړ په زړه به دې خبر د رنا راشي
چې مخبر مې دنظر کړې اسیر اوښکې

دشپېلۍ له خښکه وده به والف یم
دا راوخې مې دچاپه نفیر اوښکې

ستا دمغ دخرور زلفو تصور دی
زه اوده یم خوکوې مې شوګیر اوښکې

چې په خوب کې دې ګوهر پیم په زلفو
شه په خوله دسحرراکړې تعبیر اوښکې

دغضب اور به یې سور شي وحمزه ته
که یې وګورې منکر اونکیر اوښکې

(۱۰۷۱)

نازونه دې خواس مومې دزړونو په هدف کې
ویشتلې زړونه ودریږې ابله دزړونو صف کې

تکمیل دمحبت خویه دې کیږې چې رسوا شي
ناقص لاعقه دُروې چې شي پاتې به صدف کې

جذبه دمینې وایې هرطرف د یار طرف دی
هوس دمینې وایې شته ضرب به هرطرف کې

تسکین د زړه په کاردی که په ورد که وظیفه وي
لاجاته له قسمته شي حصل به چنګ ودف کې

روضې دبې نوا، لره ورځه چې ورکوې یې
حمزه‌معه سکون چې به مسکن وبه نجف کې

روما د شیخ (رح) الف.

(۱۰۷۲)

تصور د یار مې نشته نن د خوږ زړه په وطن کې  که تیاره ده شمع نشته د حسرت په انجمن کې
د ښکلي یار کې لا د عشق مرض تباه کړم  مالي ژېړ زېبنلي ګرځي که ډېره دي په ګلشن کې
اشارې دې غریب نه که څه ور کړم ځای یې کوم دی  که جېبونه مې هزار دي په شلېدلي پېرهن کې
که هر څو مثلون یم هر وصف مې دی له نوږه  په ګردش کې که فلک دی لرې سوري په لمن کې
راملې که پس له مرګه ښکلي یار زما بدن ته  ای همدمه بخښي بويه لستوري په کفن کې
چې فنا یې هم بقا ده زه آدم نه یم خیال یم  هر کشش مې د یار ژوري نوی روح زما په تن کې
هر سحر ملک د شعر کړي حمزه ته الهامونه  کیف پکې ملکوتي دي ناسوتي سوز په سخن کې

(۱۰۷۳)

د ګلي په تنګي زړه کې د ګلو سو په دهان کې  د فطرت چې کوم پیغام دی ځای یې نشته ګلستان کې
نوي سوي نظر یې دی نوي سوي ایجادونه  چې قدرت سانلي بت دي څه خوښه دی په داماان کې
څه خوښه دی چې ورو ورو یې طلبت را خرګندېږي  څه خوښه دلبدونوان یې چې اوس نشته په انسان کې
رنګینې دې زړه وانیکونکې نوره زلیکونکې د هغو دی  نه زما په امتحان کې زه د تا په امتحان کې
تصور کې کمال څه دی؟ د احساس پخنګي کومه؟  ستا عطا په ناصل کې زما بوهه په نقصان کې
نه نیاز لمواري زمانه نن یې لمواري اوس یې لمواري  زه د ښن د ننګ په غم کې نه د خان په آن وشان کې
نه ورېغ د نهر نګیږو زه مجبور په تماشا یم  نه را اوري ماته وایي ولي لوند شوي په باران کې
کشمکش د جدایي مې لا په تخت کې د شعور شته  چې مې خوبه نول عمرې د هجله ځیره په ګرېوان کې
زما نیاز او ستا د ناز په اتحاد څنګه پیدا شي  زه په څمکه در ته رغرم ستا معراج دی په اسمان کې
ستا پرتو که پاتې نه شو د زړګي په آینه کې  دا حیرت وایه د څه دی چې دي پاتې په خبر لن کې
ما حمزه ته د ول د ول چې جلوې کوې دا ولې  بس خوبانې هغه رنګ دي چې پرون یې وچشمان کې

(۱۰۷۴)

هغه خان به کله خان شي په جهان کې  خو چې خان د جهان ځای نه کړي په ځان کې
که له انسه څه جوهر و به انسان کې  آیینې غوندې ساده شو به نسبان کې
د سپرلي له بې بسۍ نه به څه وایم  د بلبل سندرې اورم په خزان کې
د سپرلي غاروته وایي په واز کړمې  لا یې دي مقصد ونه په انسان کې
د تخلیق د پیروزیتي ستم ګوره  په ملک اوړه انسان اوړه حیران کې
شوم سپېڅلی په دنیا کې تر دي حده  چې مې لوبه د ژوندون شوه په ډېران کې

(۱۱۵۵)

وي که د وختونو څه چې اوبه اوبه شوي — ستا د هر قدم لاندې لمحې اوبه اوبه شوي
جار له خپلواوښکو چې موسکا يې کړه ستا وېښه — اوس اېله اوبه شوي چې لبمې اوبه اوبه شوي
څه شوي سيوري مې مخبه د سپرلي لمده فضا ده — ستا دمع ديدن ته زمانې اوبه اوبه شوي
ره د چا لمبون به يې جهنه لاړو سر کړم — خکه مې قدم ته فاصلې اوبه اوبه شوي
تپر مې چې شو ناو د محبت تر لپونتوبه — خار دي له وحشت چې زولنې اوبه اوبه شوي
تېز نظر مې هله سره بار خو حولې خولې کړل — وګوري چې تکندي غرمې اوبه اوبه شوي
ستا د کوثري لبو پوه د ناز خبره — نشئه وريسې که د پري خولې اوبه اوبه شوي
ولې دي راپس کړي پښتنې چې تابللې — کنګل دتا زړه دی خوجرګې اوبه اوبه شوي

خدای زده چې سپرلي مې څه حمار ته همزه ووې
هيڅ تري خبر نه شوم خو توبې اوبه اوبه شوي

(۱۱۵۶)

ستادنظر هغه شيبې څه شوې؟ — زمادسترګو پې وسې څه شوې؟
داسر کوزي پښتونه عشقه ولې؟ — ستادزلموهغه پګړې څه شوې؟
دزړګي بڼ ته مې سپرلی راوله — رادرومه ترندې هوسې څه شوې؟
نن دنمابنام د پېوي ته نه ښکاري — ستاهغه اوښکې غرمنې څه شوې؟

نن يې لبمې کوي زلمې ستونه
همزه راپېښې زربودې څه شوې؟

۱۹۵۶، متوری ۱۸ـ لوارګی.

(۱۱۵۷)

دپسرلي بې خوده شپې څه شوې؟ — هغه ساقي هغه جلسې څه شوې؟
په هرطرف بې نوايي ښکاري — ګلونوستاسو قهقهې څه شوې؟
سباتندی په مزکه ولې وهې — دنکهتونو قافلې څه شوې؟
لاله د سوي زړه قيصې ته شوخير — مينوهلـه کړی دېوې څه شوې؟

دفخر[1] علم تذکره چې وکا ··· څه مې شوي اوښکې ښښتې څه شوي؟
چې اشارې به پکې ژوندکولې ··· هغه لبمې هغه چینې څه شوي؟
د بوږنبدلیو نظرونو سره ··· ستاد نظر معانقې څه شوي؟
ای په پښتواو پښتنو مینه ··· ستاد ډېرې مشاعرې څه شوي؟
کالیزه راغله درحمان بابا ··· پروسږنی ورځې خوږې څه شوي؟
راځه چې ورشوچې سپرلې راشي ··· ستاد حمزه سره وعدې څه شوي؟

(۱) زما شیخ حضرت سیدمحمدشوقه

(۱۱۵۸)

اوښکې مې راغلې خو څه ستنې شوي ··· جوړ څه هندکې شوي څه ښښتې شوي
تپوس له چاکرم، بیداره عشقه ··· هم ته رهبر شه، لارې اوږدې شوي
د زلفو خوږې و، ترخو سره سم و ··· چې به دې بېن کې، لارې کږې شوي
ستاغوندې ښکلې به ستا ښېرې شي ··· که دعاګانې مې درپسې شوي
اوس دې د زلفو خبرې نه کړي ··· جوړ مرورې، له مانه شپې شوي
تاچې دې کړي ترخې خبرې ··· چې وخت تېرېږي هومره خوږې شوي
چې تنواتې لبوله نه شوه ··· اوس څه جرګې شوي، څه مرکې شوي
چې کچه نه شوې په خبر کتومې ··· ښکارې چې اوس دې سترګې پخې شوي
حمزه عجب ده چې ترجمانې ··· د سنګدلانو زړسې پستې شوي

۱۹۷۰، دسمبر ۲۳ _ لوئر ګی

(۱۱۵۹)

باده ده چې را لورې که حجرې دې میخانې شوي ··· میخانې شوې بې دریغه فضا ګانې ښښتې شوي
شاید په میخانه کې د ماښام بلې دبوې شوي ··· راځې چې خو ملګرو د اسمان لمې سرې شوي
زا ه دا چې سره دې د تومو به مخکې ننشه ··· که یوځه یې ښېرې دې د شرابو، درپسې شوي
ګرېوانه رب دې مل شه رنګ په رنګ ګلونه راغله ··· نکهت کوې لمسون د وچشونو سلسلې شوي
د نمر په پلوشو د ګل د مخ نه پرخه تښتې ··· پیدا په تود نظر مې د اشنا په مخ خولې شوي
چې ښکلې نن سبا په آینو کړې هېنه ډېره ··· موسکې مې ارمانونه دې روښانه شوګېرې شوي

سلګی وي بې ترتیبه خو چې سنا په تصور وي — پیدابکې یو هسې رنګ ښکلا شوه چې نغمې شوې
رندانونه ورځې په بسرلي کې خدای دې خیر کړي — شاید په یخ موسم کې د واعظ وینې نودې شوې
شک نشته مخ به ورانه دې به منزل موږ ې نګه — ښکاره چې درنه چرته د وختونو ادیرې شوې
دا مره ګلونه بیا چې به بسرلي کې را ژوندې شول — په بیرته د حمزه د حسرتونو شونډې شنې شوې

۱۹۶۲ مارچ ۲۲ لوارګی

یوه ذ دهر یه چل ول شوې بـه چې شوې — په ساده ساده کې غل شوې بـه چې شوې
کـه بدلـه دې دنیـا زمـا کړه خیـر دی — خو چې نه هسې بدل شوې بـه چې شوې
چې د هر د هر دې نزاکت ناز او انداز کړي — اوس میرځن په خوی شدل شوې بـه چې شوې
بـه مفهـوم د عـشق اهلـه وبو هېد مـه — فهمه وورک لکه خلل شوې بـه چې شوې
وورک لـوګي د اسـو هلو شـو لو غرنـو — ای د مینې اوره بـل شوې بـه چې شوې
راتـه ښکاري دروغجن په وعده نه يې — په ګیله مې چې خجل شوې بـه چې شوې
د رقیـب بـې نـوایي مـې بـه زړه داغ وه — پـاره تـه وورسـره مـل شوې بـه چې شوې
د حـمـزه دزړه سـپنده بـه مجمـر کـې — د هجران چې هسې بل شوې بـه چې شوې

(۱۱۲۱)

نه له کومه خایه چې همنه پرهوتي شوې — دلسې معلومېږې نرې په بره هم ختنی شوې
سترو هو کـه لیـدلی شوې زمـا دزړه داغونـه — بیا خو به د نمر سره یې هم سترګې نیوی شوې
ولـې سـرپټوب دې دانـنا بـه التفات ځـې — ای زمـا نظره صبر ناکه ولـې سـبې شـوې
زه دې اوس د فکـر دایـره هـم دې محـوریم — لاړ دې هم به ماوه اشنا کوم طرف نه تلی شوې
نـه وې جـوړ جـاره دبـسرلي بـه لاس خزانـه — نوی ژوندي دې راوړ جوړ زړونه سرکلی شوې
نن چې اشنا راغی ولې خان دې تېرو هستلو — نه چې به وعده یې نل ترتله تېروتي شوې
ای د مینې رنګه تېرل رنګونه دې کړل محـو — خای دې هم حمزه و چرته نه بانې کېدی شوې

(۱۱۲۲)

خو چې بې دم شم راته د هر د زرګي دم راکوې — عمر دې د برشه چې اشنا غمونه کم راکوې
سترګې دې د کې شي چې وګورې دې حال نه زما — ساده اشنا د غم د هاسه ولې غم راکوې
خـو چې د یار د لبو سـرونه روایـت نـه کـوې — زړګیه ماته څه به کار که جام د جم راکوې

ای پرېشانه دا ستا د زلفو فکره زما — ما نه کړې بې د دردونو دهر خم راکوې
د خپل جمال رنګینی ګورې ای نرمخیه اشنا — څکه سحر کې اشتغال را نه د نم راکوې
چې د نر مخیو هیڅ تلاش په دا چمن نه کوم — څکه قطرت هم د شبنم غوندې درم راکوې
ستا د کوڅو په غشو حمزه تېر نه خورې — چې دې په زړه شي هر ګوزار را نه سم سم راکوې

پېښور ۲۷ اکتوبر ۱۹۵۰،

(۱۱۲۳)

کله مې وژنې کله ما له جام د جم راکوې — کله عسل د سرو لبانو کله سم راکوې
کله ګدا مې د در دو په بې نیازی کړې باره — کله مې کېنوې په تخت لاس کې قلم راکوې
کله په بحر د وجود کې مې لاهو کړې وجود — کله غوټې را له په سینه کې د عدم راکوې
کله عاري د بصارت او بصیرت نه کړې ما — کله مرآة د کرم رشک جام جم راکوې
کله خلت د ابراهیم را نه عطا کړې په شوق — کله اخلاص هم د آزر را نه صنم راکوې
کله نظر غلط انداز هم په ما نه کړې چرې — کله موسکی شې را نه وک لاس د کرم راکوې
کله بو دم لکه د خان کړې بې نوا حمزه — کله په لاس د حکومت را نه علم راکوې

(۱۱۲۴)

ساقي که په کتو کې عتابونه راکوې — دستر ګو په کاسو کې شرابونه راکوې
قاصده بس خو سوال مې ورله بوسه به دادم — نېک بخته ولې دلته جوابونه راکوې
ستا دید مې لا سوا کاندې زلمی د دید ارمان — معلومه شوه اشنا چې حجابونه راکوې
زاهده بس لمحې د هغه مخ را ته کوه — دا څه چې رسالې او کتابونه راکوې
خاونده دا سختی د ېلتانه چې دې په ما — بیا هم به په دوزخ کې عذابونه راکوې
الحیاروته شراب او التفسات او تبسم — او ما ته هم د خپل زړه کبابونه راکوې
زړګیه منع نه شوې ما حمزه خو وګرووش — اوس ولې د غمونو حسابونه راکوې

پېښور ۲۳ جنوري ۱۹۷۱،

(۱۱۲۵)

ولې بنګلې سترګې دا سې مرې پورته کوې — بویه پښتنې چې بې درنې پورته کوې
خان په شمع و سپځه پتنګه طواف پرېږده — څه لره کرا و د تولې شبې پورته کوې
خوس د تصور سره د بهار شه مزل پرېږده — بار چې د احسان د بدرګې پورته کوې

گوري دخپل ذات به مختلف غوندي عکسونه    خو چې ترې پردي د زماني پورته کوي
داخو بربوکي دي د فـا پـه لـوري يون کـا    خـو چې د بـانيو منـاري پورتـه کـوي
پـر د دنيـا قيـد او ورسـره دا خواهشونه    خوبـه دا زنځيـر او زولنـې پورتـه کـوي

سـخ دي شـه حمـزه چې د اشنـا درتـه روان يې
هـر قـدم پـه لـوري د کعبـې پورتـه کـوي

۱۹۲۷اګست ۲۵ـ لوارګی

چاکـه دي عـالم تـه تماشـاووي    سـتاله مخـه ماورتـه رښتيـاووي
تـاچې څـه اول ووي بيامـاووي    اوس ولې قهرېږې چې "داتـاووي"
مرله خوشحالی چې نه شم خدايه زه    "وزنمـه دي نـن"راتـه اشنـاووي
تاخوبـه وې داچې زه درخـار" يمـه    اوس وايـې بـې زاريمـه داچـاووي
وايه سباخار دي دسپين مخ نه شم    ماورتــه اشنـاکله بېګـاووي
مرمې کړه اشناهله به پوه شې چې    مـادې کـوم انداز تـه مسيحاووي

بـس خـوجرم کـاردی د حمـزه زبـان
خيـردی کـه هـم دا نـوري دنيـا ووي

(۱) اردو

(۱۱۶۷)

جـاردې لـه زلفـو،زه خفـه نـه يم،کـه دې ومـاتـه بلاڅـه ووي
خودامې سوال دی چې تامل کړه دنابـه هکله چې چاڅه ووي

ذ تـاهم زړه و،زمـاهم زړه و چـې بـه يوبلـه سـره څـه وايـو
چې سره مخ شو،سترګې شوې ټـکـه،نه تاڅه ووې نه ماڅه ووي

زمابـه مخ چې وصل نـه کاندې،کـه هرڅـه وايي خوهم نـه وايي
وخـان تـه وايـې چې ماتـه وايې،چې بـې زمانـه بناڅـه ووي

دخپلو برندو ننوتــه وکره، پوښتــنه ښــکلیه، حیران پــه څــه یې
چې آیینــه یې زمــاصــفاکره، که ستاپــه مــخ مــې صــفاڅه ووي

زماپــه زړه وو، دتاپــه خولــه شو. کــه بیاد واره جهان پــه خولــه شو
پخپلــه ښــکلیه منصــفي وکره. ګنــاه دچاشــوه، کــه چاڅــه ووي

زمــاديوي لاخوشــپه ده پــاتې ولــې دې زور د ســلګیو جوړ کــه
دخداي دپاره، کــه لږ مې پوه کړې دتاپــه غــوږ کې ســاڅه ووي

ز ژړاتــه چې خنــدنی شــوې، نواوس لــه خوفــه ولې بــه شــاخې
دتاخــــدنګ و، کــــه داخـــدنګ و، زماداوښـــکورناڅه ووي

دتــادخولې نــه قاصــده جارشــم چې داتــه وایې، وصل یې داسې
خوراتـــه وایــــه، ددې نــــه نورېې دسردپاســــه، بهاڅه ووي

حمزه چې خپــ "دي دسترګوورک شو، جوړددېدن بــه دا اتــهاوي
کــه داســـي نــه وي نوراتـــه وایــه بغیــر ددې نــه قضاڅه ووي

۱۹۷۲ جنوري ۱۵ ـ اوس امیرخواږې

(۱۱۲۸)

اوس څــه قصــور زمــا کــه چاڅــه ووي
پــه برنــدو سترګو راتــه ګــوري ولــې
جوړ ښــکلي هم نــه پــاتې کیــږي ښــکلي
پــه آیینــــه بــــه دې غبـــار پرېــوځي
واعظــه چــپ شــه تــه خــو دا ووایــــه
بوخلي مــخ شــوي سره، ښــکته شــوي بیا
شــمله مــې نیفــه بــې اختیــاره کړلـــه

ماخوهغــــه ووې جــــې تاڅــــه ووي
ورځـــه تـــه ووایــــه چــې ماڅـــه ووي
پوه شوې چې سترګې د سبا څــه ووي
ښــکلیه کــه چــا درتــه صــفا څــه ووي
چــې د ســـېرلې مستې هواڅـــه ووي
چې سترګو سترګو تــه پــه غــلا څــه ووي
دپـــــښتني پیغلـــــې اداڅــــه ووي

کیف د بدن و نور خبر نه شومه — ګنې ستا سترګو خو بلا خه روي
بوه حره وه چې واریې راغې — نه اشنا تاووي، نه ماخه روي
چې خط وارشو، وارخطا شو ځکه — نشته خطا که وارخطا خه روي
**حمزه** به مخ چې درته بد نه وایې — خیر دی که بد یې شا به شاخه روي

۱۹۲۸ مارچ ۳ لوارګی

۱۱۲۹

درته زما نتو سلګو خه روي — بس کلیه دتا برندو بنو خه روي
لېږه سره سینه خو فکرو کړه — درته مې پخوا سو هلو خه روي
ما دهند کو سترګو تعریف کولو — وې یې چې دادې په پښتو خه روي
دژوند په تورا وسپین خبر نه شومه — خدای زده چې ماته ورخو شپو خه روي
دزړه داغونو مې خلاو کړه نن — ورته دنا سترګو بوو خه روي
دسوز ارمان یې بلې شپې ته پرېښود — شمعې پتنګ ته په سلګو خه روي
راغلې پېرلې دبنو یه خو کو — پوه شوې چې او ښکو ښتنو خه روي؟
لاخو خواني یې ګل شیندونکې نه ده — دي په نیولیو سرلو خه روي
**حمزه** دي تنګ، هم دراتګ نه ګریان — نه دي په تلونه په راتلو خه روي

۱۹۶۳، جنوري ۷ مه

د سحر کیف و خندا یې لکه وي — د فراق د شپې رنا یې لکه وي
زه تر اوسه درته خاک یم د پښو لاندې — ته هغې کبریا یې لکه وي
زه صدف په د پرو او ښکو بې ګوهر یم — ته نیسان یې بې بها یې لکه وي
زه ژوندی ستا په خیال او تصور یم — ته هغه مخ د قضا یې لکه وي
زه دې داسې کړمه هېر چې اشنا نه وم — ته زما سر کې سودا یې لکه وي
زه د مینې خوشنوا هزار داستان کرم — ګله ته لا بېنوا یې لکه وي
زه مجنون غوندې بدنام شوم ستا له توره — ته هغه توره لیلی یې لکه وي
زه **حمزه** دې رقیبانو در په در کړم — ته هغې تری رضا یې لکه وي

[١١٧١]

ضبطه که تامي اسوېلوته څه وي — سوی ارمان مې هم سلګوته څه وي

سره د منزل داتګ شو پیدا — د پښتوتاکومې ازغوته څه وي

نوم داشنا دې ترینه وشو کوو — ضبطه لاتور به دې زبېرګوته څه وي

ما د کاروان خوترې تپوس نه کاوه — ناتواني مې بربوکوته څه وي

ستا په راتګ یې هم باور ونه شو — ما به دې ستر یو اسوېلوته څه وي

داچې لاسونه مې ګرېوان له رخي — سپرلیه تاخپلو ورموته څه وي

د آیینې نه دې جوړ داد غوښتلو — تاخپلو سترګو غلچکوته څه وي

تا د نظر مې ترینه خپل خلاص وو — نور به مې ستاستونیوته څه وي

زاهده بل رنګې فطرت به وي ستا — ګنې شرابو دې توبوته څه وي

همزه تپوس له عقلمنو وکړه

چې زولنو به لېونوته څه وي

[١١٧٢]

لوس خومې داسې یقین راغلی چې ماهیڅ ونه وي — څکه چې ماخو پرڅه ووې خوناهیڅ ونه وي

ن یې نوش کړې جوړ کچل ووڅه نشه غوندې وه — چې دې اشاراته د سترګو بلا هیڅ ونه وي

داسې به ستا د سخاوت ولې توهین کېده؟ — بس وه چې درنه دې حاضر شو ګدا هیڅ ونه وي

ما د راقلیو نه تپوس د حضر تللیو وکړو — داسې هیبت وو تول اخیستې، چې چا هیڅ ونه وي

بکارې چې سترګو یې دتاله سترګو وکړه حیا — چې زما سترګو نه یې پام شو لقا هیڅ ونه وي

جوړه د مخ نه ولې ستا د استفهام نخښه ده — رلیبه ماته اشناستانه جدا هیڅ ونه وي

ماوې په غم د محبت کې شته جواز د میو — راته موسکی شو نور په مخکې ملا هیڅ ونه وي

ماوې یوسوال دی، تاپه برندو سترګو ووې چې څه — داسې جواب و چې مې دې بس بیا هیڅ ونه وي

واعظه کیف دې د سرلې که په مطلب بوه شوې — تن دې له میوله روانا روا هیڅ ونه وي

دچادمخ نه یې محفل کې پلوشې ګونګې دي — پتنګه تاته که د شمعې رڼا هیڅ ونه وي

بیا یې چې ژوند دتمنا یې زما خوښې دی حمزه — چې یې زما د شوق نظر ته ادا هیڅ ونه وي

١٩٦٨ فروري ٥ پېښور.

(۱۱۷۳)

کور دمین ته چي چاکور ونه وي ‌ ‌ ‌ ‌ مایې دعقل کورته کور ونه وي
راته په مرسته دبنوشوي لیندي ‌ ‌ ‌ ‌ ماداشناوروخوته لور ونه وي
ماته په خوله دي درقیب چي ووي ‌ ‌ ‌ ‌ دامي دي بس که څه دي نور ونه وي
ستاله لیمویې حکماوبوبنتل ‌ ‌ ‌ ‌ لکه دمی یې سپین اوتوررونه وي
وکره زماسره پستي خبري ‌ ‌ ‌ ‌ ماپه پسته ژبه څه سپوررونه وي
بیاستنبدل مي نامکن،ومنه ‌ ‌ ‌ ‌ ماکه دسیند غوندي په شور ونه وي
دحمزه خوبني شوګیري دي اشنا ‌ ‌ ‌ ‌ چي یې ستازلفوته منګوررونه وي

۱۹۵۳حوری،۱۰_شهقدر

شاید چي په جواب به شرمېدواوخه یې نه وي ‌ ‌ ‌ ‌ راکنل په مخه تلواوخه یې نه وي
دمیودخوشبوی دکرامت نه به څه وایم ‌ ‌ ‌ ‌ زمونږ په خواکي تېرېدوارڅه یې نه وي
ماوي ګله خوشحال په پرېشاني کي ولي بنکاري ‌ ‌ ‌ ‌ روروهي خوږند سر کړوخند ېدواوڅه یې نه وي
ماوي زرګیه هله په خنداده" راغلی ‌ ‌ ‌ ‌ بې واکه وارخطاودرزېدواوڅه یې نه وي
قاصدته مي له ورایه وکړوغږچي هله وایه ‌ ‌ ‌ ‌ روروراته راتلوپه موسېدواوڅه یې نه وي
حسرت زماپه سترګوکي کول ورته سوالونه ‌ ‌ ‌ ‌ ساده لکه ماشوم شو،بوهېدواوڅه یې نه وي
تفسیر دانفعال ورته هدمه حمزه وکړو ‌ ‌ ‌ ‌ بس نو یې دلیمونه څڅېدواوڅه یې نه وي

۱۹۷۶اپریل،۲۰_لوړګی.

(۱۱۷۵)

سېزي انتظارمي،بلومه له ناکام دیوي ‌ ‌ ‌ ‌ ستادتصورسره غلط کري زماپام دیوي
ن سکني اشاراته په سترګوکي موسکي شولو ‌ ‌ ‌ ‌ خکه یوناخاپه راته وغوبنتي ماېنام دیوي
زره خوبې لاڅه کوي نسیمه،چي تېرېږي پري ‌ ‌ ‌ ‌ وګوره چي سردي په سلګوشوي له پیغام دیوي
چاته بنکه مه شه لمبه چي برندي سترګي ستا ‌ ‌ ‌ ‌ دادپښتني غیرت نه دکي،دادګام دیوي
خم دمین ملاشوه:خوستاعینه یې ژوندي ساتي ‌ ‌ ‌ ‌ تیل چي یکي کم شي راتېتېږي له ناکام دیوي

ګوهر کړلو رنداو، اوس د تېښتې روګو در ګوري
ګل شه دواعظ نه دامې واخله انتقام د بوي

نه مې دي پېرزوېه شپه د وصل سوځېدل په تا
بندي کړه سلګې دي د دې شپې به احترام د بوي

خوان دي پسرلی او هم سپوږمۍ د خوار لسمې ده
راشه ساقي راشه، په خندا چې شي د جام د بوي

رو رو تبدلي، تېښتېدي دانتظار په شپه
چپ شوي په سحر کې د حمزه د زړه د بام د بوي

۱۹۷۲ اپریل ۱۵ ـ لواړګی

چې د مستۍ نه دي په سترګو کې پرکېږي "د بوي"
په هغه وخت کې زما اوښکې معلومېږي د بوي

پکې بو خوی مې د تمکين د پښتنو ولېدو
هيڅ حرکت له خايه نه کړي که سوځېږي د بوي

پښتونه قدر دي د خپلو منورو وکړه
دلسې د بريس نه په ملت کې پيداکېږي د بوي

چې هغه سترګې په محفل کې راته نه ښکاري
نشته رڼا که خلق وايي چې بلېږي د بوي

دهجر شپې! زه درلوګی چې بې راورې يادونه
که په فضاد تخيل مې راورېږي د بوي

ته که رانغلې مخروڼې به مې د شپې ونه شي
راشه که ګوري له ماښامه مې شرمېږي د بوي

چې دخوانۍ ونه شوه کمه ملا مې خم کړو پيدا
کم به چې تيل شي بلېدو نه رانيتېږي د بوي

خدايه نسيم دی د سحر که مې اشنا راغې؟
چې د سپوږمۍ نه رڼا والوته بوږنېږي د بوي

د ډېرو ښکليو سره راغی پښېمانه اشنا
نسيمه پرېږده په مزار مې چې ملېږي د بوي

ښکليه نه لاړشه چې تازه مې شي د زړه داغونه
نمرچې فناشي پس د دې نه وځلېږي د بوي

روښانه "زور" کې هم تيارې شته خونخړيک غواړي
به نسيم سپوږمۍ ترې پيداشي چې ربېږي د بوي

داغونه نت شول چې لرمان ته مې خوب راغی حمزه
خار د ناکامه شو ګېرو چې رخصتېږي د بوي

۱۹۲۷ اګست ۳۱ ـ لواړګی ۱۰ آر پرلېږي

(۱۱۷۷)

شپه خوړه لاډېره چې دستوریونه دي مري د بوي
خندګه دي لا اوښکې له ماښامه کړي نسبې د بوي

وادي روه زلفې چې محجوبې شي د شپې د بوي
مخ دي کره ځرګند چې په سلګو سلګو شي مري د بوي

تاچې سپوږمۍ مخیه پېځلسمه شپه نهته کړله
سېنه مې د جدباتو لاد اوس نه دی د بوي د بوي

کړل مې امېدونه انتظار اور اورکو غونډي
تول له شپه به ماکړي کله بلې کله مري د بوي

ګوره رقابت چې اشنا راغی، ګل بې ونيو
اوګې ترې وراندې خلېدې او موسېدې د بوي

زه ايله سحر کې ستا رڼا ته ملتفت شومه
وايه نا د چا په انتظار کړي شوګېري د بوي؟

ستا په دي ښکلا او بسته ژبه تېروتلی و
هيڅ نه و خبر چې ته بخپله سرخېدې د بوي

کار دي د روښانه زړه شاعر ترسره نه کړلو
ډېره په تیارو د خیل محیط وژړېدي ډېوې

ده د هر انسان هره ویښا ګویا ویښا زما
وي بوه رڼا بې که څو ډېرې بلېدې ډېوې

دا خوهیڅ زما د لسوېلو اوښکو جواب نه دی
نه چې په سحر کې لوګېدې او خفېدې ډېوې

سوځي پتنګان پرې خو ژوندون بې لاخلاوکا
دوه سترګې د یارمې دي دوه ښکلې پښتني ډېوې

بربېږه چې حمزه بې تصور د اتنګو کوي
ای د سحر باده ورته ولې مړې کوې ډېوې

۱۹۲۷ ستمبر ۲ ـ لوارګی

ښکلیو کې ډېره پرچې نازولی وي
خکـــه خراغیـــاروزپرولی وي

ولې د حمزه سره لاژړنه شوې ته
درده چې دچاســره راغلـــی وي

اوس دي فضاګانې په ستاینه دي
ماچې په سندروکې ستایلی وي

بادي کړه بوخل په سمه لاره کې
مادرته کاته چې ودرېدلی وي

ړک دي هومره ژوندزماله شوره کړ
څومره چې له خوبه بوېه غلی وي

داجورجواري دمحبت نه وه
خان مې چې ګاته ته مې بایللی وي

یاخنګه راپېښې شوې داشناغمه
نشته حمزه زړه چې بې پاللی وي

وتره مې لاسته دزړه په للموکې
ته چې پرې بې واره ورېدلی وي

چرته چې مجلس کې مینه باده وه
ته مې په خوړلن کې خلبدلی وي

نه راتلې هجوم کې خوچې ګوښې شوم
راغلې په نیولی بوېندلی وي

حیف دی د حمزه همته داخه وو
بس چې ورنزدې شولې لوېدلی وي

۱۹۶۳ اکتوبر ۱۹ ـ سو

نن چې ته د ر دقصور نه راته وایې
خدای مې غلط مه کړه معلومېږې چې بخلایې

بېه ده چې اوس سم راته نظرته کوې خیردی
تاخو په وصل چې زه دتایم ـ ته زمایې

لاژمایه برخه کې ژړا ده بېه بوهېږم
چرته چې ومانه مخامخ شې په خندا یې

مادرته قصه خپله دتېرې شپې دغم کړه
بل ګومان دې راغی چې داهسې وارحطایې

هیڅ نه یې بدل خوبه یاریار دې لیدل غوارم
نوی نوی ښکارې څه عجبه تماشایې

خکه د سحر لمن وي تل سپینه سپېځلې
ته چې لکه نمونځ د هرمهن په کور روا یې

بردې په دیدن چې کړنظر، خونړی نه یې
اوس خو د زړه غمه د لبمه په لاس حنا یې

زه وایم کړې چې دې د زلفو سودایی یم
نه د عقل سروې واړه سمې سمې دا یې

داسې غلغله شوه ستا د زلفو د مخ د پېره
لوټ د حسن ښکې ته بېګا یې که سبا یې

هره ورځ دې وینم شوق د دید مې لا سوا شي
زه له تاجدا یمه که نه له ما جدا یې

خار(۱) دې د عرسې نه د وفا اظهار دې وکړ
خکه خومې دا ورته ویل چې بې وفا یې

اوس چې زه حمزه شم مرور او موسکې نه شې
دا به دې ناز نه وي مرور به په رښتیا یې

۱۹۴۵ اګست ۱۸ ـ لوړګی

ښکلیه د زړه وایه چې په خوله وایې
نه دې وي په خوله چې څه په زړه وایې

ماوې ښکلیه ودرېږه بیا و وایه
وې چې خو وعده شوه نو بیا څه وایې

جار دې له ترخو همه خواږه اشنا
خنګه خواږه لګې چې ترا خه وایې

جار دې له بنوشم زه یې سم ګنم
وایه وایه خو مره چې کاږه وایې

ستا په بې لوظی به ګرهوان څیرې کړم
نن دې خبر دمه چې بیانه وایې

زه ورته هندکي وایم چې ښکته شړل
ته خپلو لبموته پښتانه وایې

ماوې بده نه ده که نن راشې ته
وې، حمزه د خان د [illegible] ره ښه وایې

۱۹۷۳ ستمبر ۱۱ پېښور

(۱۱۸۱)

کله کله داسې عینیت وې چې به څه وایې
داسې راته ښکاري چې زه نه وایمه نه وا.

تاچې راته وکتل او ما هم درته وکتل
نور به درته څه وایم او ته به راته څه وا.

څه که دې هندو بانه زلفان د مخ څوکی کوي
زه به دې کشمیر له سره تېر یمه نور څه وا.

حسن ته خو ګوره چې بې یو او ژبې دوه لرې
حفه چې به خوله وایې اشنا به لېمه نه وا

بس دا رندی دې د هنروانو که ترې لرې کړد
بیا به وې رښتیا که دې ښو ته پښتانه وا

رنګ د پښتونواله کې مدار د رقیبانو دی
مونږ ته کوږ بانه وایې حفو ته مهلمانه وا.

مبنې دې غریب غوندې احساس د کمترۍ راکه
زه ویلی نه شم ته مې ویوښته چې څه وا.

ولې فکر من شوې؟ معمولي غوندې خبره ده — زه به درته ووایم که ته راته څه نه وایې
زه دنیا دحولې په دې ترخو اوبه خوږه نه یم — سترګو ته دې ګورم چې تراخه او که خواږه وایې
دغبر له لمسي نه تحریک د حیا جرته وي — سره دې دبڅکلا وي وروته نه چې شرمېده وایې
د اغیار په مخ کې هم کله راګوره ته — وي چې حمزه نه وایې خو ځان دپاره به وایې

[۱۱۸۲]

ستایم اشنا ستایم څه به نه وایې — ستایم، چې دې ستایم څه به نه وایې
خدای دې نه کا سر داشنا بڅکه شي — پام کوه بخلایم څه به نه وایې
بل خوادې کاته، چې مې در وکاته — رون دې په دې غلایم څه به نه وایې
تاته دچا فکر منتقل نه شي — زه که تماشایم څه به نه وایې
نه پوه شه اوستا دا تغافل اشنا — بیا که زه رسوایم څه به نه وایې
جار دې له کاکل شم که بې ستایمه — بڅکلیه خوسودایم څه به نه وایې
ماچې لېوني بولې دروغ نه دي — خدایه چې رښتیایم څه به نه وایې
بیاکوه اشنا، چې څه دې خوښه وي — اوس چې زه څه وایم، څه به نه وایې

کوردماحمزه ته رقیب راوله
بیاکه زه عنقا یم څه به نه وایې

۱۹ غرړوری ۲۲ پېښور

[۱۱۸۳]

مولوي عبدالله ته

تا چې بندې د الفت به سراخیستي — اوس په کار د اشنایی کې ولې سست یې
په لمسون د رقیبانو دې یار پرېښود — بیا په کوم سبب وو ابه حق پرست یې
دعوه مه کوه د عشق چې بې وفا یې — په اصول د عاشقۍ کې نادرست یې
هغه هم و یو ساعت چې یار دپاره — و دیدن ته خلقې به دې راوستي
نا پېسته جانان په در کې توري خاوري — تا په سر به لکه مشک او عنبر لوستي

ای حمزه چې زړه دې غیرو ته مایل شو
شوه معلومه، په کعبه کې بت پرست یې

(۱۱۸۴)

چې مې ولیدې زما د نظر تاریې — د بنو ستنې دې ورم زما په کار بې
ستانمک مې په کالبوت کې د خیال دی — بې پردې بې که هر څومره پرده دار بې
که خواږه مې ارمانونه ورې خوب دې — نه چې مسته غزونې د بهار بې
هم به دې ستر ګو ستم کړې هم دواکړې — بار اعبار بې بیانه یار بې.نه اغیار بې
عقلمند غاړه غړې راخې بیدیاته — چې زما د لیونتوب د غاړې هار بې
که تالادې قافله زما د ژوند کړه — خو هم نه بې اوس متاع لره بازار بې

د رقیب د اقبال ستورې دې پربړ خې
حمزه نه چې تر سحره اشکبار بې

(۱۱۸۵)

دومره رانه پټ دومره ښکاره لکه خیال بې — دومره راخرګند بې دومره پټ لکه حمال بې
نوم دې چې څوک راخلې واړه خوله ورک مې خبارشې — ګرځې مې په ژبه د حیرت هغه سوال بې
نه بې تصور د مخ د زلفو دې شپه ورځ وی — تېره شوې په مانه هغه دولس مياشتې کال بې
شه د غم درېځ مې په زړه هم داوښکو څاڅکې — دې خواکره لیندې ورو ځې به مادبوډې نال بې
مخکې مې از مېښت دپاره ژوندنه د رستم وې — ګوزه بهانه اوس امتحان لره غربال بې
نش اسوېلې سه خې د لیلی د زړه محمل نه — تېره قافله شې نه غبار بې په دنبال بې

تاونه حور داخلک جمیل وایې بې حده
وایه چې بیا ولې خوار حمزه لره جلال بې

(۱۱۸۶)

د بر کرم اسوېلې ساړه ساره خوته تاوجن بې — ای زما زړګیه نه لمبه بې که حبولن بې
سترګې دې د عقل په رڼا ورپېښنلې — نن شوم په دې پوهه زما عشقه چې لېچن بې
بیانوله ترحونه د مرګسې ولسې ترجیږې — نه چې خوږه ژونده تمام عمر خنکدن بې
دې زما په زړه کې دې ارمانه څه لیدلې — دا خو راته ووایه چې ته د کوم وطن بې
بس کړه ګله بس کړه له خدانه په شامه څه — لاس به مې ګستاخ کړو خو پوهېږم چې الحزن بې

۱۹۵۴ مارچ ۹ پېښور.

[۱۱۸۷]

اوس که زه هغه زه نه یم نو ته هم هغه ته نه یې — چې زه ته وم ته هم زه وې نو چې زه یم ته هم نه یې
ای چې خونې ورانول دې شیوه شوې د ازل نه — هې به زړه زمونږه چم ته نن سبا کې به راتله یې
ای د نمر ځوندې جانانه چې جفا دې هم وفا ده — په یوځای کې چې پرېوځې به بل ځای کې به خاته یې
چې دې نشه دی اسوګنه په خلوت اوبه جلوت کې — ولې ژوند زما د زړه یې ولې ورد زما په خوله یې
د مل کس له سترګو نه وې، دی نظر ستا له جماله — څوک چې تاوته مه ګوري ته هغه ته به کاته یې
که تیاره دې په فطرت ده، امو خته شه چې رڼاشې — چې د یار تر ځنګه ناست یې ای عاصي شپولرپه نه یې

د رقیب په رهبری کې چې تلې یار ته باریاب نه شوې
حمزه غل شوې خود پخپله چې روان د غله په پله شوې

[۱۱۸۸]

چې مې به زړه کې په لیمو کې ته یې — خکه زما په ورخو شپو کې ته یې
در کتې نه شم خو لیدی دې شمه — زما د سترګو په ککو کې ته یې
نه به اوږده نه به ساره وي اشنا — خوبه اوږو اوبه سارو کې ته یې
زه د هر یو ښکلي ښبن نه یمه — خو د هر یو په موسېدو کې ته یې
که مسلسله قهقهه یې اشنا — د صراحیو په سلګو کې ته یې
مینې ته خلک رنده ولې وایي — ښکلیه مدام چې په پردو کې ته یې
د زړه پرولي مې دې تازه اوسې تل — خوښ چې په دې ښکلو کیږدو کې ته یې
د دلاسو عجیبه خوی لري ته — هم مې د زړه په تلوسو کې ته یې

حمزه په روغو کې هم تا وینمه
هم به تـولي د لبونو کې ته یې

۱۹۶۹ء اګست،

تنـدار چې دې تـداره کړو تنداره یې — تنداره شوه تندارچې تـرې اواره یې
نه چې پټ یې خو په دې چې زه ښکاره یم — زه چې پټ شمه هر کله ته ښکاره یې
جال دې پروت دی د خوږو ځږونو لاندې — خپل هم اصل دې تهریاسي بلاره یې

دکوم اور دپاره هسې بې قرار یې  پـه زړه سـپـینـه راتـه وواېـه پـاره یـې
چې پـه غـم دې پـه هستي کې ملاترشو  یوگهـړیـال د هـر یـو زړه پـه مینـاره یـې

پس له هغې عاشقان چې لبمه خون کا
تـادې لـرلې د حمـزه د زړه پـاره یـې

چې همیشه داسې لـه ماخفـه یـې  اوکـه نـه بـشکلـیه لـه هرچاخفـه یـې
زه کـه څـه وواېـم خفگـان دې پـه خـای  اوکـه څـه نـه وایـم نوریاخفـه یـې
نـه دې سـانـه دې بېگـاه شـه اشـنـا  سـاخوشـحـاله یـې بېگـاه خفـه یـې
مـاوې دروغ بـه داغیارنـه منـې  نـن خوشـایدچې تـه رښتیاخفه یـې
پخلاکېدل بـه دې اسـان وواشـنـا  گرانـه خوداشـوه چې پخلاخفـه یـې
تربوتبـسم دې هیـڅ بهانـه لـرې  سـرمې درجارشـه بـې بهاخفـه یـې
څـه چې رقیـب وې هغـه مـاهم ووې  تـه پـه هغـې اوکـه پـه داخفـه یـې
سـادې قسـم وې چې رښتیاووایه  دادې ښـه ده کـه رښتیاخفه یـې
لکـه غـولی بـه نـرې اخروتـښتې  نـه یـې مـن چې پـه صحراخفه یـې

ښـکلیه دنوروتـه کـه یې، کـه نـه یـې
خولـه حمـزه بـه خـواه مخواخفـه یـې

۱۹۷ هرورو په ساز ترکړ.

نظـره نیـت شـه شـرمهدلی نـه یـې  تـه خـو زمـونږه منځگـړی نـه یـې
بـدلوې سـترگې لکـه وخـت ولـې  تـه خـو زمـا دپـاره نـوی نـه یـې
شـوکه بنایـست یې لکـه نمر زرگیـه  څه شي پـه دا چې تـه بخری نـه یـې
زړه حقیقـت درتـه ویلـی نـه شـي  خیـال د اشنا لـرې لاگوښـی نـه یـې
خې او راځې پـه هـرنفس کې زمـا  چې لـړ دې وکـسمه لاسـتړی نـه یـې

د ژوند چمن دې د مېنو کرو خور — وایه دچا دغاري منی نه یې

زړه مې تره خیال مې ملګرې دې ستا — د اشنا خیاله یوستوی نه یې

زه چې اوجت درته کتې نه شمه — لاس مې په سترګو پوهه شوی نه یې

تا د حمزه طمع پیدا کړه اشنا — ګویا ته نن مرور تلی نه یې

(۱۱۹۲)

طالب دلبو تبرب شو بیجبان دتلی — وسعت دبیابان لري ز[illegible]ان دتلی

وحشت کې بیابان شو ګلستان دتلی — ګنولی مې اغزو دي ګرېوان دتلی

بې لوظه اشنان په هسې شان راوګنل — په [illegible]حه مې د زره وشو باران دتلی

دانه رانه په خوله کې دمېږي جهان باني — مهمان مې دخاطر دی سلیمان دتلی

پرېشانه افسانه چې دجهان لولم په شوق — خاطر لرمه جمع په عنوان دتلی

ناصحه له خپل خانه وي جوهر دآینې — بس نور حیرانوي ولې حیران دتلی

ترڅو چې بې ملګري وي داستالبوني یاد — ګېدای نه شي د زړه سره ګذران دتلی

کمږي زمااونکې اوموسکی داشنا خوی — افسوس په ختمېدومې شو سامان دتلی

حمزه ملګري خود رسره پاتې شو په لاړ — ختمېږي په شاوګوره مېدان دتلی

۱۹۴۷ فروري ۱۸ ــ توپ خانه بازار پېښور.

(۱۱۹۳)

بس پېغله تمناله هران دیداری — کړي تاته به عطاسروسامان دیداری

داخوب چې په مابکاري دلسې ګران د.. اری — شاید چې حفاظت نه دی اسان د.. اری

هر موج دتاثر کې بې له عشقه نه وي زور — سیلاب کې دخردنه وي طوفان دیداری

دي سپند کې به دتانه شي پکار کله حباب — باید چې وي دکب غوندي چشمان دبیدری

حالانو دژوندون که دي ضمیرته کړو تالا — غفلت کې به دي هم وي تل امکان د.. اری

امکان چې آینه شي پکې هیڅ نه وي موجود — جوهر دسادګی لري حیران دیداری

ورځه داشنا وصله خوبولیه .بې رخصت — نن پاتې مې به تاشولوتاوان دیداری

حاصل بې جمعیت وي که وي بوی هسې پرېشان — هرخوک چې شي دګل غوندي خندان دیدرای

خوخودسباګانوګرېوانونه وشکېدل　　سالم مې انتظارلري.ګرېوان دبيداری
زنګارمې نيوی نه شي آيينه دتصور　　مژګان دبنکلي يارمې دي مژګان د. رای

همزه چې دې په زړه افسانه شوه دهستي
تاکل دې مناسب ورته.عنوان دبيداری

۱۹ حمل ۱۱ سپتمبر

(۱۱۹۴)

خود به نو اوس واېم خپلو کسيو ته ککی　　جوړني هلکان او هلکلنن شول جنګی
لاړو پښتني شرم،غيرت له مېنځه وروت　　زياتي د يوروپ نه هم سوا شوي بې باکی
سبر چې وپه وزن له پښتون تهذيبه سبر شول　　سترګو کې حيا بې پاني نه شوه چهپاکی
جرته د يوروپ خللو که جوړه کړه نو خدايبو　　جوړه به په کوټ کې کاندي داخلق لکی
نه پرېږدي هوټل نه مې چې کوټ پتلون مې نشته　　خکه چې جامه مې پښتني ده خرکی
دريغه چې زلمي مو ادم خان او موسی خان شي　　دريغه چې دا پيغلي شي درخو او ګل مکی
غرق په بل تهذيب کې پښتو واېم،پښتون نه يم　　ژړنده کړي بې کاره د صابون بره چکی
جوړه مې د شعر قتلمه کړه خو ترخه ده　　پټ پکې خواږه هم شته که څوک يې وڅکی

وخت چې دليې ستيک دی ونداسه اوس همزه چرته
دور د هيند بيګ شو لاړه رد شوه برخکی

(۱۱۹۵)

سالې په سترګوسترګوکې چې جنګ دی غوره کړی　　ماکاردپيمانې وهل په تنګ دی غوره کړی
زه ستاپه نيرنګيو کې فناومه پيدا شوم　　ددې له امتزاجه مې بورنګ دی غوره کړی
خلاد مينې لاړه نه ادراک اونه حيرت شته　　داخکه آيينې د زړه مې زنګ دی غوره کړی
غيرت دمحبت خوغيريت زغملی نه شي　　پښتون مې محبت دی چې مې تنګ دی غوره کړی
نغمه شوه دوحدت رانه کثرت چې پکې ورک شوم　　اوس بس له دې مې خکه يوآهنګ دی غوره کړی
لمن چې دبل نيسي خپل ګرېوان دې خه بدمه دی　　وحشته مادچنګ دپاره چنګ دی غوره کړی

همزه شاهان يې په پښول برکت د وفا ګوره
اشناوې مايه وارو داملنګ دی غوره کړی

وخت د کلو د زړه چاودون راغی — دروح اوتن سره بیلتون راغی
اکر بکر د مرحلو شویدل — چې په حالاتو کې بدلون راغی
بې لوظه سترګې یې چې تیتې شولې — بیرته نظر مې تري ممنون راغی
نن شوموسکی د نو قلع نه خلاف — سر مې د فکر په زنګون راغی
ذلیونویه کوخه نه ورخه — چرته به غږ کړي چې مجنون راغی
له یواوبله معرفت شو پیدا — په حسن وعشق کې چې بیلتون راغی
چې بې اظهار له الفاظ نه محرم — خیال ته زما هسې مضمون راغی
د کیف وکم له قیده ووته — ووکه بې چون او بې چګون راغی
زما په غږ لکه د غږ د کمر — تللی وبیرته شو راستون راغی
حل ته د زلفو د چیستان مې فکر — تللی وبیرته افلاطون راغی

یادې وفادرسره وکړه حمزه
خه مرور که ویښتون راغی

لوبنکې هم به مې ګونګې شي،تن مې دلسې بلين راغی — پوره لوظ کړ هغه ښکلي،ولې غوټه جبین را
بوناخاپه شه دي ورکړ،تازما د زړه بادشاه نه — ستاپه زد کې عشقه کله،چې د عقل فرزین را
لاتېزې به د پخوانه،ستاپه تنګ کې راپیدا کړي — لازویه زړه به خاې کړه،خه ګرداب که لمرین را
حکومت د سلیمان به،هم هغه نه دي بې آبه — د تانوم بې چې ای ښکلیه،د زړګي به نګین را
مبین سپیځلی ساده زړه مې چې تاو غوښتوماد رکړ — به سپین تورو دي خبرنه شو،که سپین تللی د ٠ را
لږ خوخبرشه چې خوشحال شي ستالویې خوهم به دي ده — ای د حسن شهریاره،که ستا درته کمین را

چې پسرو په د مومنانو شو قبله زما د فکر
حمزه خکه ماته اوس د معارفو ګبین راغی

(۱۱۹۸)

کوم نسیم و چې په باغ د افغان راغی — چې هرگل لکه بلبل په بیان راغی
چې توسن مې د خیل فکر پسې زین کړ — د تړدې ماضي په لاس کې دامان راغی
تارتار یز"حال یې د "تن" پنجې معلوم کړ — په قبضه کې د "بیرون" یې گریوان راغی
یو محفل مې په معنی کې په نظر دی — اسویلي ورته زما په دهان راغی
د پښتو ادب اجزا جدا جدا دي — بې قالبه څه په کار دی که خان راغی
ده پرته استعاره قفل په شونډو — د تشبیه په رنگینی کې نقصان راغی
دردیف ردې ردې دي دده یې تش دی — قافیې لره د ورکې سامان راغی
په روي او په خروج کې فرق نشته — د تاسیس په خاې د وصل امکان راغی
شاعران مشاعرې په ننداره کړي — یونریله سره مشت او گریوان راغی
د کوم یو چې لړې(۲)، اوتې بوتې زده وې — وایې لاس لره د شعر میدان راغی
په دې وخت کې یو آواز راغی محفل ته — چې سپرلی د انتشار په خزان راغلی
شو خواره واره راجمع یو قالب شول — جو مسیح په ادیره د افغان راغی
شوه دنیا د تخیل مې گلورینه — نوم د کوم یو پسرلي په زبان راغی
د ادب وربخې د کې میخانې شوې — خلقو پورته کړې پیالې چې باران راغی
حمزه غږ وکړو چې واره لاس په نام شئ — قدردان د شاعرانو رحمان راغی

۱۹۵۳ م، ومبی اپریل، د عبدالرحمن بابا مشاعره

(۱) آر: لاریخ. (۲) آر: لکې.

(۱۱۹۹)

نن په لاس د رنگینیو بهار راغی — ارزانې شوه چې کاروان د . ر راغی
دی زما د زړه قرار او زه دده وم — یو او بیل (ته)، هم له دې نه قرار راغی
دچا زړه چې شرلو رون په خیال د زلفو — لکه شمع تل نر تله په دار راغی
د گلې په زړه چاودون کې څه پیغام و — چې بلبل په هر یو گل په چغار راغی
زه له میو توبه گار وم لاله رخه — جام مې سنا د لبو ولید خمار راغی
اسویلي وکه سیلی د محشر نوې — کوم مبن مې نن په لار د ۰ار راغی

مخ به نه یکې خپل ګوري زما څه پرې ـــ که د زره په آیینه مې غبار راغی
مابه وې ورته هر ښکلی ښکلی نه وي ـــ تول عمري بې لاري زړه مې په لار راغی
خیر که عمر مې پریشان شو خوغم دادی ـــ چې یقین د ګل مې ولې په خار راغی؟
حمزه دومره دی وزګار چې وزګارانو ـــ ورته وکړې اشارې چې وزګار راغی

چې دنیا د آب وګـل تـه انسان راغی ـــ مینه راغله فتنه راغله طوفان راغی
ما پیګاه په خوب خورې زلفې لیدلې ـــ خدای دې خیر وکړي قاصد پریشان راغی
شوه معلومه چې خوانې هم دکار خیز و ـــ چې "کوم ښکلی راته تېر شوارمان راغی
چې مې زړه آیینه مخ ته هوس کړ ـــ حیران تللی وزما نه حیران راغی
خان په خپل کور کې مېلمه راته ښکاره شو ـــ ګویا تللی په سفر و مېزبان راغی
دی تمهید مې دجنون چې ستا په مخ کې ـــ نن مې حرف دمدعا په زبان راغی
په اخر کې عشق ته سر دحسن خم شي ـــ دوصال په شپه چې ښکته چشمان راغی
ستا نابست اوزما مینه رسوایي شوه ـــ یو د دوو قصو دپاره عنوان راغی
ګوره سترګې مې چې ډکې ډکې کېږي ـــ نوم دتنګ په خوله وانخلې باران راغی
ماپه شونډو دیار نوم چې پېرزو نه کړ ـــ لکه لفظ داستان واستان راغی
بریو کې هم چرته نه ښکاري په دشت کې ـــ لیوني زړه چې داده کرم کاروان راغی

ما حمزه چې دېلتون تیرې ژړلې
لکه شمع زما کورته خندان راغی

(۱۲۰۱)

زه چې ستړی په خپل کار شومه خوب راغی ـــ چې دکار ختې دوګار شومه خوب راغی
ستا دزلفو بیداري مې ترهغې ده ـــ په دې تور چې زه په دار شومه خوب راغې
دم که وینې په ناپوهی کې هم وده وم ـــ اوس چې پوهه کې هوښیار شومه خوب راغې
دلدرت دې عجیبه ستم ته ګوره ـــ چې دیار په انتظار شومه خوب راغې
شمعې نوره دحمزه قصه په تا شوه ـــ د سحر له خداداره شومه خوب راغی

(۱۲۰۲)

نن دیوي خوبلي پرېږدې چې یار راځي　　څو مره ډېره موده پس په مزار راځي
ګلـه داغ د بلبلو لوخت لاتـه دی　　خال تازه کړه که موسم د بهار راځي
قافلـه بـه د ېښتوبي لاړې نـه شي　　کـه مولاس تـه د رخنونو مهار راځي
توبـه ګارومه، واعظـه کـه دي پـادوي　　ستا به پند راتـه هېرشوی خمار راځي
مادشمعې نـه الهام داحسې واخیست　　چې کوم زړه شولو، وسـابه پـه دار راځي
د قرار غوښتنه څه وه اضطراب و　　اضطراب چې شوې حده قرار راځي
سالي ستا د التفات امید مې نه و　　وار خطا خکه ولاړیم چې وار راځي
هرکلی چې ستا نظرورته ونه کړ　　جو مېلمه نظر مې پېرته نهار راځي
د ښنو چمن مې مکه هینداره کړه　　چې بلبل مې د سخن په چغار راځي
اوس دي ښکلې کړې لېتون زما د لاړو　　چې مې زړه بې لاړې شوی په لاړ راځي
حمزه هوش مې د خرد سره وتللی　　هېڅ لـه خانه خبر نه شوم چې یار راځي

(۱۲۰۳)

په خوشحالي لوبه خندا سره اختر راځي　　هلال د وروځو په صورت کې د خنجر راځي
د بېړو غشې مې سینې تـه برابر راځي　　ګویا رګ رګ سره دعوت مې د نشتر راځي
راشئ رندانو چې افطار په میخانه کې کړو　　د مغبچګانو میخانې لره لښکر راځي
کیف و سرور به د اختر شي په شرابو دو چند　　کیف وسرور که په ژړا کې د سحر راځي
سرخي د مغ راځني پروړله افسوس میو　　رنګ مې په مخ کې د مینا او د ساغر راځي

په مې خوشالوکې یې نه هم امیدوار ولېدي
نوم د حمزه د یار په ورکې په سطر راځي

(۱۲۰۴)

افسوس افسوس دی په دعاکې مې اثر رانغی　　بې نوره سترګو لـه زما د عشق نظر رانغی
زماهستي په التفات یې رشک طور نه شوه　　زما د یار د تبسم برق و شرر رانغی
په فال زما چې اختر نحس شو اختر چرته دی　　فلک د تن مې په ګردش دې پرې اختر رانغی
رونق د ګل د مخه خې ورته بلبل کړې ژړا　　مراوی به شي ډک د شبنم باد سحر رانغی
ماخو ویل د یار وصال به مسیحا شي زما　　هجران وهلی مې تپوس لـه د پرهر رانغی
بری به یوسې په یوکار کې هم یوه شه حمزه　　که دي به خوله دیو! اسم اطهر رانغی

(۱۲۰۵)

وصـال دیارجالـــه نعمـت خومبــــررانغی　　چې ور　　ه یکې بیلتون د مې وزر رانغی
تل چې دریغ راوري باران یکې برهښناوي دبرق　　آه د زړا مې ده شبه ورخ یکې اثر رانغی
زه محبت گنم وصـال، نه ملاقـات د اشـنا　　ســرخوږوي هــې ناصـح، زما باور رانغی
د کافر نوري زلفې جال د جادو سترگې دکې　　داسې اثر دی تری وایس پیامبر رانغی
رومبی گورار د یار، څه شولذت بې حمزه　　وریسې رور دې شو حسرت هغه منظر رانغی

(۱۲۰۶)

چې نظـر مــې شــونظر، نظر د چـادی　　چې رگ رگ مې شوخبر، خبر دچا دی
خاندې خبرې کرې گرهوان په وینو ژاړي　　دا د تهرې سپېرې شپې سحر د چا دی
دوه یو؛ خــونظر دی بوږنبـدلی　　اشنا وایـه درســره خطـر د چـا دی
زه چې چرتــه ومه، هلتــه یـم تراوســه　　دا عمـرې ســفر زمـا ســفر دچـا دی
زه که پروت یم په سجده د اشنا درته　　نــه واعظـه زمـا ســر پـه در د چا دی
لــه فنابقـا چـې تېرېـــه یوقـدم وي　　عقلــه! ووایــه چـې دا هنـر د چـا دی
ستانظر چې په هیڅ څه هم نه مړېږي　　حمــــزه ووایــه چـې دا نهـر د چـا دی

(۱۲۰۷)

چې بې مخ دی په هرمخ کې دا هدمه دجامخ دی　　زمامخ نه خوهم خیرشه، چاته ورته زمامخ دی
په ښکلاکې یې کمې ده اوکه زور د ښکلا راووست　　یم حیران چې هغه ښکلی آیینې ته مخامخ دی
زمامخ کې په محفل کې تول مخونه شوراجمع　　څه تپوس د پرېشانې کړې ماته مخ چې دنامخ دی
نه یې لوظه داسې راغلې، لکه هیڅ چې نه وي شوي　　ښکلیه هغه مخ دې څه کړو، خدایږه دا خوجدامخ دی
هغه نوري برندې سترگې چې باربار ماته راوړي　　داسې ښکارې حمزه ماته، نن د نوي بلامخ دی

(۱۲۰۸)

مینه د اشنا زما دخپلې ښکلا جوش دی　　بس دغه نسبت د عشق او حسن پرده پوش دی
داسې جوړ صله ده، د مستۍ د لغزشونو　　نن چې سالې خیریه سخاوت د ناو نوش دی
ساد مینې مېو چې عالم راته سراب کړ　　اوس چې پاتې شوی داد چاد هستۍ هوش دی
ما په کوم ساعت چې ستا اواز دی پېژندلی　　اوس کومه ســکالو مې چې تر غوږه شې سروش دی

مېنې دې عظمت د كهكشان رانه څرګند كړ — بس خو بې سترن غوږ مې شاو دې د پاپوش دى

پوهه په وحدت بې زه د فكر او وجدان كرم — سار د يار د حسن چې رما د ورزه به دوش دى

نه نظر پرست يم. خوله جهره دې حباه ده — دې اندازه. هرمېز خبر د سروش دى

زه حمزه حباب يمه. خو يمه ستا له سنده — وې كه څه وجود مې. عبارت دې له خروش دى

نه چې د حمزه سره پخلا دې. خبر لوځ و — اوس به كاينات كې هر يو شى ورنه خاموش دى

(١٢٠٩)

شبګير وهلي زما نظر دى — كه ستا په نظر د خوب اثر دى

خوى بوى مې نظر د سپېلنې كړې — شايد چې به ما د جانظر دى

زه شپې رو م به نش خيال يې — آفاق كې نور د كوم قمر دى

ورو ورو مې شباب دود كړه اش — محفل كې بكار دې يو اكر دى

بې دې چې بقا په فنا اخلې — بل عشقه به ناكې كوم هنر دى

داغنګ له خانه بې خبر شوم — ما هم كړه خبر. د جاخبر دى

مقصد مې مقام ستا شو حسنه — حاصل د سفر زما سفر دى

جوړوه د فراق. بلا خوړه شپه — نن ما نه خفه. زما سحر دى

زړګي ورسره په مشغولا دې — لېمې لتوي چې څوک بهر دى

تندې وې د وخت زما په پښو كې — تندې مې ابنى د چا په در دى

چرګ او دې كړه(١) ورشو دستر ګو — حمزه د ښكليو به دې ګوزر دى

(١) چرګ او دې له ورشو د ستر ګو

نن دې ښكليه عجيبه غوندې نظر دى — چې دا زړه مې به خبر كې بې خبر دى

به هر ګام د مرګ له كندې پور بوځي — كه بې ګوزې زوند حو نل كړه به سر دى

به در شل د مېخانې فكر اخيستى — جوز واعظ دى نيم دتنه. نيم بهر دى

ستا راتګ مې ستا د تګ په احساس هېر شي — هر ماښام زما به مثل د سحر دى

بې نيازې د مرو ستر ګو نخښه نه ده — ستا نظر هله نظر دى چې نهر دى

نن به ته وعده پوره كړې داسې ښكارې — به سبا كې د پرون غوندې اثر دى

جبران پاتې یم سفر د محبت نه — په یوه نقطه سفر دي بیا سفر دی
په خیل خان کې خم له خانه بهرته راشم — په خارج کې نه قیام شته نه سفر دی
د یثرب نه د نسیم قاصده راشه — حمزه ناست په کراچۍ کې بې بصر دی

۱۹۶۲ مارچ ۱ ـ کراچۍ

[۱۲۱۱]

راوړی مې ستا لبر ته دژوند عظیم خبر دی — کاروان د پښتنو د ترقۍ په لاره سر دی
د پېر د پېر دې جرس ونه خوجدا یکې ستا غږ دی — منم یکې نور سم شته هم فدا او هم شرر دی
منزل ته رانږدې دی چې کاروان دې د مراد و — که خدای کړي مقصد ته رسېدلی دا سفر دی
چې شپه د وصال راغله له نصابنامه لا اوده شوې — راوینش نه چې لوس غښې په لیند، کې دسحر دی
خادمه د ملت له مخدومانو چې غایب یې — داخکه چې د هغو په ککو کې ستا نظر دی
وه ستا د لیرتوب چې میراثه شوه ورته پاتې — داهغه میراثه ده چې شاعر په دې خبر دی
پښتو پښتو به وابو که موخوک ولې به گټو — خادمه دا موهم زده کړې نانه یو هنر دی

محمد اکبر خادم په وفات.

هم ې رنګ د جمعیت لټون پکار دی — د پښتو د زلفو لا اخوږون پکار دی
جام دې نوی وي زاړه شراب پکار دې — په تازه بندش کې زوړ مضمون پکار دی
آیینه د تنې تهذیب دې بیه ده — خرجوهر پیری د ساده پرون پکار دی
چې ستا سترګې د عزوله خوبه نه اوري — په شرابو د تویې لړون پکار دی
په سباسبا دې زه دومره مېن کړم — چې په هر سبا مې ستا پرون پکار دی
شوګیرې د خپل زنګون د پاسه خوند کا — خو د خوب د پاره ستا زنګون پکار دی
زړه مې ستاله سترګو نه صبر یې وایې — په جونګړه کې د مرګ ژوندون پکار دی
باره وشوه نور نظر دې ستون پکار دی — ستا دپاره مې هوښیار جنون پکار دی
زما ستا سون څه ګران دی خوبس دومره — چې لږ ستا د کور نظر ستون پکار دی
اسرهلومې دافشا کړې په سر کړي — چې د عمر شو یلټون جنون پکار دی
د رلیب نه که بد وایم خفه کېږې — اوس والف شوم چې څه رنګ لمون پکار دی
خلېدلې خوب د ژوند یکې موندی شي — دلېمه د شبستان لټون پکار دی
لا روسنې سترګې مې پاتې وه چې راغلې — د اجل استازی بهرنه ستون پکار دی
چې سترګې د یار د نوم نه بس ونه کړې — حمزه ستا د پاره بندزبون پکار دی

(۱۲۱۳)

ګوښې زړه نه پاتې کېږي تل دجلسه یې کاردی — علامه یې دتسکین ده هرهغه چې بې قراردی

په صورت دجدایي کې ماواصل ساتی له خانه — په معنی کې زه حباب یم، دریاب صفت مې باردی

زه قربان له دې اندازه، بویه دوه یې تغافل شه — خوچې خان کړې بې خبره، زه پوهېږم خبرداردی

محبت که دېرساده شي، خونیاز به یې ښرګندکا — چې وحسن نه محتاج دی، په ریښیاچې دنیادار دی

تاچې مخ په یوک محفل کې، اشناواروه زمانه — مغروریز دکل جهان یم هم په دې مې افتخاردی

په پرېشانوزلفوستاکې، ستادمخ په رنګینوکې — زمازړه بې نیازه شوی، له خزان اوله بهاردی

وحمـزه تـه مېـسـر دې ستادستر ګولـه خيالـه

ښکلیـه بلـره کـه سُرور دی مستـه بلره کـه خماردی

پر ۲۲_شهیمه.

خوک به حق نه وایي خان نه خان نه حق وایه خه ولړ دی — منصوري لهجه زې مه وي بیاتهمت شته دی نه دلړدی

چې سل ځل ورته سرمات کړې بومکېزیه تړې ظاهرشي — ګران فروشه خواېې ښه ده شغل حسن مې بکاردی

مونږ پرون په داسې سترګوېواوبل ته دې کتلې — زه د یـار پـه انتظـار یم یار زما پـه انتظـاردی

دهستې دزوندنبضونه ګویاترند غرځنې شول — په ورشودسېښرب چې قابض شوی استعمار دی

دلـهولـه شبـنـانه لاپـه ترهـه انتظـار دی — دبنوغشې ګوانښېې چې لاوېښ یکې خماردی

چې راویښ مې نه شې ضبطه ماشومان دلرمانونو — خوب درنې کړې دیارسترګې لمزونې ته تیاردی

ستاکه حسن فهرنګی دی محبت زماپښتون دی — زه انکار کړم له غیرته، ستاانکار خو له پنداردی

پواوبل نه په خندا شې چې ګلان راشې دنیانه — بس هم دلیې خبرې ده نوم یې اېښی بېرې ګلزاردی

ستادمخ اوزلفویادکې دې مې پیلې پیلې اوښکې — چې کوم ستورې په شپه پرېوځي بیاپه تزخ کې بې خه کاردی

چې دمخ او نورو زلفو کوم ښایست په یو اوبل دی — پوه هوښیار دی، داسلام چې کوم دکفر سره کار دی

کـه دعقـل لبـونی دی سـېـلـنی دمینـې هـم دی

حمـزه خـه عـلاج د زړه دی؟ نـه بې لارې نـه پـه لار دی

۱۹۵۰، اګست ۲۰ _لواړګی.

(١٢١٥)

دي هغـه مـين چي بـل مـين لـره پكـار دى — سـردګام په غـم كي چي جابلـود سـردار دى
جارانه داروي چي اعتبار په نـكليو مه كره — ماوبـل چـي حسـن ضـمانت داعتبـار دى
زانـه چـي خبـره درتـه وكرمـه د لاري — خوک چي دي بي لاري هغـه هم پـه يـوه لار دى
وار ددي جهـان خـو تيريـدونكي دى منمـه — واريـه وراندى هم شـه يه يـواريـي بل واردى
ماتـه اشنا ووي چي حمـزه خاموشـه او — ماور[2] دسـريـه خوخيـدو ووي اقـرار دى

ده درنـه نرمـي[1] بي واكـه ديـر بي زور دى — سيند له خپله خانه هسي ګډ په شور دى
د نكهـت پريشـاني دګـل خنـده ده — هغه كور چي تري وحشي بهر شي خور دى
د سحر مستي[1] چي خپم وينـه خندا شي — د نماښام[2] د بيخودي نـه مـي زره تـور دى
مبـارک پـه رغبـدن مـي چي يـار وايـي — اى قاصده خوشخبري[3] نه ده پيغـور دى
زره مي شين دى د هجران په ګـټ لګي — تـل ترتلـه تـاو د عـشق اوسـه تكـور دى
په لېمه زما د غم چي شوي زره سـواندى — دا تمهيـد و واوره اصـل حـال خـو نـور دى
سترګه وچوه چي بي يـاره بـل نـه ګوري — حباب هله سـلامت دى چي نـسكور دى
بوسه سـوز د عـشق حـاصـل كـړي د حنانـه — چي اشنا پـه لاسـو پښو كرلـي اور دى
مخـامخ حمـزه اشـنا نـه ورتلـى نـه شـي — داخفـا يـي داشـنا نـه كـړى پـور دى

(١) صحر خرب (٢) د سمنم خرب (٣) دوي خپره ده

(١٢١٧)

بـه قاصـده چي نـه وايي چي معـذور دى — دايي عـذر درتـه بـايم چي مجبـور دى
هـسي نـه چي ور[ ] زه به يم بي ستره — هغه ښكلى كه خوک وايي چي مستور دى
ولـي مانـه هغـه دومـره رانـزدي دى — چي هغه هسي وصل چي لـه ما دور دى
لطافـت يي دګـدون پـه وخـت مـانع شي — ښكاري حسن چي د عشقه نه نفور دى
همه خوک دى چي به حق نه وايي خان تـه — قصور وار يه درست جهان كي يو منصور دى
خپل داير قصور به پيش كرم په محشر كي — چي قصور مي كړى نه دى دا قصور دى
ضـرورت پـيدا كـوم پـه خپلـه خـان تـه — مدامي ژوندون موقوف په يو ضـرور دى
نـور مخي هـوس مـل مـه شـه هجـري — عـشقه سـتا د تمنا بـه مخكـي نـور دى

محبت دي خه وضبط نه کار اخلي  به کومن دي يقين نه کاندي تربور دی
زه ژوندی بم په احساس د تعلق بم  چي ملال مي کري سرور دامي سرور دی
سرور که وي پخلا ارو مرور شي  جي صفت په زمانه کي د مرور دي
هغه زړه چي تاو د ميو يي ونه خوري  هغه زړه به زړه حساب نه دی انګور دی
بهرخه اي د حسن او عشق نسته  نن زما او يار تر مينځه خه مذکور دی
مبارک مي شه چي سوال نه مي غوښتي  يو ورځ رانه ووايي منظور دی
حمزه نن دي التفات دانسي راخله  و رقيب نه خو دي ګوره چي تړور دی

(۱۲۱۸)

ګوټ د سرو شرابو د تويي سره ضرور دی  بيرته چي کړي ور د اجابت هغه سرور دی
واړه اداګاني د ښکلا چي پېري ژوندی دي  هغه خو د ښکليو په مرو سترګو کي غرور دی
ستا د تصور غرخه به خبر د تا د سترګو  هم رانه په ترهه دي او هم رانه حضور دی
سترګي مي که ستا په تصور شولي مي نوره  مانه دي تيارو بخيلي ستا د زلفو نور دی
ته که مرور شي خو خپله به پخلا شي  ځکه چي عادت په زمانه کي د مرور دی
حسنه د تا خوی که د رباب دی ستا له موجه  مينې هم هر ترهنه زده کړی د عبور دی
ظهر خو نن مانه اشنا و کړو به محفل کي  زړه ته مي داد راځي چي رقيب ولي تړور دی
هيڅ نه يم خبر چي د نظر به ګستاخي مي  رور دی د حيا که له غضبه يي مخ سور دی
ستا د ناتمامه غمزو غشو تاب مي نه و  ستا تر ځنګه راغي د حمزه دعه لعسور دی

۱۹۲۷ جون ۳ ـ لوارګی

(۱۲۱۹)

مانه نن صبا رامخکي شوی نوی راز دی  کوم اوار چي واورمه هغه زاوار دی
ژوند بغير له عشقه خپل مقصد ته نه رسيږي  تنګ د رښا نه سد لبري تل په يو اندار دی
هرخيز په عالم کي د کثرت يوه پرده ده  ژوند يوه نغمه ده کابنات ورله ساز دی
ماچي اکتساب کړی د ناز دی له بې مخيو  سکاري هم په دي سره تکميل زما د بار دی
شمع د رښا ديا ره لوړه له محفل وي  بل لره زړه سوی چي خوک لري هغه ممتاز دی
ګله ستا په زړه کي هم زما چي ځای ونه شو  ځکه بې مقصده مي نکهت هسي پرواز دی
جار دي حمزه عشقه چي د ژوند به راز دي يوه کړ  ستانسکلي ورشوکي به نشيب او به فراز دی

(۱۲۲۰)

که هغه زماله نیازه بې نیازدی    ما سره هم دخپل نیاز دپاره نازدی
هرآواز که فکروکړي نوپوښی دی    هرپوښی په حقیقت کښې یوآوازدی
دا ضدادودنیاورکه شوه په عشق کښې    دلته کار دحقیقت نه دمجازدی
که کولې دې دنبایت کړې وریه سترګو    خونظرمې اصیل نه شوهغه بازدی
دوجدان پردې دې سرکره بیابې اوره    سلسله دحوادثو همه سازدی
دې نبرزې د پښتنو بنوبې بشکنه    جوړې نن بې دستم نوی اندازدی
فکره نه چې هغه ګل له زره بهر کړې    بې مقصده دې دبوی غوندې پروازدی
چې بې زلفې په مزه مزه اوږدېږي    داسې ښکارې چې زما عمر درازدی

دسیماب غوندې احساس دحمزه نه دی
چې هم داد فردیت ساتلو رازدی

۱۹۶۲ دسمبر ۲۶ پېښور

چې سنا مخ مې ستاطلب لره څراغ دی    یم غلط چې لګېدلی ستا سراغ دی
مینې راکړه نوی عصري دماتم نخښه    په اول کښې دلته درد او اوس چې داغ دی
که رقیب نه کړې خندا زړه مې، ګلزار شي    په صحرا هم بسرلی شته که په باغ دی
چې دبر دبر مې هېرولې دبر مې یاد شوې    راته اوس د هېرو یادونه فراغ دی
د اشنا په شونډو خال دی نه پوهېږم    که راغلی د کوثر غاړې نه زاغ دی
دحمزه د زړه بهار خزان په تاوې    چې یکې بې لکه باغ چې نه یې راغ دی

زړار .. زه مې شه ګلزار

فصل دمراد زماشایدچې بې حاصل دی    ستادا تبسم چې دالرار سره شامل دی
نن چې بصیرت او بصارت مې سره یوشول    ګورمه چې هره مرحله زما منزل دی
ښکلیه، تصوردې دساده هوسیو سترګو    ګورم چې مدام زانه په زړه دی خوقاتل دی

مینه لیوتتوب دی خو عطایې د وحدت ده — عقل چې راگیر دی په کثرت کې نو غافل دی
بې له اضطرابه هیڅ نشان د سکون نشته — بې له سینده وو ابه نوم جرته د ساحل دی
بنه دی غیریت چې مو سبب د تعلق شو — تل دې دا برزخ وي چې ترمنځه موحبل دی
نن دې چې حمزه وته تندی له ورا به تریو کړ — بیکاري چې دې چادرته ویلې، چې سایل دی

۱۹۷۴ ستمبر ۱۰ پېښور.

(۱۲۲۳)

په دیوه کې د فراق په اثر گل دی — د خندا لـه زړه چاودونه، سحر گل دی
دا په سترگو کې زما، نه دي گلونه — د سپرلي په ننداره مې نظر گل دی
دا خبره دې دراتلو، په گل بدل شه — ستا قاصده، گل خبر، د خبر گل دی
د ماحول په تیروزاري دوی خندا کا — په لمبه کې شمعې ستا د ځیگر گل دی
پرېشاني دې، زړه چاودون دی، وحشتونه — د سپرلي لـه خوا اعلان د خطر گل دی
د فطرت لـه جبره تینگ نـه شو دتنه — دايې دې د زړه تیوتې چې بهر گل دی
کړې قصه د جمعیت په پرېشاني کې — همېشه چې خې راخې په سفر گل دی
خاندې زړه؛ خوبیابې تاو دمینې پوخ کا — پـه دویمه مرتبه کې ثمر گل دی

حمزه تبرو یستې د بنکلیو رنگینیو
ستا په خیال کې د طاووس د وزر گل دی

۲۳ـ لوارگی.

(۱۲۲۴)

تینگه په وعده نه شوې داځه چل دی — کلکه پښتنه نه شوې داځه چل دی
زه درته په ورېې نظر گورمه — نن چې ته کچه نه شوې داځه چل دی
د بېره گستاخي مې نظر د کړله — ماته ولې سره نه شوې داځه چل دی
لاس مې تېرې وکړو خوشکمن شومه — تکنده غرمه نه شوې داځه چل دی
نـه مې مخرونې دما بنا مو نو یې — سوځې خو د بوه نه شوې داځه چل دی

هم مې شو ګیره هم انتظار تـه یې ‌‌‌‌     بیا چې زما شپه نه شوې داخه چل دی
ماخوپـه مکان پـه زړه کې درګړلـو     نه چې زمانه نه شوې داخه چل دی
تـا خـو د وختونـو پروانـه کړلـه     لاړې راستنه نه شوې داخه چل دی
تنـده د حمـزه وې د قسمت غوټـه     مړشو،نه خوره نه شوې داخه چل دی

۱۹۶۳ مارچ ۳۰ لوړکی

(۱۲۲۵)

پرې دې نه وځي چې ز د سترګو نم دی     تش پـه تنـه څه پـه کار که جام د جم دی
انتظار د اضطراب پـه صفت پوه دی     تصور د ارمان طفـل لـره مـم دی
راشـه راشـه اوس دې وخت دی تصوره     وند د سترګو مې وچ شوی پاتې زیم دی
بـکلې خنګه غشې ولې بـل دچا زړه     هر بانه د اشنا کوږ     زړه تـه سم دی
ارګمی مې د اشنا پـه عشق کې نښتـه     ساخوړلی د اخفـا وفـا قـسم دی
خوک چې یار لرې حمزه حضوری نه غم څه     مولانا غلام سرور چې شته څه غم دی

(۱۲۲۶)

بې شعوره که سپین پیری وې، ماشوم دی     خوکـه عمربې پوخ شوی وي لاوم دی
د پښتو شاعران د پرو ، شته ، هم وي به     د رحمان غونډې خوواپـه چې کوم دی
چې پـه خولـه دې یاد رمـه صادق نـه یم     کـه ستانوم زما پـه زړه باندې مرقوم دی
بوارمان پـه زړه کې بـه وي چې اوس ژاړې     تابخپلـه پیـداکړی داهجـوم دی
ستاله کوره چې پـه خنګ راتېرشي کلـه     کـه نسیم وي د حمزه پـه حق سموم دی

۱۹۷۷، مو ۳۱۶ لوړکی

د مومن ګفـت و کـردار واره معلـوم دی     د سپوږمۍ د چېرې تبکـی وابـه کـوم دی
ستا پـه نوم مې چې حېل نوم او نشان ورک کړ     اوس چې هرڅو نـوم تـه ګورم زمـا نـوم دی
ستا د زلفـو د ورک شوې درک جرتـه     چې مې سپوږی هم په دې شپه کې معدوم دی
شقاوت د فلـک ګـوره یـه مېنـو     چې ګـردش یې هـم زمـا دبـاره شـوم دی
عشقه څه شوې زه قتیـل یمـه د عقـل     چې جهـان راتـه موجـود کلـه موهـوم دی

ستا یادونو هم اشنا بواځې نه کړم — دغمونو چې هجوم و لا هجوم دی
اضداد هله به کار یې چې موجود وي — به وجود او به عدم کې څه لزوم دی
که بخښې یې جبري کړې بې عشقه — به دي لاره کې بې وګټه لاوم دی

حمزه هغه چې دعوه یې د محرم وه
چې په غور مې ورته وکتل محروم دی

(۱۲۲۸)

په الفت کې ګدا کوم دی سلطان کوم دی — دا نبل د تورو سترګو شان کوم دی
زه کثرت د تصور همه تصویر کړم — چې حجاب د دوبې ورک شو درمان کوم دی
کت د عشق مې په خوناب سره زر خېز شو — په زړاوېه فریاد کې نقصان کوم دی
چه مسرور مې عندلیب یکې دروزه دي — ګرخم ګورم چه خرشبونی د بوستان کوم دی
دورنګی مشرد د کرم د مار هسې — خدای زده څه دی نورشان. شان کوم دی
په هیڅ عقل پې چې وانه شوله غوټه — بل په شان د بارد زلفو جبستان کوم دی
دردوغم رسادردوغم ملهم وو — اوس ملهم د درد سبب شو درمان کوم دی
دوه درې څاڅکي د عاشق د سترګو اوښکي — ای واعظه لوی ددې نه طوفان کوم دی

ناچه ملا به جستجو د یاربسته کړه
ستانو نه ده حمزه کړمه، سامان کوم دی

د دعوت مې رقیب کړی انتظام دی — خدایه خبر کړې نوی رنګ د انتظام دی
برندې سترګې مې د یار زړه نه په خبر شوې — بیا جبشو به کعبه ترلسی لام دی
سالي جام دي راله هسې سبق راکې — چې مقصد له صد ګردشه یو لیام دی
هیڅ خامي دي نوره نشته په سینګار کې — خوس دو مره آیینه چې ګوري خام دی
د فراق د سحر شوره چې رانه شي — د حسرت مې خاموشي نه څه پیغام دی
په پیاله مې د شرابو بام غلط دی — چې په زړه مې ستا د برندو سترګو بام دی
وېره د بره، مزل لري حمزه ستري — بدرګه د تصور وایي یو ګام دی

(۱۲۳۰)

دادِ دتجمل خیري ګریوان دی — دپښتوادب سحرخنده افشان دی
دادب ګلونو سترګي دشهلاکړي — انتظار دتماشي دکوم جانان دی
پلوشو د کوم نمرمخي خبر راوړو — چي هر زره لکه شبنم هسي چشمان دی
رنګینی کړي په نظر کي پټ پټاني — که ګلپوشه پري خویه، بیابان دی
نسیم یووړي لوېتي دنکهتونو — شرمنګیره خندا، ګل کوي پرېشان دی
ستوري خند دشاعري اور اورکي شول — په اسمان دتخیل کي چراغان دی
په لهمه دزړغوني عندلیب کي — رنګ د سروګلو شوخي کوي خندان دی
دخیل بوی په تاریېلي دي ګلونه — ورک دفکر د سهري خني ګریوان دی
دبودی په تال کي مستي خواني زانګي — د وصال د خوب حوتو .وړي ارمان دی
مزکه هم له بخملیني خندا شنه ده — ته به وایي چي شینکي تري خی روان دی
تنداره دتندار چي دسترګوتورشوه — ر د سترګو تنداره دهرچشمان دی
هربلبل بي دبقا سندري وایي — دپښتو دباغ ملیار عبدالرحمن دی
په وربل بي د جانان چي سربندلو — نن هغه لیبوني خان دهرجنان دی
دسخن له آیینې به یي څه وایم — زماکړيي جوهروته حیران دی
حمزه څومره خوشبختي دپښتوده — چي په لاس یي درحمان باما :.

۱۹۴۲ پروسی اپریل — د مزار عبدالرحمن بابا مشاعره

(ار:حمده)

(۲۱۳۱)

آیینه دتخیل خودعکس یوجهان دی
چي مشغول نه وي به دي کي هغه ګوره چي حیران دی
دهرخیره نغیر کي نه دنغمه لاړ ده
طبیعت کي د تشیاوو تحرد و ته میلان دی
رڅه نشته دنشه کیري تکامل دخواهشانو

